پنځم کال
۵ـ۶ گڼه
(تله ـ کب)
۱۳۸۵ ل کال

# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

معاصرو عربي ادبیاتو ته یوه کتنه

معیاري پښتو ته یوه کتنه

د ملا امیر دېوان (ضمیمه)

پښتون د خپسکو مېړه



د امیر شیر علي خان په واکمنۍ کې رغوني

# نبوي مرغلري

عن علي رضي الله عن قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من رضي من الله باليسير من الرزق رضي الله عنه بالقليل من العمل (رواه البيهقي)

**ترجمه :-**

**د حضرت علي كرم الله وجهه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد وفرمايه چي كوم سړى چي په لږ رزق د الله څخه راضي وي، نو (د دې په بدله كي به) الله تعالى د دغه بنده څخه په لږ عمل باندي راضي وي. (دا حديث بيهقي نقل كړى دئ)**




بسم الله الرحمن الرحيم



# کندهار


علمي ، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

**مؤسس**

محمدولي زلمی

**سرپرست چلوونکی**

عبدالمجيد بابی

**کتنپلاوی**

ډاکټر عبدالرازق پالوال

حيات الله رفيقي

عبدالکريم طالب

فضل محمد پنهان

عبدالقديم پتيال

مطيع الله روهيال

محب الله اسحاقي

**کمپيوټر چاري.**

م . روهيال

**پته**

د اطلاعاتو کلتور رياست

علامه حبيبي رحمه الله واټ

د کندهار مجلې دفتر

ټليفون ـ ۱۴۴۰

د امتياز څښتن : د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رياست

**دريمه دوره**

**پنځم کال، پنځمه او شپږمه ګڼه - پرله پسې ۳۲ - ۳۳ مه ګڼه**

لېندۍ ـ کب (۱۳۸۵ ل)


**څو ضروري يادوني**

* **کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زيانمني ليکني نه خپروي.**
* **کندهار مجله د مجلې د ټاکلي ليکني معيار سره سم د ليکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.**
* **را استول سوي ليکني بيرته نه ورکول کېږي.**
* **هره ليکنه د ليکوال نظر خپل نظر ګرځندوي.**

**په هيواد او دباندي کي د مجلې بيي**

هيواد :- ۲۰ ـ افغانی

پاکستان :- ۲۵ ـ کلداري

**کلنی ګډون**

هيواد :- ۱۲۰ ـ افغانی

پاکستان :- ۲۰۰ ـ کلداري

نور هيوادونه :- ۸۰ -/ امريکايي ډالره


E-mail: mrohyal@gmail.com

# فهرست


۱. په کندهار کي کندهار مجله ........ ادار /۳
۲. پښتون، د خپسکو مېړه ........ ډاکټر عبدالرازق پالوال/۴
۳. معیاري پښتو ته یو کتنه ........ محمد معصوم هوتک /۱۰
۴. د امیر شېرعلي خان په واکمني کي رغوني ........ عبدالمجید بابی / ۱۹
۵. معاصرو عربي ادبیاتو ته یوه کتنه ........ ژ/ عبدالجبار ترنګ / ۲۵
٦. د فلسفې او ژوند نړۍ (۳) ........ ژ/ همیم جلالزی/ ۳۳
۷. ملي سرود ........ لالهاند/ ۳۷
۸. نجومي څېړني (۲) ........ محمد معصوم هوتک/ ۴۷
۹. ښځه پلورنه د انسان نړیواله سوداګري ........ ژ/روایت کندهاری/ ۵۳
۱۰. اسلامي مدرسې ........ ژ/احمد فرزان/ ۵۷
۱۱. ایلوس، د فلوریډا په سلمانخانه کي مړ سو ........ ژ/ سعید لودین/ ٦۰
۱۲. امانت ........ اداره/ ٦۲
۱۳. هنر او ادب ........ اداره/ ٦۴
۱۴. اختطاف (لنډه کیسه) ........ عبدالنافع ثنا/ ۷۰
۱۵. شاه او ګدا (ناول) ........ ژ/عبدالجبار ترنګ/ ۷۳
١٦. په کندهار کي د کندهار خبري (راپور) ........ اداره/ ۸۴
۱۷. د ملا امیر دېوان (ضمیمه) ........ سریزه او لمنلیکونه/ هوتک/۱۰۵

**سر لیکنه :-**

# په کندهار کي کندهار مجله

همدا کال د څو نورو تېرو کلونو په څېر بیا هم د ګڼ شمېر حاکمو فرهنګي ستونزو په لړ کي کندهار مجلې ته هم ډېر ستونزمن او ستوغ کال و.

دا مجله هر ځل د ډېري بدايي منځپانګي په لرلو سره په داسي حالاتو کي د چاپه راوتلې ده چي د ډېر محدود تشکیل د لرلو سره سره يې د چلښت له پاره په رسمي ډول يو ګمارل سوی تن هم پيدا نه کړ، په افتخاري توګه د ژوندانه د زیاتو بوختیاوو سره سره د نورو دندو تر څنګ پښتنو ته د فرهنګي چوپړ او له دې لاري د ثواب په موخه يو دوو تنو ورته ملا تړلې او د هغو مجلو سره چي د ځانګړي ګمارل سوو سړيو او کړيو، د بشپړو مؤسساتو او پراخو امکاناتو زمينې ورته برابري وې د سيالی په ډګر کي ښه وځلېده.

د قلم او پوهي څښتنانو يې په لېوالتيا سره هر کلی وکړ، د تشکیل او ګمارل سوو سړيو د نېستی تشه که يې د ځانګړو ولولو په برکت ډکه سوې وه. د بدمرغی خبره يې دا ده چي تخنيکي او څه نوري دوديزه اړتياوو يې دې کچي ته ورسول چي د ژو... انه او بقا له پاره په ډېره پرېشانی سره د ټاکلي حريم څخه پښې ور دباندي او د کچکول د لاري يې په فرهنګپاله زړه سوي سره د دې ستونزو يوه کوچنی برخه هواره سوه.

د دغسي لېوالو سړيو دي کور ودان وي چي د کندهار د همدغه فرهنګي ويار د دردناکه خوړ له پاره يې د آني او لنډمهاله تسکين په توګه د خپل توان سره سم پېرزوينه وکړه، ولي د کندهار د فرهنګي بهېر همدا لويه کړۍ او همدا د کلونو کلونو زېرمه او د مشرانو فرهنګيانو هغه فرهنګي ميراث چي تر ننني ورته کسانو او د دې ولس تر زامنو او لونو پوري رارسول سوي دي،

د ټولو څخه پالنه او د هر چا څخه کتنه غواړي، هغه که اړونده دولتي څانګي وي، هغه که د ولس په منځ کي فرهنګي ټولني او قلموال وي او هغه که د نورو امکاناتو څښتنان وي. څو همدا فرهنګي غُزی د ټولو لخوا پياوړی او غښتلی سي، او په تش لاس او هيڅ سره د اوسنی وياړلي ځلېدني تر څنګ لا هم د مطبوعاتو په اوسني تاوده ډګر کي په همدغسي عزت او علمي مطبوعاتي پت سره وځلېږي، وچلېږي، ساه واخلي او پر پښو ودرېږي.

هيله ده راتلونکی کال کندهار مجله د دغسي ستونزو سره مخه ښه وکړي، او همدا ننني ګڼه چي د پر خولې لوېدلو څخه د ژغورني په ويلاړ دوو ګڼو لاس سره ورکړی او د دوو مياشتو پر ځای يې تر تاسو دوستانو او د دې مجلې تر مينه والو پوري په ډېر کړاو سره په څلورو میشاتو کي ځان ورساوه دا د دې مجلې د همت څرګندونه کوي، هيله ده د همت همداسي فرهنګي وياړلي سرچينې د ټولو لخوا وویاړل سي، څو دا وياړ يې د ژوندانه د بقا له پاره روښانه لامل وګرځي.

په همدې هيله

اداره




# د خپسکو میږ


ډاکټر عبدالرازق پالوال

هر څوک پر خپل خرء باندي سپور ؤ، او پښتون هم پر خپل خرء باندي. څوک پر موشه خرء، څوک پر سپېرء خرء، څوک پر چرګي خرء، څوک پر نیلي خرء، څوک پر مکراني خرء، څوک پر زبر خرء، څوک پر ګوره خرء، یا بل راز خرء باندي سپور ؤ. د هر چا خرء یو نوم لارء، او د پښتانه ګوره خر "جهالت" نومېدئ. دی پر دغه خپل جهالت نومي خرء باندي سپور ؤ.

پوښتنه دا ده چي نو دی چیري تلئ او څه ئې کول؟ دی تلئ بل وادء ئې کاوء. تاسي به و دې تولنیز واقعیت ته ځیر سوي یاست چي پښتانه مندي او پلرونه له هغي کورنۍ څخه چي د دوی وړ ورسره وزي و خپلو زامنو ته د دوی په اومه ځواني کښي له خپلي خوښي سره سم وادء ورکوي. بیا نو کله چي هلکان پاخه ځوانان سي، بیا نو دوی بله ماینه له خپلي خوښي سره سمه کوي. نو یوه ماینه ئې د مور او پلار د خوښي وي، او بله ئې د خپلي خوښي وي. هم وروستنۍ ماینه پر ګرانه وي او هم ئې لوښي او زامن تر وړاندنۍ پر ګران وي. څنګه چي پښتون په دغه پوریوتونې زمانه کښي اوسېدئ چي د تولني ډېرنیان ئې جاهلان ول او لږنیان ئې لوستي کسان ول. نو د پښتانه لومړنۍ ماینه هم جاهله وه. ځکه نو ده تلاښ کاوء چي بله ماینه ئې لوستې وي.

د ستر پښتانه لومړنۍ زاړې ماینه د قبایلیت خپسکه نومېږي، او دوهمه ناوې ماینه ئې، چي دی ئې د وادء په کلالت بوخت دئ، دا ئې د ګوندګلوۍ خپسکه بلله کېږي. ای یو ماینه ئې قبیلوي خپسکه ده، او بله چي لا ئې نجل ده، ګوندي خپسکه ده. نو دی په هم دغه نیامت پر خپل خرء سوپر سو څو چیري د وادء تالار ته

تللئ وي، او دا نجل گوندي خپسکه ئې و ځان ته واده کړې وي. نو د دې پر يوه اوږه باندې د دې زاړې مانيه د قبايليت خپسکه ناسته وه او پر بله اوږه ئې د گوندگلوی واده کېدونې نجل خپسکه ناسته وه. دوی د دې ځوني په لاسونو نيولي وې او خپل ځانونه ئې پوري ټينگ کړي ول.

که څه هم د قبايليت خپسکه د پښتانه له دې نيامته څخه آگاه نه وه چې دی له دوی سره چيري د څه له پاره ځي، خو پر زړه ئې دغه پېښه د پشم غوندې اوږېدله. ځکه ئې نو د گوندگلوی له خپسکي څخه داسې بد وړل لکه يو گدای چې له بله گدايه څخه بد وړي. د گوندگلوی خپسکي غوښتل چې دا مخ پر پورته باندې بېولې سوې وي، نه مخ پر کښته باندې. ولې د قبايليت خپسکي بيا د خرې مخ پر کښته باندې تگ غوښتئ. د گوندگلوی خپسکي و پښتانه ته ويل چې ستا خر دغې د قبايليت خپسکي دغسې غلط پوهولئ دئ چې مخ پر لوړې باندې به نه ځي. دې ورغبرگه کړه چې ښه، داسې نه ده. دغه د دې د خرې رښه ده چې دی مخ پر پورته باندې په ناورين سره ځي، او ځکه ئې نو نوم هم سرتمبه جهالت دئ. دا چې د دې خر مخ پر پورته باندې هسې غونځېدئ او ځومبېدئ، او نور خرې به په سپرلو تر دمخه کېدل، نو دې ننگيالي هم دغه خره د ځان لا پاره بې ننگي او پېغور بلله او زغملای ئې هم نه سوای. ځکه نې نو د خپل خرې مخ د کښې و خوا ته واړاوه. په داسې کولو سره، نو د دې خرې مخ پر کښته باندې په دوبله او غورځنگ سره ځغاستئ. په مخ پر کښته دوبله کښې د هيچا خر د ده تر خرې خو دمخه کېدلای نه سوای، پسې ور رسېدلای هم نه سوای.

کله چې به د دې خرې ماتې پښې وکړې، دې به د خرې تر لکۍ لاندې ځای ته مچک ور واچاوه، خرې به ئې غبرگې په هوا کښې ووهلې. په دغه سره به د دې د يوې او بلې اوږې د خپسکو سرونه سره جنگېدل. نو به يوه خپسکه و بلې خپسکي ته وخښمېده، او ورته به ئې ويل چې تا نو ولې زه په سر سره ووهلم. هغې بلې خپسکي به هم په خښم سره ورغبرگه کړه چې پر درواغو دې تکه پرېوزه، نو کله ما په سر ووهلې، خو تا سر راسره وجنگاوه. نو يوې گرمه پر هغې بلې باندې وراړوله، او هغې بلې بيا پر دې بلې باندې وراړوله. د دوی نانډريو به داسې زور واخيست چې تر چپلاخو وهلو پوري به سره ورسېدلې. کله چې به قبيلوي خپسکي چکه ورته کش کړه او چې وهله به ئې، گوندي خپسکي به ځان د شا و خوا ته ځنې وکيش، او نو ځکه به هم چپلاخه له ئې څخه خطا سوه، او د ننگيالي پښتانه پر سر باندې به وموښتله. بيا چې به گوندي خپسکي خپله انتقامي چکه ورسره خير کړه، قبيلوي خپسکي به ځان د شا و خوا ته ځنې وکيښ، او چکه به ئې له دې څخه خطا سوه، دا به بيا هم د پښتانه پر سر باندي ولگېده. دغسې نو د يوې او بلې خپسکي چپلاخي د پښتانه پر سر باندې داسې موښتلې لکه دوه پښان چې سره اوسپنه له يوې او بلې خوا څخه، يو په بل پسې، په سوټکانو سره وهي. نو د پښتانه پر سر باندې هم چپلاخي په دغسې توگه سره موښتلې، او هغه هم په داسې ترخ کښې چې خر به هم په دوبله ؤ. و دغه ته د عشق او معاشقې په ژوندانه کښې خواږه خوږ ويل کېږي.

حميد ئې يوه داسې ادانه لري :-

چې ئې وکيښ ښځ توبرې د يار له لاسه
ساده دل د اميد زنئ زرغون وکيښ

کله چې به دغه دوې سيالاني خپسکي سره ستړې سوې، نو به ئې ساه واچوله. خو بيا به هم دوی يوې و بلې ته خورا بد - بد کتل. په دغې ستړيا او سړتيا کښې به پښتون بيا هم د خپل خرې تر لکۍ لاندې ځای ته مچک ورواچاوه. خرې به بيا هم په هوا کښې غبرگې ووهلې، او په دغه سره به د دواړو خپسکو سرونه بيا هم سره وجنگېدل. د دوی دوو به بيا سره خپرې سوې، يوې به د سر سره جنگېدنې پړه پر هغې بلې باندې وراچوله څو شخړه به ئې بيا تر غچنو (غچ اخستونو) چپلاخو پورې سره ورسېدله. د دوی چپلاخي به بيا هم هغسې له يوې او بلې څخ خطا کېدلې او د پښتانه پر سر باندې به داسې موښتلې لکه دوی چې به په دواړو سره يوه بې تاله او بې توله طبله وهله.

ستا ورستې دې خاورې په سر سې ! آيا و تا ته خپل عمل در معلوم دئ چې ته د کومې زمانې يې؟ ته دونده جاهله يې چې له خپله عمره څخه ناخبره يې ! پر تا باندې زرونه کلونه تېر سوي دي او ته لا ژوندۍ يې. ته دې د خپلې تولنې جهالت ژوندۍ ساتلې يې. دښمنانو دې له دغه جهالته او قبايلې وېشنې څخه په خپله گټه کار اخستئ دئ. په تا خو څه نه کېږي، نور ئې لا هم دريکښې پوک کړي دي، او لا ئې نوره هم غتولې يې.

د قبايليت خپسکي په غبرگاوي کښې ورته وويل :-

توره تبه دې درگډه سې ! ستا ئې زما په پوهې او ناپوهې څه کار ! زه پر دې باندې شکر کاږم چې ستا له دې شيطاني پوهې څخه خو بې برخې يم. ته به په خپلې دغې شيطاني پوهې سره نازېږې چې څنگه د خلکو په منځ او په زرونو ورنوتلې يې ! د تولنې دښمنانو مې هم ستا له لارې څخه و ما ته تر مخکې لاندې سوپ (نغم يا نقم) راکښلئ دئ.

په دغه ترڅ کښې به پښتانه بيا د خپل خرې تر لکۍ

لاندي ځای ته مچک ورکښې ایسنئ او خرء به ئې بیا هم په هوا کښې غبرگي ووهلې، او په دغه سره به بیا هم د خپسکو سرونه سره وجنگېدل، بیا به دوی پر یوې او بلې باندي د چپلاخو وارونه کول. کله چي به د دوی خپړي د پښتانه پر سر موښتني ځخه خوږ سوې، نو به ئې خولې سره وازي کړلې. په دغه ترڅ کښې گونډي خپسکي و قبیلوي خپسکي ته داسي وویل :-

تا خو نو ښه د مروښې نگښې راتـه اودلئ دئ. دا دي ستا پاله سي. ستا بل جهالت دا دئ چي ایډیالوجي نه لرې. تا خلگ بې ایډیالوجي ځله وېشلي دي. تا دوی پر تش نامه باندي خېل - خېل، زیي - زیي ، او پر ډلو ټپلو باندي ځله وېشلي دي. آیا تش نوم هم اډیالوجي کېدلای سي؟ آیا ته و ما ته ویلای سې چي دوی دي ولې او ځنگه داسي ځله وېشلي او پاشلي دي؟ هو، زه پوهېږم چي د خلگو ماغزه دي په دغه تش نامه سره داسي شکېل کړي دي لکه انتر منتر چي دي پر ویلئ وي. تا له کوچنیوالي ځخه لا د دوی په غوږو کښې داسي ورپوک کړي دي چي تاسي ځوک او دوی ځوک دي.

د قبایلیت خپسکي په غبرگاوي کښې د گونډگلوی د گونډگلوی و خپسکي ته داسي وویل :-

تکه دي دریانـدي ولوېږي ! ستا دا پوچه کلوچه ایډیالوجي بیا ځه بلا ده چي له سمو خلگو ځخه دي د بگیانو اسان جوړ کړي دي چي یوازي بـه سیده مخامخ گوري، نه و خواوو شا تـه. بلـه ناخوالـه خـو دي لا دا ده چي له آزادانو ځخه مریان جوړوې، تـه د دوی د پوهنې او اقتصاد مراندي په لاس کښې نیسې. دا لا ځه چي د دوی په خوارو ته کار لرې چي ځه او ځنگه خوارې بـه خوري، د دوی پـه کـالو ستا کـار دئ چي د کیفیت او نوعیت له مخي به ځه راز او شکل کالي اغوندي - لـه چا ځخه دي لنگوټیان جوړ کړي دي، لـه چا ځخه دي رخچینیان جوړ کړي دي، له چا ځخه دي پیخیان جوړ کړي دي، له چا ځخه دي پکولیان جوړ کړي دي، او لـه چا ځخه دي بیا سرتورسریان یا لځسریان جوړ کړي دي، د خلگو په موزیک اورېدني هم ستا کار دئ چي ځوک به یو راز موزیک او ځوک به بیا بل راز موزیک اوري. آیا دغه خوارې خوړنگ، کالي اغوستنگ، او موزیک اورېدنگ د کیفیت او نوعیت له مخي ځخه ستا ایډیالوجي ده؟ آیا ته و دغې وېشنې او پاشنې ته ایډیالوجي وایې؟ تکه دي پر دغې ایډیالوجي باندي ولوېږه له تا سره ! آ بدمرغی ! ته دا خلگ دغسي د خوند او بې خوندی د ژوندانـه پـه برغزوو سره په مغزو مه نیسه ! دوی خواران یوازي یوه پلا ژوند کوي. دوی پرېږده چي له خپلې خوښی سره سم د خپل زړه ارمان وکاږي. زه پوهېږم چي دوی ستا تر

استبداد لاندي داسي کولای نه سي، او ته د آزادی او فردیت دښمنه یې ! ما به خلگ تش پر نامه باندي ځله وېشلي وي، خو تا پر هر ځه باندي ځله وېشلي دي.

په دغه ترڅ کښې به پښتانه بیا هم د خپل خرء تر لکی لاندي ځای تـه مچک ور ننه ایستئ، او خرء به غبرگي په هوا کښې ووهلې. په دغه سره به د خپسکو پړزي بیا سره وجنگېدلې، او یوې به و بلې تـه چکې سره کش کړې. کله چي به په چکو وهلو سره ځله ستړي سولې، نو به ئې خولې سره وازي کړې، او بیا بـه دوی او د دوی نادري وې. حزبي خپسکي به و قبیلوي خپسکي ته ویل چي ته خو جاهله یې، نو خودښکه خو به ته په دا خپل دین هم سمه پوهېږې. جهالت او دیني کتابونه ! دا ځنگه سره کېدای سي؟ جهالت گمراهي ده، او ته گمراه یې !

قبیلوي خپسکي به ورغبرگه کړه :-

زه که به گمراه یم یا نه یم، خو ما ارادتاً هیڅوک گمراهان کړي نه دي. دا ته یې، ستا دي سر خاوري سي چي په لوی لاس سره ناپوهان بې دینه کوې، نه د زدکړو او فهم له لاري ځخه. دا دي یا احمقانه غلطي ده، یا بې انسانیته دښمني چي له خپلو گونډیانو سره ئې پالنه کوې.

د دې له پاره چي شپه ئې په روڼا کښې لا یوه ځای ته رسولې وي، نو به پښتانه بیا هم د خپل خرء تر لکی لاندي ځای ته مچک ورواچاوه، او خرء به د شا و خوا تـه غبرگي ووهلې چي له دغه سره سم به د خپسکو سرونه بیا هم سره وجنگېدل، او د دوی به سره خپړي او بیا بـه ئې وریسې سره نادري سولې.

د گونډگلوی خپسکي بـه د قبایلیت و خپسکي تـه ویل :-

آ بدمرغي ! تـا دا خپل خلگ د ځـه لـه پاره ځله وېشلي دي؟ دغه کار دي د ښېگڼې له پاره کړئ دئ، که د بدودی له پاره؟ ته دي و ما ته خپله ښېگڼې راوښیه !

د قبایلیت خپسکي به ورغبرگه کړه :-

خوار حیرانه، او بوره وراره سې ! ته زما له نامه ځخه کار اخلې، او خپل گونډیت زما د قبایلیت پر اساس بانـدي غـوړوې. ای زمـا قبایلیـت پخپـل گونـډیت درکښېباسي. که به ما د خلگو په وېشنه کښې بد کار کړئ وي، نو ته بد ترین کار کوې چي لـه هغـه ځخـه اخستنه کوې، او پخپله گته قبایلیت تقویه کوې. دا خـو تـه لـه ما سره ښه کوې. خو زه ستا لجاجت بل ځای وینم، او هغه دا چي ته کورنۍ ماتوې، ورونه ځله بېلوې، خوندي ځله بېلوې، خوندي او ورونه ځله بېلوې، او آن چي لـه پلار او مور سره ئې لا هم بدورده کوې. ما تش د نامه بېلوالئ

ورکړئ دئ، خو تا د هر څه بېلوالئ ورکړئ دئ. اوس نو زه بدمرغه یم کـه بـه تـه د مرغـو بدمرغـه یـې؟ تـه زمـا لـه قابلیت څخه پخپله ګټه کار اخلې. داسې ده که نه؟

بیا به دوی په چکو او چپلاخو سره وهل چې هغه به تولې د ننګیالي پښتانه پر سر باندې موښتلې. پښتانه بـه بیا هم خپل مچک د خره ولکی ته ورغزاوه، او خـر بـه غبرګي په هوا کښي ووهلې، او په دغـه سره بـه د خپـسکو ککری بیا هم سره وجنګېدلې، او د دوی نانډری به بیرته له سره څخه پیل سولې.

د قبلیـت خپـسکي وګونـدي خپـسکي تـه داسـي ایشووتکئ پېغور ورکړ:-

ستا لوی شیطانت او بدودئ دا دي چې د خلګو تر منځ اختلافات پیدا کوې او ورډېروې ئـي، او هـم ئـي تـر منځ تضاد شـدید کـوې. کـه تـا د انسانیت بشردوسـتانه احساس لرلای، نو د دوی تر منځ دي باید تضاد کم کـړئ او اختلافات دي ئي لـه منځـه وړي واې. خـو زه سـتا پـه مکار کسب و کار ښه پوهېږم. دا چـي تـه ځینـي خلـګ د پوهني او کمال و لوړواوي ته رسوې، د مـال او ثـروت لـه مخي ئي بډایان کوې، او نور بیا وګړي ساتې، او خـواران کـوې ئـي څـو دوی دي د هغيـو لـه پـاره مـزدوران او خدمتګاران کړي وي.

د حزبیت خپسکي په غبرګاوي کښي منګ کـوونکئ (سرساموونکئ) جواب ورکړ:-

ته ولې په ما پوري تور لاس نیسې! ما کله ته جاهلـه کړې یې؟ تا پخپله خپـل ځـان جاهـل کـړئ دئ. کـه تـا داسې کړئ نه وي، او ته کوچینوتې وې، نـو بیـا خـو سـتا پلار او مور دغه جهالت درېخوا کړئ دئ. تـه ولـي مـا پـه توروې؟ جهالت، جنګ او تخریب ستا د پلار او نیکـه پـه خته او رشه کښي در اغېبل سوي دي. ته یوه پلا پـه خپـل ګرېوانه کښي وګوره چې ته د خپلو کومو ودانیو او ښېګنـو په تر سره کولو او لرلو سره تازېږې؟ ته دا راتـه ووایـه چـې تاسې د خپلـو کومـو ښـو او ښـادیو خاونـدان یاسـت یـا واست؟ دا نور وخت خو زه نه وم، نـو دا خپـل خلـګ مـو چا در نالوستي، بې علمه، بې کسبه و بې کماله، بـې هنـره او بې مهارته در وګړي کړي ول؟

جنګیالي پښتانه به بیا د خره تر لکـی لانـدي ځـای کښي مچک وښوراوه او د خپسکو تندیان بـه بیـا هـم سـره وجنګېدل. دوی به بیـا هـم پـه سـوکانو او چپلاخـو سره ووهل.

ګوندي خپسکي به ورته ویل:-

د جاهل له جهالته څخه به څوک څـه توقـع ولـري، تش بې ایډیالوجي نوم، نه مرام، نه هدف، او نه هم هـیڅ پلان او پروګرام. سوونه کلونه او زرونه کلونه به بیا هـم هـر څه هغه په هغه وي.

د قبلیـت خپـسکي بـه پـه غبرګـاوي کښـي ورتـه وویل:-

ته په خپل اجتماعي او اقتصادي استبداد سره دي پـه ښـو سـمو، او د آب پـه خاونـدانو سـره هـر څـه کـوې، پروپاګند په کوې، درواغ په وایې، غلا په کوې، تخریب په کوې، چوغلئ په کوې، نـور ئـي پـه تـوراوو سـره تـوروې، رنګونه په کوې، تېر و بېر پـه کـوې، دسیسي پـه جـوړوې چې ستا ګوندیان ئي بې درېغه کوي، دغه ناخوالې پـه تـا کښي روایت لري. ناروا دي ور روا کړي دي. تا نه یـوازې تولنه ځله وېشلې ده، بل لا دي کلتور هم انډاري انډاري کړئ دئ، علم دي هـم ونـدي کـړئ او پـه بېلا بېلـو ډلـو پوري دي منحصر کړئ دئ. آیا دغـه چـور او چـاري ستا ایډیالوجي ده؟ دا وحشـت دئ، مدنیت نـه دئ، آیـا تـه دي و ما ته دغه بدمرغه ایډیالوجي راپېغوروې چې زه ئې نـه لـرم؟ او شـکر دئ چـي نـه ئـي لـرم. زمـا لـه دغـسي ایډیالوجي څخه توبه ده، زه ځنې بېزاره یم، او له تا سـره ئې غندم. ستا بدمرغي دي مځ هـم پـه پېـټ او پـه ناټـک سره پټ سي! آزادان باید له تا سره په مخامختیا کښي د جهاد اعلان وکړي څو دا هر څه آزاد سوي وي.

د حزبیت خپسکي و قبیلـوي خپـسکي تـه پـه پورتـه سره ورغبرګه کړه:-

توره تبه دې په خوا سه، که به نه وایم لا هم! ته څه کوې چې پښې دي پـې راواخسـتې. دا څـه نـاورین دئ چې په تشه خېټه دي و ما ته ملا ترلې ده. ما ګمان نه کاوه چې ته به د جهالت په پوچو مغزو سره دونده لـه وا و ډکـه یې. ستا شلالي له دې کدو سره څخه هـم داسـي کېـکي رغاوي راوزي چې زه دي داسي منګه کښېنولې یم.

په دغه ترڅ کښي پښتانه بیا د خـره تـر لکـی لانـدي ځای ته مچک ورچخ کړ، او خره هم بیـا د شـا غبرګـي پـه هـوا کښـي ووهلـې، او خپـسکي ئـي مـخ پـه مـخ سـره وجنګولې. دوی هم بیا یوې پر بلې باندي ګرمـه وراړولـه، او د نانډریو بله لاره (مقام، طرز) ئـي ونیولـه، د قبلیـت خپسکي وګوندي خپسکي ته داسي وویل:-

تـه څونـده بدمرغـه یـې چـي پخپلـې مجمجلـې ایډیالوجۍ سره دي بې آزاره انسانان پـه تېرونـو سـره شکوې، په خپلوانو سره ئي لار وهې، په دوستانو سره ئـي دسیسې ورته جارباسې، په اشنایانو سره ئي ډرنامې ورتـه جوړوې، او په پرېدیانو سره ئـي لا ښکـنځي هـم. لـه دې خلګو څخه اوس تا څوک جوړ کړي دي چې خولـه ئـي خوله نه ده، او مخ ئي مخ نه دئ، بل لا یوازې ستا یـو راز و بل راز چېراسیان دي. دا تـه خبیشـه څونـده لـه خباثتـه څخه ډکه یې؟ تا و چا ته څوک ورېږي اینئ نه دئ، مګر

شیطان، نو ستا له لاسه باید سړی و شیطان ته ننواتې ورسي. کله چې ته نه وې، دا شیطان خو هم دونده غمور نه ؤ، لکه اوس چې ته یې!

د حزبي خپسکي لړمون د کټوي غوندي ورته ایشېدئ، او و قبیلوي خپسکي ته ئې په خښم سره داسي وویل :-

ته سوچ پوچ جهالت یې. په جهان کښي قابلیت او جهالت د توري تیارې غوندي غندل کېږي. څنګه چې خرافات له جهالت او توري تیارې سره تړلي دي، نو ته له خرافاتو ځخه ډکه توره دربه یې، او د توري بوړي غوندي ځله ټک وهې، که به نه وایم لا هم.

قبیلوي خپسکي ورته وویل چې ستا پېغورونه او لغازونه تر ښراوو پوري ورسېدل. تر ښکنځلو پوري دي نو زۀ هم نه پرېږدم. او په دغه ترڅ کښي ئې د ښي لاس خپره ورته موټ کړه، او دغه سوک ئې له خپله کلغښي سره نژدې داسي - داسي ورته ښوراوۀ لکه ځوک چې د چایو په پیاله کښي د لړلو له پاره چمچکی ښوروي. په مخامختیا کښي ئې حزبي خپسکي هم خپله د ښي لاس خپره ورته موټ کړه او خپل سوک ئې هم هغسي ورته ښوراوۀ. بیا دواړو خپل سوکان د شا و خوا ته کش کړل، او سره پر پره سولې، بیا ئې نو پخپل ټول زور سره خپل سوکان مخامخ سره ور وبرول چې د ښتانه پر سر باندي په هوا کښي چړاک سره وجنګېدل. که د دوی سوکان اوسپنیز یا ډبرین وای، اورني سرۀ بخري به ئې و هري خوا ته ځني په هوا سوي وای. د دوی سوکان بد خوږ سول. ځکه نو یوې هم خپل سوک په تخرګ چخ کړ، او بلي هم تر بغل لاندي ونیوئ، د یوې تر سترګو هم لاري - لاري اوښکي وبهېدلې، او د بلي تر سترګو هم پر - پر اوښکي توی سوې. دوی تر هغو پوري تاو - تاو کېدلې تر څو چې ئې د لاسونو دردونه آرام سول. بیا به ئې نو د سترګو تر کونجانو سره وکتل، خو بیرته به ئې ژر مخونه ځله واړول. تر دغه وروسته ئې نور خروښ ختلئ ؤ، او د دوی تر منځ آرامه آرامي سوه. البته په زړۀ کښي به ئې ښکنځل سره کول. ډېر کله ترخه عملیه خوږه پایلامه لري. دوی هم تر بنتابه (بن تابه) دمخه لا آن سره ومانه.

ښتانه پر خپل ډوبلن خرۀ باندي کری ورځ لار ووهله. تره غونئ مهال دی و یوې ځلبلاندي مانی ته ورسېدئ چې هغه د نیرنګ باز کور ؤ. تر خواړو خوړلو وروسته، کله چې د چایو چیښلو مهال ؤ، نو نیرنګ باز د لاري د خواریو او تکالیفو پوښتنه ځني وکړه. دۀ خپل شکېدلئ سر ورښکاره کړ چې د ډېرو کشولو، چکو او چپلاخو له اسیته ځخه ئې ورېښتان برلوکن او سر ئې خورا غومبسکه - غومبسکه سوئ ؤ چې د شیطان به لا هم په ظاهره زړۀ پر سوځېدلئ وای. له دۀ ځخه ئې بله پوښتنه دا وه چې نو دوی په څه پسې دي، او ولې چېرته تلوني دي؟ دۀ ورته وویل چې یوه ماینه مي له ډېري پخوا ځخه کړې ده، خو څنګه چې هغه جاهله ده، نو په هغې سره مي کور جوړ سوئ نه دئ. اوس مي بله لوستې نجل موندلې ده څو ګوندي په دې سره به مي کور ټول سوئ او ودان سوئ وي. نو اوس په داسي چا او ځای پسي ګرځم څو دا ئې په شرعي او قانوني توګه سره راوادۀ کړې وي. بیا چې کور ته وګرځم، هورې د وادۀ د درب و درچ ښادي پر جوړوم.

نېرنګباز ورته وویل چې زۀ ئې دغه نن شپه چاره درکوم. کله چې شپه پخه سوه، دۀ د قبایلیت خپسکه او د حزبیت خپسکه دواړي له خپلي ماینې او لونو، زامنو او مړندو سره وروغوښتلې، او و ښتانه ته ئې د ګوندګلوی خپسکه هم په مراسمو، ښو او ښادیو، او درب او درازۀ سره ور وادۀ کړه، او و دواړو خپسکو ته ئې د وادۀ ګوتمیاني په مبارکي کښي ورکړې، او دا ئې ورته وویل چې تر دې وروسته به دي دوی نوري پر اوږو باندي نه در سپرېږي، بل لا به دي په غېږ کښي، پر یوۀ او بل ورانه باندي، در کښېني. یوه به دي یو برېت درتاووي او بله به دي بل برېت درتاووي. ځکه نو ښتون په دغه شاني سره د ښو د خپسکو مېړۀ سو. داسي ده نو!

تر دغه کار وروسته نېرنګباز دوی په یوه خونه سره ننه ایستل چې د لاري ستړي یاست څو ګوندي څه آرام به مو کړئ وي. ښتون هم د دواړو خپسکو په منځ کښي پرېوتئ. دۀ چې به د هري خپسکي و خوا ته مخ وروااړاوۀ هغې بلي خپسکي به د وادۀ ګوتمی ورته په ګوته کړه چې نو ته خو زما مېړۀ یې، دۀ به هم ژر مخ د هغې و خوا ته ورواړاوۀ. په داسي کولو سره به هغې بلي خپسکي هم ګوتمی ورته په ګوته کړه چې مانا نو ته خو زما مېړۀ یې، دۀ به ژر مخ د هغې و خوا ته ورواړاوۀ. هم داسي به د ښتانه مخ کله و یوې ته او کله و بلي ته ؤ، څو بالآخره ستوني ستخ پرېووت چې یوه خپسکه ئې پر یوۀ مړوند او بله ئې پر بل مړوند باندي ورپرته وه، دوی تر ګهېزه پوري یوه سترګه خوب هم نه وکړای سوای، که څه هم د لاري ستړي او ستومان ول.

نیرنګباز و خپلي کوړمې ته وویل چې ښادي و کور ته درغلې ده او تاسي خوند نه پر اخلئ، ځکه نو د دۀ ماینې، لونو، زامنو، مړندو، او نمسیانو دریه، هارمونیه، تبلې، رباب، سارنګی، شپېلی، او نور د موزیک آلات ور واخستل او د دوی د خوني و مخې ته ئې د درب و درچ ښادي پر جوړه کړه. دوی هم موزیک ورته ږغاوۀ، بدلي ئې ورته ویلې، ایشلي او اتنونه ئې تر سپېدو داغه پوري

ورته کول. د ځینو بدلو نمونې ئې داسې دي :-

نه ئې ستن وه، نه ئې تارۇ
کوزده گل - گل ئې د بازارۇ
کوزده گل - گل ئې د بازارۇ

دی د جهل په تور تور دئ
نوم ئې پروت - پروت پر کلي کور دئ
نوم ئې پروت - پروت پر کلي کور دئ

خوار ئې ښار دئ خوار ئې ښور دئ
د شیطان - طان کار پکښې خپور دئ
د شیطان - طان کار پکښې خپور دئ

پښتون وکړې دوې خبسي
اوس په ویار - ویار ئې کېږي تسي
اوس په ویار - ویار ئې کېږي تسي

❀ ❀ ❀

خر پر دوه - دوه نوکه کېږي
خر پر دوه - دوه نوکه کېږي

غرونـدی ئې ورته راوړئ
زنگولې - لې ئې نه شرنگېږي
زنگولې - لي ئې نه شرنگېږي

خرء لښتي ته پښې خرلي
خرء لښتي ته پښې خرلي

ور په غاړې غرونـدی کړ
ږغږغې - غې ئې نه ږغېږي
ږغږغې - غې ئې نه ږغېږي

مه خپسکه وای مې نوم وای
مه خپسکه وای مې نوم وای
مه خپسکه وای مـ . نوم وای

مې د نیمې شپې ژړا وای
مې د څاښت - څاښت مهال بېلتون وای
مې د څاښت - څاښت مهال بېلتون وای

❀ ❀ ❀

خوري دوه - دوه تاره اخلئ
کوځې ورو - ورو - ورو بېلويه
کوځې ورو - ورو - ورو بېلويه

خپسکې د پښتانه ده
تر غرمې - مې ئې ځندويه
تر غرمې - مې ئې ځندويه

خوري سره سوه سره غرمه سوه
خوري سره - سره سوه سره غرمه سوه

خوري سره - سره سوه سره غرمه سوه

خپسکو مو په لاس راکړئ
نن مو بیا - بیا دربانـدې شپه سوه
نن مو بیا - بیا دربانـدې شپه سوه

خور سهار دئ زمور تلوار دئ
خور سهار - هار دئ زمور تلوار دئ
خور سهار - هار دئ زمور تلوار دئ

خپسو مو په لاس راکړئ
زمور کور - کور پر کندهار دئ
زمور کور - کور پر کندهار دئ

❀ ❀ ❀

ر : پښتون د ښې مايني هوس لرينه
پښتون د ښې مايني هوس لرينه
گ : خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
خودښکه پښتون ری پکښې وهينه

❀ ❀ ❀

ش : چې وخت د نيمو شپو سي پښتون ئې پر سپين نس لاس تېروينه
ر : چې وخت د نيمو شپو سي؟
ش : چې وخت د نيمو شپو سي پښتون ئې پر سپين نس لاس تېروينه
گ : خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
ر : پښتون د ښايستې ارمان لرينه
پښتون د ښايستې ارمان لرينه
گ : خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
ش : چې وخت د نيمو شپو سي پښتون ئې لپ پر لپ ورا وينه
چې وخت د نيمو شپو سي؟
ش : چې وخت د نيمو شپو سي پښتون ئې لپ پر لپ ورارويته
گ : خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
ر : پښتون د ښې پوښې هوا لرينه
پښتون د ښې پوښې هوا لرينه
گ : خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
ش : چې وخت د نيمې شپې سي پښتون ئې پوښې ايسته غورځوينه
چې وخت د نيمې شپې سي؟
ش : چې وخت د نيمې شپې سي پښتون ئې پوښې ايسته غورځوينه
گ : خودښکه پښتون ری پکښې وهينه
خودښکه پښتون ری پکښې وهينه

❀ ❀ ❀

ر : رنگبازه، د نيرنگباز مايينه.
گ : گلنازه، د رنگبازي خوايښې.
ش : شهنازه، د نيرنگباز خوښينه او نوري : د نيرنگباز لوني، خوندي او مرندي.
موزيک والان : د نيرنگباز زامن.
اتنياني او ايشلبازاني : يادي کړي ښځمني او هلکان.

# "معیاري پښتو"

## ته یو کتنه





محمد معصوم هوتک/کاناډا

"معیاري پښتو" د ښاغلي ډاکتر عبدالرازق پالوال لیکنه ده، چي د ۱۳۸۴ هـ ش کال د تلي په میاشت کي د شال یونایتید پریس مطبعې د یو زر ټوکو په تېراژ چاپ کړې ده. کتاب له فهرست پرته ۴۴۴ مخه دئ چي په دې کي یې متن ۴۱۰ مخه او پاته ۳۴ مخه یې لومړنی، اوستری خبرنه او بابېری پای څېړنه، اخستیځونه (ماخذونه) او البوشاکي دي. د کتاب چاري ښاغلي مطیع الله روهیال سر ته رسولي دي او کمپیوټري لیکنه یې پخپله مولف کړې ده. د کتاب پر وقایه باندي یې د ژبې هر اړخیز تعریف او ورپسې داسي سپارښتنه کښلې ده :-

لومړی خپله ژبه سمه زده کئ !
بیا په وړغېږئ او پر وړغېږئ !
بیا لیکنه په وکئ او لیکنه پر وکئ !

د کتاب فرعي نوم "د پخوانی ختیځي پښتو له نوني څخه و اوسنی ختیځي پښتو ته پرتلیزه کتنه" دئ (۱).

ډاکتر پالوال د خپل دغه کتاب کمپیوټري چاري پخپله سر ته رسولي دي او داسي ښکاري چي په لیکلو کي یې د کمپیوټر

له عربي پروګرام څخه کار اخيستی دئ. ده اريان د ۴۴۴ مخونو پښتو توري په لاس ور سم کړي دي او خدای خبر چې څونه به يې ستخ کړي وي.

ډاکټر عبدالرازق پالوال د کابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي د انتروپالوجي استاد و او په دغه ځانګه کې يې د امريکا په متحده ايالاتو کې ډاکټري اخيستې ده. دی په ژبپوهنه کې د پراخي مطالعې څښتن دئ او له پوهنځي څخه تر فارغېدلو وروسته يې له ښاغلو مجاوراحمد زيار صاحب او بايزيد اشک سره يو ځای په هغه پروژه کې فعاله برخه اخيستې وه چې د يونسکو له خوا د افغانستان د ژبو د اطلس جوړولو په خاطر جوړه سوې وه.

اروانښاد پوهاند ډاکټر محمد رحيم الهام ليکي چې "دې ډلې د افغانستان درو او باندو ته مخه وکړه او د ګړدود پوهني د څېړندود له علمي اصولو سره سم په ډېرو ناخوالو شرايطو کې د آرياني ژبو د ګړدودونو په ثبتولو لګيا شول او د ژبني ګړدوديز اطلس د تدوين له پاره يې ښايسته ښه مواد ثبت کړل." (۲الف)

پوهاند دوکتور زيار صاحب په دغه ټيم کې د پالوال صاحب رول ته ډېر اهميت ورکوي او خپل "تکړه ملګری" يې بولي (۲ب). دغه راز په ژبپوهنه کې هم د پالوال استعداد مني او وايي چې تر انتروپالوجي و "ژبپوهني ته ډېر تيار و" او دا چې هغه (پالوال) د ژبپوهني لار پرېښوده او انتروپالوجي او اتنولوجي ته يې مخه کړه، افسوس کوي (۳).

معياري پښتو

د پخواني ختيځي پښتو له نوني څخه
واوسني ختيځي پښتو ته پر تليزه کتنه

ژبه د پوهوني او پوهېدني هغه صوتي سيمبوليک وسيله ده،
چې ودې او تکامل ئې بشر د انسانيت و تکاملي پړاو ته او ده
ليک ايجاد ئې انسان د مدنيت و تکاملي پړاو ته رسولئ دئ

لومړي خپله ژبه سمه زده کئ !
بيا په وړغږېږئ او پر وړغږېږئ !
بيا ليکنه په وکئ او ليکنه پر وکئ !

ليکوال

ډاکټر عبدالرازق پالوال

علامه رشاد رحمة الله عليه ليکلي دي چې د پښتو- جاپاني قاموس ليکوال او د جاپان د شيمونوسکي نومي بندر په پوهنتون کې استاد ښاغلی نواتاتېڅوسن وايي:- "زما د پښتو ژبې استاد ښاغلی عبدالرازق پالوال دی." (۴). ډاکټر پالوال د (پښتو مصدر) په نامه يو نوښتګر اثر کښلئ دئ چې په ۱۳۵۰ ش کال د ورمې مجلې پر ځای د ژبو او ادبياتو پوهنځي له خوا چاپ سوی دئ. ده د دغه کتاب تر ليکلو

وړاندي يې يوازي پر ژبه باندي ديارلس درنې تحقيقي مقالې کښلي وې. پر هيواد باندي د ثور د سرې فاجعې تر نازلېدلو وروسته، ډاکټر پالوال جرمني ته مهاجر سو او د مهاجرت په شپو کي يې پر پښتو ژبه باندي يو لړ ليکني په ډېوه مجله کي خپرې سوي دي. دی په ۱۹۹۷ع کال بيرته وطن ته ستون سو او اوس په کندهار کي اوسي.

ډاکټر پالوال د (معياري پښتو) کتاب د کښلو انګېزه داسي بيانوي :-

"کله چي به مي ورځپانه، مجله يا کتاب لووست، غلطيو به ئې زهيرولم. يا کله چي به مي د راديوګانو خپروني اورېدلې، نو د ويندويانو غلطيو به ئې ځو رولم. لکه پخوا اوس هم کله چي د پښتو په اورېدني او لوستني بوخت سم، پښبه بيا هم هغسي وي. په راديو او کتاب يا ورځپانه کښي هر څوک خپله ځايي وګړيزه لهجه وايي يا ليکي، يا له ځانه څخه نور څه وايي، او هغه هم سم او صحيح بولي. دغه کسان نه په ژبپوهنه پوهېږي او نه ئې د پښتو ګرامر زده کړئ دئ، البته ځينو به لوستلئ وي. له ليکني او ږغېدني څخه ئې داسي ښکارندېږي لکه د ځينو کسانو چي دي پښتو مورنئ ژبه لا هم نه وي، يا دي په فارسي محيط کښي لوئ سوي وي. دوی چي هر څه وويل يا وليکل، نور مشران ئې روند تقليد کوي او د دوی کشران اؤمه ځوانان بيا د دوارو روند تقليد کوي. نو هغه تقليد سالاران او دغه ئې تابعين دي. د دغسي کسانو د فهم له پاره مي دا پر ځان لازمه وبلله چي تر ممکنه حده پوري پر پښتو باندي يوه مقايسوي ليکنه وکم، او دغه ليکنه بايد د اصولو پر اساس باندي وي ... که نه ګانه د فهم خاوندان زما له ليکني سره لږ ډېر مخالفت ولري، له هغوی څخه زماهيله دا ده چي خپل انتقاد، اعتراض، او نظر به زما او هم نورو لوستونکو د سمون په نيامت چيري چاپ کي او يوه کاپي ئې و ما ته هم راولېږي يا لږ تر لږه ئې ځرک په لاس راکي، يا خپل نظر په ليکلې توګه راورسوي، زه به ئې مننه کوم (۵).

ډاکټر پالوال د کتاب په سر کي د ژبي پر پيدا ايښت، منشاء او وده باندي ږغېدلی دئ او له پښتنو سره يې د سامي نژاد د اشخاصو د ګډون مسئله منلې ده خو په دې لړ کي يې د پښتو ژبي ساميت نه دئ منلئ او دا نظريه يې، چي پښتو سامي ژبه ده، رد کړې ده (۴۱مخ).

د کتاب ليکدود له اوسني مروج ليکدود سره توپير لري. په لومړي وار لوستلو کي به ښايي زما په شان هر لوستونکی ستونزي ور سره ولري.



د معياري پښتو ليکوال ډاکټر عبدالرزاق پالوال

د پښتو ژبې د ليكدود د سمولو او د معياري ليكنې له پاره هڅې، كه په معاصره زمانه كې څېړو، تر ټولو وړاندې د ارواښاد علامه حبيبي هڅې د يادولو وړ دي. علامه مرحوم د طلوع افغان اخبار د چلولو پر وخت يو لړ اكاډيميكې هڅې پيل كړې چې په هغو كې يې د املايي يووالي له پاره كار هم شامل و. په طلوع افغان كې په دغو راپيل سوو هڅو كې له علامه حبيبي سره ارواښاد مولانا قيام الدين خادم، ارواښاد حاجي ولي محمد مخلص، ارواښاد محمدګل نوري او ارواښاد عبداللطيف هوتک هم ملګري ول. د دې هڅو په تعقيب د كابل پښتو ټولنې هم د ژبې د ليكدود او معيار په باب هلې ځلې كړې دي او د لروبر پښتنو ليكوالو ګډ تلاښ ته يې زمينه برابره كړې ده. د پښتو ټولنې هڅې كه څه هم ناكافي بلل سوي دي، خو پخپل وخت كې د ستاينې وړ دي. ورپسې د كابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي د هغو ځوانو استادانو له خوا، چې په خارج كې يې نوي ژبني اكاډميک تحصيلات سر ته رسولي وه د پښتو ژبې د كره كېدنې خوځښت راپيل سو چې په هغو كې ارواښاد پوهاند ډاكټر محمد رحيم الهام، ارواښاد حبيب الله تږي، ارواښاد پوهندوی نوراحمد شاكر، پوهاند دوكتورمجاوراحمد زيار، ډاكتر عبدالرازق پالوال، استاد بايزيد اڅک او نورو برخه اخيستې وه. په دوی كې پوهاند دوكتور زيار صاحب هم د كار د حجم په لحاظ او هم دې چارې ته د خپل ټول ژوند د وقف كولو له امله تر نورو زيات كار كړی دئ. پوهاند زيار صاحب ته خپلو ګوندي او سياسي اړيكو دومره پراخه زمينه برابره كړه چې تر ها نورو استادانو ډېر وړاندې ولاړ سي ځكه هغوی په سياسي لحاظ مغبه، وب واقع سوي وه، ځيني له هيواده وتلو ته مجبور سوي وه او هغوی چې پاته وه هم چا مخې ته نه پرېښوول.

له همدې امله د ژبې د كره كولو كار ته يوازې ډاكټر صاحب زيار اوږه وركړه. وروسته ځرګنده سوه، چې د دې خوځښت په پيل كې چې كومو كسانو له دې بهېر سره لاس يو كړی و، د هغې لارې په پالللو كې ستونزې وموندلې، چې اوس د معياري ليكنې پښتو په نامه پر خلكو تحميل كېږي. پښتانه ليكوال د دې بهېر له ځينو اړخونو سره بشپړ توافق نه لري او د بې مېروزه نوو لغتونو د جوړولو او رواجولو او له لهجو څخه د لغاتو د نه اخيستلو له اړخ سره يې زه هم جوړ نه يم او ښه پوهېږم چې دغه راز پښتوګانې چې اوس يې د رواجولو هڅې رواني دي، خدای مه كړه له پښتنو سره د خپلې ژبې د پردي كولو پر لور يوه هڅه نه سي. له بده مرغه د پردي كېدلو دغه عمليه د تكوين په حال كې ده.

د ډاكټر پالوال دغه نوی كتاب (معياري پښتو) د ژبې د كره كولو په برخه كې يوه نوې هڅه ده چې په ډېرو برخو كې يې سپارښتنې د پاملرنې وړ دي.

استاد پالوال پر ژبه باندې د رغېدلو حق هر چا ته وركوي او په هغو كې بيا د لغت جوړولو او په ژبه كې د نورو بدلونونو راوستلو واک هغه چا ته وركوي چې صلاحيت يې لري او صلاحيت بيا په لايسنس درلودلو پوري نه تړې بلكې په استعداد پوري يې تړي. د ده په نظر پر ژبه باندې د رغېدلو حق د هر مستعد ويونكې طبيعي حق دئ. دی ليكي:-

"صلاحيت د چلندي ايكئ په توګه دوه مخه لري. يو مخ ئې وګړيز يا عاميانه دئ. بل مخ يې مسلكي او ماهرانه دئ. په دغو دواړو خواوو كښې ئې د صلاحيت خاوند هغه څوک دئ چې استعداد ئې لري. دغه استعداد هر څوک نه لري. په وګړو كښې هم هره مړه يا

ژوندئ ژبه هغه چا جوړه کړې ده چې دؤی ئې استعداد لاره. مستعد شپانه د شپونتیا په خوا کښې لغاتؤنه جوړ کړي دي؛ مستعد کرهڼګر د کرهڼې د کار او آلاتو په اړوند لغاتؤنه جوړ کړي دي؛ مستعد ورهڼګر د ورهڼې (صنعت) په چارؤ کښې د وسایلؤ او استعمال په اړوند لغاتؤنه جوړ کړي دي (۶) خو دی دلته یوه خورا تریخ واقعیت ته اشاره کوي او د استاد نومیالي له خولې لیکي چې: "که ژبه خرابوئ نوئې (د ژبې) و ډاکترانو ته وروسپارئ..." او ورپسې زیاتوي "... یو سړی، هر څوک چې به وي، دا د ځان وظیفه نه وګرځوي چې بل کار څه مه کوه، بل لا د شپې او ورځې لغاتونه جوړوه..." (۷) دی وایي چې "د وګړؤ ژبه د پوهانؤ تر ژبې ډېره منظمه او له اصولو سره سمه وي. وګړي، که د ژبې د پوهانؤ تقلید نه وکي. له دوی څخه خپله ژبه نه خوارېږي. دا ځکه چې وګړي د ژبې په وده او پراختیا کښې له طبیعي اجتماعي انتخاب څخه کار اخلي ...(۸) ډاکتر پالوال سره له دې چې په ژبه کې د نوو لغاتو جوړول لازم ګڼي او وایي چې ژبه همېشه په تطور کې وي او که د چا خوښه وي که نه، زاړه لغتونه مري او نوي یې ځای نیسي، خو پر څنګ یې ټینګار کوي چې: "... ژبه باید له خپلؤ خلګؤ څخه پرېدئ نه کړه سي. بل لا د نورؤ له پاره هم خوندوره، جذابه او عام فهمه کړه سي...(۹) د نوو لغاتو د جوړولو په برخه کې سپارښتنه کوي چې: "... لؤمړی لغات د ګرامري او ادبي ارځؤنؤ له پلوه وڅېړل سي بیا دي ئې د کاروني (- استعمال اجازه ورکړه سي. خو دغه استعمال به ئې هم اختیاري وي، نه جبري.(۱۰) دی د دغه کار له پاره د یوې ځانګړې مجلې وړاندیز کوي چې په خاص ډول ژبني مسایل وڅېړي. ډاکتر پالوال پخپله هم د لغاتو په جوړولو کې برخه اخلي خو خپلي جوړوني قرآني احکام نه بولي او حاضر دئ چې د نورو نظرونه ولولي. دی په پښتو کې له پردیو دخیلو لغتو سره ډېر سالم چلند کوي او دا ځکه چې د نورو ژبو اغېزه پر خپله ژبه باندي او د خپلې دا پر نورو باندي یوه طبیعي پېښه ګڼي. دی لیکي چې "که د بلې ژبې سم او اجوت لغت وي، او هغه په پښتو کښې عمومیت مؤندلی وي لکه غم، وخت، کیمیا، بیالوجي، فزیک، تلیفون، تلویزیون او نور داسي، نو هرومرونې نه ده چې یا دغسې لغاتونه ترجمه کړل سي، یا نور ورته جوړ کړل سي. ځکه چې په ژبې کښې ئې ځای نیولئ او خلک په پوهېږي... ولي په هره توګه، په لاسي توګه سره و هر څه ته لغت جوړول و ژبې ته ګټور کار نه دئ. که به ئې زه کوم غلط کار کوم، که به ئې نور کوي، ښه کار نه کوي. ډېر ښایي چې دغسې نوي لغاتؤنه دي بل کله د ژبې په تاوان تمام سي.(۱۱)

دی یوې بلې پېښې هک پک کړی دئ او هغه "د ژبې بې سرؤ پایه، بې هدفه لار ورکئ تحول دئ چې لاسي عملي کېږي. زاړه لغاتونه پرېښوول کېږي، او نوي جوړ کړي یا مفغن لغاتؤنه، که به څه هم تر ورپښنؤ لغاتو بدخونده، پټخ، او کم مناسبته وي. د اصیلو لغاتؤنؤ ځای نیسي. دغه کار د دې له پاره کېږي څو لهجوي اړتیاوي ئې په پوره کړې وي، نه عمومي ژبني.(۱۲)

تر دې وروسته ډاکتر صاحب د خپلې خبرې د اثبات له پاره خورا زیات مثالونه راوړي چې زه یې د خپلې لیکنې د اوږدوالي له بېري نه را اخلم.

ډاکتر صاحب پالوال د پښتو ژبې لهجې، چې دی یې (ژبځانګي) بولي. پنځه بللې دي او د هري یوې د ویونکو ځای ځایګی او ځانګړتیاوي یې بیان کړې دي. د دوی دا نوی

تیسیس یوه اکاډمیکه څېړنه ده چي په پوره صلاحیت او کفایت یې څېړلې ده. د پښتو ژبې د لهجو څېړنه او ګروېږنه ډېره اختصاصي او مسلکي پوهنه او پر څنګ یې ساحوي ریسرچ غواړي او زه په داسي موقعیت کي نه یم چي د هغه په باب دي نظر څرګند کړم خو د ژبې له ماهرانو څخه غواړم چي د ډاکټر پالوال پر دغه وېش باندي خپل نظریات په سره سینه څرګند کړي.

ډاکټر پالوال په پښتو لهجو کي په شین باندي د سین د اوښتلو جریان په علمي ډول څېړلی دئ (۳۰ مخ) او په دې اوښتون کي یې د کوشانیانو اغېزه دخیله بللې ده. له دې موضوع سره د ارتباط له مخي باید ووایم چي زموږ ځیني لیکوال د پښتو ژبې معیاریت په سین او شین کي لټوي. که څه د پښتو محوري فعلونه په شین وکښل ګویا لیکنه یې پر معیار برابره سوه نور که یې هر څومره اصولي ورانی پېښي کړي وي، ری نه پکښې وهي. د پښتو په یوه ویب پاڼه کي یې زه هم ښایي د همدې سین او شین په خاطر په ډېره مودېانه توګه کړلی یم او لیکلي یې دي چي زه (هوتک) معیاریت "په لغته وهم" (په دې برخه کي ما یوه بېله لیکنه کړې ده چي وروسته به خپره سي).

پالوال صاحب پر پښتو باندي د نورو ژبو اغېزې او دغه راز پر نورو ژبو باندي د پښتو اغېزه مني او دا یوه طبیعي پېښه بولي چي ځانته تاریخي او جغرافیایي عوامل لري. ده په دې برخه کي په پښتو کي مغولي لغات، عربي مفغنات، فارسي مفغنات راوړي او ښه مغزنه څېړنه یې پر کړې ده او په دې ترخ کي یې پر لوېدیځه پښتو (لومړی ژبځانګه) باندي د فارسي اغېز، پر ختیځه پښتو (پنځمه ژبځانګه) باندي د اردو اغېز او دغه راز پر پښتو باندي د انګلیسي اعېز بیان کړی دئ.

دغه راز په دې لړ کي پر انګلیسي مفغناتو او له انګلیسي سره د پښتو پر مشترکو لغاتو باندي ښه په تفصیل سره رڼېدلی دئ او په هره برخه کي یې د څا خبره د خوند و شخوند خبري کړي دي (۱۳).

ډاکټر پالوال د خورا ډېرو اساسي مسئلو تر څنګ پر دې خبره ټینګار کړی دئ چي لیکوال باید لغاتونه تحریف نه کړي او یو لغت د بل پر ځای استعمال نه کړي. ده په دې برخه کي د (اغزی ـ ځوز)، (ټګي ـ دروهه)، (سره ـ ځله)، (درخته ـ ونه)، (دونده ـ دومره)، (شرمښ ـ لېوه)، (کرنه ـ کرهڼه)، (لرګي ـ بوټي)، (لښتي ـ واله)، (لیدنه ـ کتنه)، (الوتیا ـ نیهام، ورک، پټ) لغتونه سره شنلي دي او د هغو په باب یې په زړه پوري نوي خبري کړي دي چي زه درانه لوستونکي د هغو لوستلو ته وربولم. د دغو لغتونو توپیر نه کول رشتیا هم ګډوډي پېښه کړې ده چي زه به یې له دې ټولو څخه یو مثال راواخلم.

پالوال صاحب لیکي چي درخته او ونه سیمه ییز توپیر لري. ونې په غرو او دښتو کي په طبیعي توګه، بې له دې چي انسان دي لاس خواري په کښلي وي، شنې کېږي او درخته بالعموم په باغو کي وي د انسان په لاس ایښوول سوي وي، پالنه، روزنه او ساتنه یې هم د انسان په لاس کي وي (۱۲۸ او ۲۷۹ مخونه).

دا څېړنه نوې ده او رشتیا هم زما (هوتک) د خپلي مشاهدې له مخي د کندهار په لهجه کي د درختي له عام استعمال سره په کلیوالي محیط کي د شنو درختي ته د (شنو ونه) وایي. شنې یو راز کلکي، غوړي داني دي چي د وچي مېوې په توګه یې خوړک عام دئ. د دغې مېوې ونه، چي په غرو کي په طبیعي توګه شنې سوي وي، (د شنو ونه) نومېږي. (شنې په

غلا نه چیچل کېږي) متل په پښتنو کې باب متل دئ.

د پښتو ژبې درخته. لکه ځیني کسان چې فکر کوي، د پارسي ژبې له (درخت) سره یو شان لغت نه دئ. البته د معنا له مخې پر یوه مفهوم باندي دلالت کوي خو د دواړو لغتو وینګ په حرکاتو کې بنیادي توپیر سره لري. د پښتو درخته د جوړښت له مخي د initial cluster، چي دوکتور زیار صاحب یې "پیل ښواکوږی" بولي(۱۴)، په کتار کې راځي په دې معنا چې د لغت په سر کې دوه کانسونیټونه ځنګ پر ځنګ پرله پسې راغلي دي. دغه جوړښت ته عربي ګرامریان "ابتداء بالساکن" وايي او محال یې بولي. یعني په عربي ژبه کې د انیشیل کلسټر جوړښت نسته وايي چې زړې پارسي. دغه راز جوړښتونه درلودل خو دغه خاصیت یې په وروسته کې له لاسه ورکړی دئ. هندواروپايي ژبې دغه ځانګړتیا لري او علامه رشاد چې د میا شرف د پښتو عروض پر رساله باندي کره کتنه کښلې ده ( وږمه مجله ۱۳۴۲ش) هورې یې د خپلې پراخې مطالعې په برکت په پنځه ویشتو ژبو کې د انیشیل کلسټر مثالونه ورکړي دي(۱۵). نتیجه دا چې (درخته) د پښتو خپله کلمه ده. په پارسي پورې به یې تړل د ژبې په اصولو باندي د ناپوهۍ له اسیته وي.

ډاکټر پالوال د سلګون، زرګون نوټ پر ځای سلي، زرې غوره بولي او د زرګونو پرځای (زرو) معیاري ګڼي. ما (هوتک) د غزل د بابا حمزه شینواري په هغه لیکنه کې چې د چکنورو د ملا صاحب پر باب یې د (ستر مجاهد) په نامه کښلې ده، د شلګونو پر ځای د (شلونو) کلمه لوستلې ده. حمزه بابا په لواړګي کې د چکنورو د ملا صاحب د یوه خلیفه صاحبزاده محمد عارف (مشهور په کاکا) په خانقاه کې د جوړې سوې مدرسې په باب کښلي دي چې په دې خانقاه کې "... د لواړګي په شلونو هلکان هلته درس اخلي." (۱۲).

ډاکټر پالوال د (په) او (پر) د استعمال موارد ټول مستند او په ټول تللي بیان کړي دي (۲۰، ۲۱۹ - ۲۲۱مخونه).

په یخوانیو متونو کې یې د کاتبانو له لاسوهنې څخه ډېر سر ټکولی دئ او په ډېرو قوي دلایلو یې دغه لاس وهنه رابرسېره کړې او ثابته کړې یې ده چې دغو لاسوهنو د شاعر هغه لهجه وراړولې ده چې ده پکښې قلم چلولی دئ. ده په مستند منطق سره ښوولې ده چې د پښتو د کلاسیکو شاعرانو خپل ثبت دا سې نه و، لکه دا اوس چې موږ د دوی په چاپ سوو دېوانو کې لرو.

د "معیاري پښتو" کتاب ما یو وار ووایه او تر لوستلو وروسته راته څرګنده سوه چې دوه درې واره ویل هم راځخه غواړي. د دې یوه وار ویلو په نتیجه مې دا څو خبرې په زړه کې راوګرځېدلې:-

- د ډاکټر پالوال لیکدود په ځینو برخو کې له دا اوسني مروج لیکدود سره توپیر لري. مایې په لوستلو کې مشکلات ولیدل او تر څو مخو وروسته یو څه ورسره بلد سوم. زما په خیال که یې د لیکدود له پاره د کتاب په سر کې یوه لارښوونکې پاڼه ور زیاته کړې وای نو به یې له لوستونکو سره د کتاب په لوستلو کې مرسته کړې وای. په اوسنیو پښتو لیکنو کې د بېلا بېلو لیکدودونو سته والی د اندېښنې وړ مسئله ده او هر نوی لیکدود د دې ستونزې لمن ورپراخوي. په تېره بیا چې د لهجوي ځانځانیو خبره هم په منځ کې وي. زه د (دی = He) او (دئ = Is) په لیکلو کې د ډاکټرپالوال پر پله روان یم خو په اوسني مروج لیکدود کې دواړه د (دی) په شکل لیکل کېږي او په ورته

والي او التباس کي يې له بيا بيا يادونوسره سره د معياري غورځنګ لارويان ري نه وهي. د (ولي؟) جواب يې زه هم نه لرم.

ــ د ځينو هغو دخيلو لغاتو له پاره چي اوس يې رواج موندلی دئ، د نوو لغاتو جوړول له ګډوډۍ او انارشۍ پرته بله کومه نتيجه نه ورکوي. ګرامري اصطلاحات ښاغلي ډاکتر پالوال يو راز او دوکتور زيار بل راز جوړ کړي دي. ډاکتر پالوال خو يو څه د ميرږي لار پرې ايښې ده او وايي په استعمال او نه استعمال کي يې ليکوال اختيار لري. خو دوکتور زيار پر خپلو جوړو سوو لغاتو باندي مصالحې ته تيار نه دئ. زه پخپله له دخيلو عربي ګرامري اصطلاحاتو سره مخالف نه يم او په استعمال کي يې هيڅ تاوان نه وينم. ګرامري اصطلاحات خو بې هغه هم د خواصو له پاره دي نه د عوامو وګړو له پاره. پرېږدئ چي د انومونه لکه ځيني تخنيکي نومونه، پخپله اصلي بڼه باندي پاته وي. زه د عربي لغاتو مخالف نه يم خو د هغو هڅو مخه بايد په ټينګه ونيوله سي چي غواړي د پښتو ګرامر د عربي ژبي د ګرامر پر بنسټ تدوين کړي. دا دوې جلا ژبې دي او جلا کورنيو پوري اړه لري. زموږ مشرانو استادانو که پخوا دا کار کړی دئ، خو په هغه وخت کي د هغه وخت له شرايطو سره سم يو کار و. اوس يې تکرار له ژبپوهني سره لوبې دي. خو له عربي لغاتو سره سياسي چلند هم د ژبي په ګټه کار نه دئ او له دې تناقضه څخه بايد ځان وباسو چي د عربي ژبې دخيل مذهبي کلمات او لغات ومنو او (قلم) ته بيا چي زموږ په ژبه کي د استعمال يو نيم زر کلنه سابقه لري، نوی ل‌انت جوړ کړو. دا د وخت او انرژۍ دواړو ضياع ده. ګډوډي يې لا بل سرباری دئ.

د ډاکټر پالوال په کتاب کي زه د (اې) لغت په باب، چي دی يې د (يعني) له پاره استعمالوي. يو څه ملاحظات لرم. دا لغت که ماغلطي نه وي کړې د (هسي)، (خوشي)، (بېځايه) په معنا باندي په کندهار کي د ريګ د سيمي او د ډوری د غاړي له کليوالو څخه اورېدلی دئ. (زما لالا! ای مه ګډېږه) يعني خوشي او بېځايه مه ږغېږه.

ــ شمه (فشار پر ورستی څپه دئ) چي يې د (شومه) په شکل ګڼلې ده (۴۲۸مخ) هم ماته شناخته نه ښکاري. (د بدن شمه مي ختلې ده) يعني کمزوري سوی يم، د بدن سېک مي ختلی دئ.

لکه مخکي چي مي هم وويل ښايي د دوهم او دريم وار کتلو وروسته د ويلو نوري خبري هم ولرم خو اوس به يې پر همدې ځای بس کړم.

پالوال صاحب د خپلو څېړنو په پای کي پښتنو ته داسي خبرداری ورکوي :-

"که پښتو دغسي له ناخوالو څخه ډکه پرېښووله سي، لکه په دې کتاب کښې چي تاسي تر اوسه پوري ليدلي دي، نو لاس ځني پرې مينځئ. دا په ښکاره سره مخ پر تباهئ باندي روانه ده، او وايي به :- "مرګيه، مه راځه ! درځمه!". دغه تباهي يې دونده د بل چا له خوا څخه نه کېږي لکه زموږ د خپلو ناپوهيو او تعصباتو له خوا څخه چي تر سره کېږي.

قبيلوي تعصبات سته؛ سيمه ئيز تعصبات سته؛ ژبني تعصبات سته. لهجوي تعصبات سته، او مذهبي لا هم. د هغو کسانو مخنيوی بايد وسي چي د بلي لهجې صحيح لغاتونه له استعماله اچوي. او خپل مفغنات يا جعليات ئې پر ځای باندي ورکښي باسي. بشپړ لغاتونه نه کاروي او پر ځای ئې ناقص او نيمګړي لغاتونه کاروي. که دغه عمليه هم دغسي دوام پيدا کي، لکه اوس چي په جريان

کښي ده، پښتو به د یو محدود شمېر کسانو ژبه وي. نور به څني خواتوري سوي وي. په دغه صورت کښي نو په نوړو پسي مه ګرځئ چي پښتو ئې زده کړې وي، خپل راګرځوئ چي نو به مو خپل پښتانه بې پښتو سوي وي، او کیږي هم. پښتو به ئې پرې ایښې وي، پرې ایښې ئې هم ده، او پرېږدي ئې هم. ولي چي د نیمګړتیاؤ او نواقصو فهم او تحمل به نه لري. بیا به هم په خپله ژبه شرمیږي یا به ئې ویلای لا هم نه سي.»(۱۷).

دا چیغي زه (هوتک) دا څو کاله کېږي چي وهم یې. زموږ مشران استادان علامه حبیبي او علامه رشاد له دغو ارمانو سره ګور ته ولاړل اوس د خدای سل شکرونه کاږم چي دا دئ یو بل منلي استاد تر ما په سل چنده پوره صلاحیت او پاخه منطق باندي دغه ستونزه د کتاب په بڼه خپلو پښتنو ورونو ته وړاندي کړه. پښتو ژبه د ټولو پښتنو ده. ګټه او تاوان یې هم ټولو ته په ګډه رسېږي. داسي نه سي چي او به تر ورخ را څخېږي، واوړي او بیا به لاس مو ښل څه ګټه هم ونه لري.

زه ښاغلي ډاکتر عبدالرازق پالوال ته د دغه درانه اثر د لیکلو له امله مبارکي وایم او ټولو پښتنو ورونو په ټېره بیا ځوانانو ته د دغه کتاب د لوستلو سپارښتنه کوم او ورڅخه غواړم چي دغه کتاب په سړه سینه او بې له مخکیني ذهنیت او قضاوت څخه ولولي. پر وړغېږي او د منلو په صورت کي عمل په وکړي.

محمد معصوم هوتک

اوکویل ـ کاناډا ۲۷ اګست ۲۰۰۲ ع

یادونه :-

د ۲۰۰۲ ع کال د نومبر پر ۱۴ مي د کندهار مجلې ته ایمیل کړه.

لمنلیکونه

نقل قول د کتاب په لیکدود کټ مټ رانقل سوی دئ او تر دې وروسته به هم نور نقل قولونه د کتاب پخپل لیکدود وي.

(۱) په دې نامه کي د (نوني) لغت کارول ما ته ډېر په زړه پوري ښکاره سو. (نونی) د توپک د میل پر سر د میل خولې ته نږدې هغه راوتلې زخه ده چي د نخښي ویشتلو پر وخت کار څني اخیستل کېږي. دې زخي ته زما په خیال کابلي ښکاریان جوک (د جیم او واو په فتحه) وایي. په عسکري اصطلاح یې هم لکه چي هم دا نوم دئ. د ګولیو د توپک د میل پر منځني برخه یوه بله ټوټه هم سته چي (جری) یې بولي. له جری او جوک دواړو څخه د نخښي برابرولو پر وخت کار اخیستل کېږي. په پښتو کي د (نینک) لغت (د سترګو کسی) هم له (نوني) سره ریښه یي اړیکې لري. ډاکتر پالوال د نوني کلمه د پاړسي (دیدګاه) له پاره راوړې ده او پر ځای یې راوړې ده. د معیاري ژبې له پاره له لهجو څخه لغت اخیستني ته باید تر لغت جوړوني وړاندي د لومړیتوب حق ورکول سي. خو له بده مرغه دې زرین اصل ته نن پښتانه لیکوال لږ پاملرنه کوي.

(۲ الف) وګ :- د پوهاند دوکتور مجاوراحمد زیار د (پښتو او پښتانه د ژبپوهنې په رڼا کې) کتاب ته د پوهاند ډاکتر محمدرحیم الهام سریزه ـ دویم مخ ـ د ۱۳۷۹ کال چاپ.

(۲ ب) زیار (دوکتور) ـ مجاوراحمد ـ پښتو پښویه ـ ۱۱ مخ (سریزه) ـ دریم چاپ ـ ۲۰۰۵ ع.

(۳) وګ :- ښکلا مجله ـ ۴ کال ـ ۳ ګڼه ـ له پوهاند زیارصاحب سره مرکه ـ ۵۴ مخ ـ ۱۳۸۴ ل کال.

(۴) پښتو څېړني ـ دوهم ټوک ـ دوهمه برخه ـ د پښتو، جاپاني قاموس په باب د اکاډمیسن عبدالشکور رشاد مقاله ـ ۴ مخ ـ ۱۳۲۷ ش ـ کابل.

(۵) پالوال ـ ډاکتر عبدالرازق ـ معیاري پښتو ـ ۱۲، ۱۷ مخونه ـ ۱۳۸۴ لمریز کال.

(۶) هماغه اثر ـ ۲۴۰ مخ

(۷) هماغه اثر ـ ۲۳۹ مخ

(۸) هماغه اثر ـ ۸۹ مخ

(۹) هماغه اثر ـ ۱۵۳ مخ

(۱۰) هماغه اثر ـ ۲۳۷، ۲۳۸ مخونه

(۱۱) هماغه اثر ـ ۲۴۳ مخ

(۱۲) هماغه اثر ـ ۲۹۷ مخ

(۱۳) هماغه اثر ـ ۲۹۱ ـ ۳۱۰ مخونه

(۱۴) پښتو پښویه ـ ۳۸ مخ

(۱۵) اروانباد پوهاند رښتین په (ادبي او تاریخي سموني) نومي کتاب ـ ۱۷ مخ کي د رشاد مرحوم دغه کار بې فایدې بللی دئ. په دې باب زه خپل قضاوت لرم خود پښتو ستورو په دغه مقابله کي یې زما له پاره بیانول، بې ادبي ښکاري ځکه نو تر تېرېږم.

(۱۶) وګ :- سیال مومند ـ میراجان ـ نومیالی غازي (چکنور ملا صاحب رحمه الله علیه) ـ ۲۷ مخ ـ ۱۳۷۷ ش ـ پېښور

(۱۷) معیاري پښتو ـ ۴۰۸ مخ

# د امیر شېرعلیخان

## په واکمنۍ کې رغونې




عبدالمجید بابی

امیر شېرعلیخان د محمدزو کورنۍ د بنسټ ایښوونکي امیر دوست محمد خان زوی دی. امیر دوست محمد خان د ۱٦(د ځینو لیکنو په استناد له ۱۴) مېرمنو څخه (۲۷) زامن او (۲۵) لوڼې درلودې.

د امیر شېرعلیخان مور خدیجه نومېده چې د رحمت خان پوپلزي لور وه، دغه رحمت خان د لوړ درشل لوی احمدشاه بابا رحمة الله علیه د لمسي شاه شجاع د پاچهۍ پر مهال د هغه وزیر پاته سوی و.

د دغې مېرمنې څخه د هیواد نوموتی غازي او د خپل مهال د نیواکگرو په وړاندې پېژندل سوې ولاړه څېره غازي محمد اکبرخان هم زېږېدلی و.

امیر شېرعلیخان چې په (۱۲۰۲ل) کال زېږېدلی و د خپل مهال یو روڼ اندی او پوه واکمن و، چې په لر او بر کې یې د وخت د غښتلو نیواکگرو د ډول ډول لاسوهنو سره سره و توکمیزو رغونو (اصلاحاتو) ته ښه په نره ملا تړلې وه.

د هغوی دا هیله وه چې په هیواد کې د هغوی د واکمنۍ ستنې ټینګې او ورسره پیاوړې او غښتلې وي، څو د دغې پیاوړتیا په سیوري کې د پرمختګ پر لاره په پرله پسې توګه ګامونه اوچت کړي.

امیر شېرعلیخان د خپل خپلواک طبیعت په غوښتنه له هیواد څخه دباندې د خپلواکي کړنلارې د رښتینتوب له پاره خپلې ټولې په لاس کې لرونکې هڅې ونه درېغولې.

امیر شېرعلیخان چې د خپل پلار له لوري د هغه د ځای ناستي په توګه غوره سوی و، د هغوی تر

مړيني وروسته يې په يو ځلوېښت کلنۍ کې د هيواد په شمالي لوېديځ د هرات په ښار کې پـه (۱۲۴۷ ل) د (۱۸٦۳ ع د جون د مياشتي پر ۱۲مه)نېټه د خپلي پاچهۍ خبره څرګنده کړه. له بده مرغـه د دغـه پـوه واکمن په وړاندي د ده ناسکه وروڼه چي تر شېرعلي خان مشران هم وو، محمدافضل خـان، محمـداعظم خان، محمدشريف خان او د محمدافضل خان زوى عبدالرحمان خان ودرېدل.

امير شـېرعليخان دهغـوى د ټکولـو لـه پـاره زرمت، بلخ او کندهار ته لښکر ولېږه، په سهېلي جګړو کي محمداعظم خان ماتې وخوړله او هند ته ولاړ.

پـه (۱۸٦٦ز) کال امير شېرعليخان پـه کنـدهار کـې و، چـــي غزنـــي د عبـدالرحمان خـان لاس تـه ولوېـد او خپـل پـلار افضـل خـان يـې لـه بنـده راوايست او هغه يـې د افغانســـتان د واکمنـي پـر ګـدۍ کښېناوه.

کلـه چـي محمدافضل خـان د واکمـن پـه توګـه راڅرګنـد ســو، انګرېزانو سمدلاسه په داسي حـال کـي چي د هيـواد ملـي واکمن لا په کنـدهار کي و د محمدافضل خـان واکمنـي يـې ومنـل او خپـل اســـتازى يـــې سمدلاسـه پـه کابـل کي وخپلو موخو تـه د ژر رسېدو لـه پـاره واستاوه. که څه هم امير شېرعليخان له کندهار څخه د لښکرو پـه ملتيـا د کابل د نيولو په ويلاړ رهي سو، له بده مرغـه هغـوى په کلات کي د امير محمدافضل خان او عبدالرحمن خان د پلوي لښکرو څخه ماتې وخـوړه او دې تـه اړ سو چي هرات ته ولاړ سي.

تر يوه کـال واکمنـۍ وروسـته د (۱۸٦۷ ز) پـه اکتوبر کي امير محمدافضل خان پـه کابـل کـي مړ سو، او پر ځـاى يـې د هغـه بـل ورور د عبـدالرحمن خـان اکـا محمدافضـل خـان و پاچهـۍ تـه ورسېد، عبدالرحمن خان بلخ ته ولاړ څو د اميرشېرعلي خان په وړانـدي لا خنـډ سـي، ولـي امير شـېرعلي خـان


امير شېرعليخان

کندهار ته راغی او د کندهار د خلکو په خوښه یې د محمداعظم خان زامن له کندهاره وشړل. کله چې د لښکرو د تیاري چاري بشپړې سوې امیر شېرعلیخان د کابل پر لور وخوځېد. په کابل کې واکمن محمداعظم خان او وراره یې عبدالرحمن خان ماتې وخوړله، د هیواد د شمال له لوري عبدالرحمن خان بخارا او محمداعظم خان د ایران خوا په مخه ورکړه، محمداعظم خان په لاره کې رنځور او تر مړیني وروسته په بسطام کې ښخ سو.

په دې توګه په (۱۸٦۸ ز) کال امیر شېرعلي خان د دوهم ځل له پاره د افغانستان د واکمن په توګه راڅرګند سو.

نولسمه پېړۍ په خپلواکو اسلامي هیوادو کې د ټولنیز او سیاسي پرمختګ پېړۍ بللای سو، چې ریښې یې د اروپایي هیوادو او نیواکګرو ځواکونو په وړاندې د درېدنو او غبرګونونو څخه رنګ واخیست.

زموږ په هیواد کې د دغه پرمختګونو څخه د زېږنده غورځنګونو یو وتلی مخکښ سید جمال الدین افغاني و چې په (۱۸۳۸ ز) کال د کنړ په اسد آباد کې وزېږېد، سید چې وروسته یې د ختیځ د نابغه ویاړ تر لاسه کړ د (۱۸۵۷ ز) کال څخه یې د امیر شېرعلیخان د پلار امیر دوست محمد خان پر پلازغولي د خپلې پوهې روښا خپره کړې وه.

چې بیا د دې روښا ویاړ د امیر شېرعلي خان تر پلازغولي هم راورسېد.

امیر شېرعلیخان د خپلې پنځیزه پوهي تر اړخ د سید جمال الدین افغاني دژوري پوهي برخه هم تر لاسه کړې وه، چې د وهابي ګروه په اړه د (شهاب ثاقب) د لیکنې یوه برخه د همدې واکمن په لیکنې (قلم)

تر سره سوې ده.

سربېره پر دې د (ګلشن امارت) د لیکوال نورمحمد نوري کندهاري، د (روضة المجاهدین) د لیکوال فیض محمد صاحبزاده موسهي، د (طریق الطالبین) او (کنز السلاطین) د لیکوال میراحمد اظهر او همدارنګه د کندهاري محقق لوی پوه حبو اخوندزاده چې د ګڼ شمېر لیکنو څښتن دی او په پښتو لیکل سوي (منهاج العابدین) یې ډېر مینه وال لرل، او د ده تر څنګ د (پادشاهان متاخر افغانستان) د لیکوال یعقوب علي کابلي، سید عبدالکریم د (بدخشان مفرح الاحباب) د لیکوال، د (تاریخ سلطاني) د لیکوال سلطان محمد خالص، عبدالحق اخوندزاده علیزي او د دغه ډول نورو په



د امیرشېرعلیخان صدراعظم سید نورمحمدشاه کندهاري

لسګونو پوهانو او د همغه مهال د خوږژبو شاعرانو لکه غلام محمد خان طرزي، میرزا محمد نبي واصل، حنان بارکزي، مهردل خان مشرقي، محمدعمر پوپلزي، مجنون شاه کابلي، عبدالله محزون، عایشه دراني، آمنه فدوي، مستوره غوري، محجوبه هروي او نورو دغه دول ګڼ شمېر پوهنیزو څېرو د شتون او پوهنیزي روڼا برکت و چې امیر شېرعلیخان د پوهي پر لار د پرمختګ و پولو ته د تولنیزو رغونو له پاره ځان ورسوی.

هغوی د خپلي واکمنۍ ځانګي د نوي مهال په غوښتنه ورغولې. هغوی د وزیرانو جرګه جوړه کړه چې شپږ وزیران او د هغوی مشر یې په پښتو نومونو ونومول.

سید نورمحمدشاه چې ډېر ځیرک پوه او د زیاتي وړتیا تښتن و د وزیرانو د جرګې د مشر دنده یې ور وسپارل او د لوی تول مختار په نوم یې ونوماوه، چې اوس مهال د دغه دول دندي لرونکی د لومړي وزیر یا صدراعظم په نوم یادېږي.

لکه میرزا محمدنبي واصل چې په دري بولله کي هم دغه نوم همغسي یاد کړی دی:-

هفت پیکر که ندارند بدوران مانند
هفت اختر که ندارند در آفاق نظیر
محل عیش بهر گوشه ای آراسته شد
خاصه در مجلس مینووش این هفت وزیر
صدراعظم که بزرگان جهانش خوانند
لوی مختار فلک قدر فلاطون تدبیر

امیر شېرعلیخان، حسین علي خان پنجشېری د (تول مشر) په نوم د جنګي چارو د وزیر په توګه، مستوفي حبیب الله وردګ د (لوی ملک) په نوم د مالي چارو د وزیر په توګه، ارسلاخان جبارخېل یې د (لوی مین دباندي) په نوم د باندنیو چارو د وزیر په توګه، عصمت الله خان جبارخېل یې د (لوی مین د غر) په نوم د کورنیو چارو د وزیر په توګه، میرزا محمدحسن د (لوی کبل) په نوم د ملکي چارو د منشي په توګه او احمدعلي تېموري یې د ګمرکو د چارو د مشر په توګه وټاکل.

هغوی د پوځ په برخه کي هم روغوني وکړې. چې د سپهسالار څخه تر حواله دار پوري یې د پښتو په نومونو ونومول، سپهسالار ته یې تول مشر ته او صوبه دار یې بولک مشر نوم ورکړ، د پوځ جوړښت یې په نوي دول رامنځته کړ او پوځیان یې د پیاده او سپرو څخه جوړ وه، چې تر څنګ یې د توپونو تولي، څو زره روزل سوي اسان، زرغوایي او (۶۰) فیلان هم د پوځ غښتلتیا ته برابر کړه سوه چې د پوځ شمېر تر (۵۰) زرو پوري ورسېد.

امیر شېرعلیخان د وسلو جوړوني جوړښتونونه هم دود کړه، او د هغو د جوړ له پاره یې یو شمېر ماشینان هم هیواد ته راوغوښته، چې هلته توپونه، توپکان، لوېي توري، ګولي او نور هم جوړېدله. د یادوني وړ ګڼم چې لومړی ځل توپ د لوی احمدشاه بابا رحمه الله د پاچهي پر مهال په (۱۱۶۱ س) کال د (عندلیب) په نوم د خواجه قاسم آهنګر په پوهه جوړ سوی و*.

د وسلو تر څنګ د څرمنو څخه بېلابېل جنګي او د آسانو له پاره د اړتیا وړ کار اخیستونکي توکي

---

* د احمدشاه بابا د مهال د جوړ سوي توپ په اړه میر عبدالهادي موسوي په (ګلدستهٔ عشرت) کي وایي:-

زبدهٔ آفاق احمد پادشاه
کام بخش جمع پیر و جوان
در سخاوت و رهنمایی حاتم است
در عدالت رشک صد نوشیروان
توپ خصم افگن بنام عندلیب
در پشاور خواست بهر کشوران
کو بسازد اژدهای صف شکن
بر مرادش خواجه آهنگران
آتش آنروز بساط رزمگاه
زینت آرای صفوف لشکران
خواجه قاسم بر سر اراده کرد
در یک و چهل روز این کارگران
میر هادي سال تاریخش نمود
جستجو از لطف های بیکران
همچو آتش دود برون کرد و گفت
عندلیب لشکر دورِ دوران

ویل کېږي په هرو شلو ورځو کي یو توپ جوړېدی.
لکه میرزا عبدالرشید رشید چې وایي:-

ندیده چشم فلک اینچنین هنرپرور
که ساخت مردم افغان چو مردان یونان
زکارنامه توپ و تفنګ می آید
بروز بیست زهر یک تمام با سامان

جوړېدل.

امیر شېرعلیخان د ځاروبو د روزنې سره هم ډېره مینه لرله، او په دې برخه کې یې هم د پام وړ هڅې سر ته ورسولې.

د دغه پاچا د واکمنۍ په مهال کې د چاپ چارو ته په کتنه سره په لوړه کلا (بالاحصار) کې چاپ خونه د میرزا عبدالعلي خان په کوښښ جوړه او د شمس النهار په نوم خپرونه یه په (۱٦) مخونو کې د میاشتې دوه یا درې ځله چاپېدله او د پاملرنې خبره خو لا دا ده چې په دغه چاپخونه کې د پست ټکټان هم چاپېدله.

په دې روښانه مهال کې د هیواد د ټولو سیمو څخه په (۱۸٦۵ ز) کال د (۲۰۰۰) په شمېر استازي د ځینو مشورو او پرېکړو له پاره د لویې جرګې په نوم راغونډ سول.

امیر شېر علي خان په خپل پلازغولي کې د سندارا چارو ته هم پام اړولی و، او په پلازغولي کې به د ساز سره هندي او افغاني ترانې د سارنګۍ، رباب او نورو سره ږغول کېدې.

امیر شېرعلیخان ته د (۱۸٦۹ ز) کال په مارچ کې انګرېزانو د هند د ورتګ بلنه ورکړه.

دغه مېړه واکمن او د خپلواک پنځ ځښتن چې هلته ورسېد له دې امله چې د پلار ترونونه یې د خپل ولس د لاس او پښو ترل بلل سمدلاسه یې په لومړۍ غونډه کې وویل چې د پلار د مهال د ترونو منلو ته نه یم راغلی، او ټول مختار سید نورمحمدشاه به د خپل پلاوي تر څنګ ستاسو سره نوي ترونونه لاسلیک کړي، خو انګرېزانو ته د امیر دغه لوړ دریځ خوند ورنکړ، نو همهغه و چې شېرعلیخان یوازې د انګرېزانو د یوه پوځي تمرین ننداره وکړه او تر هغه وروسته بیرته هیواد ته راغلی.

د امیر د واکمنۍ پر مهال د شمس النهار د خپروني تر څنګ څه کتابونه هم چاپ سوي دي، لکه :-

- حجة قویه در ابطال عقاید وهابیه غویه، ۱۲۸۸ س.
- د قواعد په نوم کتابګی : چې له انګرېزي څخه په دري ژباړل سوی دی.
- قواعد پلټن : دا هم له انګرېزي څخه ژباړل سوی دی.
- شرح قواعد پیاده ګان پلټن : دا هم له انګرېزي څخه ژباړه ده.
- مجمع البحرین : چې د نوي او زاړه حکمت پرتله ده.
- تحفة العلماء
- ترجمه رجوع الشیخ الی صباء
- وعظ نامه




د امیر شېرعلي خان یو ډېر غوره کار د نورو منلو کارو تر څنګ دا و چې هغوی د کابل په لوړه کلا (بالاحصار) کې یو عالي ښوونځی جوړ کړ. چې (۸۰) تنه زده کړیان اروپا ته د تللو له پاره هم د هغو څخه غوره کړه سول.

دغه د ښه اند ښتن امیر د سرکانو جوړېدو ته هم پاملرنه لرله او د هغه تر څنګ یې پوځي جامې هم دود کړې او چې کرتی... او پطلون یې تور او ژړ رنګ ته نژدې خولۍ یې هم لرله، چې دغه جامې د ځینو له لوري همهغه مهال د پرنګیانو د پېښو په ډول ښه نه ګڼل کېدې.

د دغه ډول په جامو او روزنه سمبال پوځیان او سرتېري په دوو لویو جشنو کې یو د ځای ناستي د ټاکنې او بل د روسیې د سفیر د راتګ پر مهال لیده سوي وه، چې دباندنیان یې هم هک پک کړي وو.

امیر شېرعلي خان دسیاست په ډګر کې د خپلې ځانې ورتیا له مخې تر یوه ځایه بریالی و. هغه د ولس په وړاندې د انګرېزي ښکېلاکګرو سره غوښه او چاړه و، خو د کړنو پر مهال یې دا ډول چلند غوره کاوه چې د انګرېزانو، روسانو او ایرانیانو د زور زیاتي د مخنیوي له پاره په پوهه سره په برابره توګه تمبه ودروي. که څه هم د دوی زړه د روسانو په پرتله و انګرېزانو ته ډېر تور و، او همدغه د زړه بدي یې د دې لامل هم وګرځېده چې انګرېزان د یرغلونو څرخ د افغانستان پر لور څه ناڅه ګړندی وساتي، چې همدغه ګړندیتوب یې د خپلو جاسوسانو په ډېرښت سره چې د امیر د پلازغولي د واک لرونکو چارواکو په خوښه یې پلازغولي (دربار) ته لار پیدا کړې وه، ښه غښتلی کړ، که څه هم سید نورمحمدشاه له دې امله د ډېرې ځرګندوني د امیر تر غوږونو پوري رسولي وې، ولې د پلازغولي

چارواکي چې د امیر د نژدې دوستانو او کورنۍ د غړو څخه وه د نه ژورتیا له امله دغو پر ځای نغوتو وږ اغېزه نه ښندله.

د کورنۍ د غړو او لوړ پوړو سړیو همدغه چلند و چې د امیر د ځای ناستی له پاره د عبدالله خان په ټاکنه سره یې بد رنګ واخیست، او د امیر مشر زوی یعقوب خان هرات ته ولاړ او د پلار سره د درېدني چارې یې راپیل کړې، او تر څه مودې یې خلک راوپارول، د ده دمخه او وړاندې د کورنۍ نور غړي هم بېکاره نه وه ناست، د محمدافضل خان او محمداعظم خان پاڅونونو هم د هیواد د پرمختګ چارې د خنډ او ځنډ سره مخ کړې وې. دغه ځنډ تر کلونو او آن خبره د امیر تر ماتې ورسېده او د هیواد یوې ګوښې ته یې مخه کړه او هلته په خزه کې و، څو بیا د واکمنۍ ترګدۍ ورسېد.

دا چې د هیواد په سهېل او ختیځ کې د همغه مهال ځواکمن ښکېلاک دېره لګولې وه او سترګې یې هم تل د افغانستان پر لور برګې وې، په (۱۸۷۸ ز) کال کې چې کله هڅوی د خیبر، کورمې او بولان د درې له لارې افغانستان ته راننوتل نو امیر په شمال کې د یوه بل ښکېلاکګر ګاونډي (روس) څخه د مرستې په ویلاړ پلازغولی خپل رنځور او بېحاله زوی یعقوب خان ته پرېښود او بلخ ته ولاړ، مخکې له دې چې د پولې څخه تېر سي مرګ پر را هله کړه او همهلته ومړ.

په دې توګه یې خپل مړتن هم د انګرېزي ښکېلاک د شوم سیوري څخه ګوښه کړ او د هیواد د پیاوړتیا ډېرې هیلې یې چې په زړه کې یې پاللې د تل له پاره د خاورو غېږ ته وسپارلې.



امیر شېرعلیخان


ماخذونه :-

۱. کندهار، محمدولي ځلمی.
۲. افغانستان سرزمین آریا، محمدناصر کمال، مهتمم احمدولید پژهان.
۳. د پښتنو قبیلوي شجرې او مېنې، پوهنوال محمدعمر روند میاخېل.
۴. ژوندون مجله، د ۳۱ م کال ۲۸ مه ګڼه، ۱۳۵۸ ل کال.
۵. تاریخ و روزنامه نګاری افغانستان، دوکتور محمدحلیم تنویر.

ليکوال: خداداد ابراهيمي

# معاصرو عربي ادبياتو ته يوه کتنه

ژباړن: عبدالجبار ترنګ



د الفبا مجلي[1] په وينا په معاصرو نړيوالو داستاني ادبياتو کي د عربي هيوادونو د قلموالو او کيسه ليکوالو نوم او شهرت پيکه او تت دی. مګر ځينو ګوت په شمېر عرب ليکوالو يو لړ داسي آثار پنځولي چي پر ژوند، شخصيت او پنځونو يې بحث يوه اړتيا ښکاري. که څه هم د باوري ژباړو، کافي سرچينو او عربي داستاني ادبپوهانو د شمېر کمښت دا ليکنه ستونزمنوي، بيا به هم د معاصرو نړيوالو داستاني ادبياتو له زاويې څخه معاصرو عربي داستاني ادبياتو ته يوه لنډه کتنه وکړم.

ښايي تر ټولو لرغوني ليکل سوې کيسه مصري داستان (دوه وروڼه) وي چي پر ۳۳ قبل الميلاد کال پر پاپيروس ليکل سوي دی. له بله پلوه کيسه له پيله په قرآن مجيد کي ځلېدلي او ډېر آيتونه او سورتونه يې په يوه مقصدي داستان کي رينه لري چي د بېلګي په توګه احسن القصص يا د يوسف او زليخا داستان ته نغوته کولای سو.

عرب کيسه ليکوالو په پيل کي اړين تکنيکونه نه مراعتول او ډېری داستانونه يې ساده او له يووالي، فوريت، کليت، رښتيايني، لنډون او... څخه برخمن نه وو، چي وروسته د ادبياتو له اوښتون سره. په عربي ټولنو کي هم کيسه ليکني خپله هنري او نوې څېره د دوديز نقاب له شا راښکاره کړه.

په عربي ادبياتو کي نوښت په ۱۷۹۸م کي پر مصر د ناپليون له يرغل سره پيل سو. نوموړی بريد د لوېديځ او ختيځ تر منځ د يو و بل پر وړاندي د سياسي ـ فرهنګي نښتي او عمل و غبرګون لامل وګرځېد. پر همدې بنسټ سوريه هم له لوېديځ فرهنګ، هنر او ادبياتو اغېزمنه سوه او ورو ـ ورو د دغو هيوادونو کيسه ليکني نوې جامه واغوسته او د العبرات ـ اوښکي (د منفلوطي مصري ليکنه)، د زينب کيسه (د هيکل بک ليکنه)، د اروا راستنېدنه (د توفيق الحکيم ليکنه) او د نجيب محفوظ اوچت اثر بين القصرين په شان آثار وپنځېدل او جبران خليل جبران او نقولا حداد (سوري ليکوال او د السيدات و الرجال ورځپاڼي مدير) خپله ورتيا او ليکني نبوغ څرګند کړ.

په عربي ادبياتو کي د کيسه ليکني لومړنۍ بېلګي له تاريخي ناولونو راپيلېږي. جرجي زيدان په دې برخه کي زيات آثار وپنځول چي ابو مسلم خراساني، د فرغاني ناوي، د روژې ناورين، صلاح الدين ايوبي او ... يې آثار دي. دا چي په کلاسيکو عربي ادبياتو کي د نوي کيسه ليکني چوکاټ نه

[1] د اسلامي تبليغاتو د سازمان د هنري څانګي داخلي خپرونه

و، نو يې غربي هغه ته مخه کړه. لږ وروسته د کيسه ليکوالو شمېر زيات سو او له فرانسوي، انګليسي، الماني او ايټالوي ژبو څخه آثار وژباړل سول.

د منفلوطي العبرات، د طه حسين الايام، د تيمور الاطلال او د ابي حديد انبه المملوك د عربي نوموتي ناولونه شمېرل کېږي.

دغه مهال ډاکټر (هيکل بای) يا هيك بك تر نورو ډېر د کيسه ليکوالۍ تکنيکونو ته پام وکړ، مګر نورو ليکوالو د شخصيت او داستاني جوړښت تر منځ اړيکو ته چندان توجه ونه کړه.

بايد وويل سي چي کيسه ليکني د عربي نثر په جوړونه کي خورا ارزښتناك ځای درلود. حسين هيکل بای، احمد امين، مازني او توفيق الحکيم د عربي نثر د سبك په ساده کولو کي زيات اغېز درلود.

د مصر داستاني ادبيات او کيسه ليکنه اوږد تاريخ لري، چي د بېلګي په توګه تر مېلاد ۳۳ کاله وړاندي د يوه نامعلوم ليکوال[۱] خوا د (دوه ورونه) په نامه ليکل سوې کيسه يادولای سو.

د مصر ستر تمدن ته په پام سره د کيسه ليکني د بهير د سستۍ او نه پرمختګ لامل د لنډو سوو غربي ترجمو کارونه او پر زړو او قراردادي سمبولونو تکيه ده. له کيسي او داستان سره د مصري وګړو لېوني مينه او د ځينو مصري ليکوالو ژمنتيا د دې باعث سوه چي د مصر د کيسه ليکني خوځښت ورو ورو ځان له قيده آزاد او په منفرد او پاشلي ډول تکامل ته ورسوي. د (کيسي) اصطلاح په کارونه د مصری کيسه ليکني پراختيا ډېر ځله هغه آثار چاپېروي چي افسانوي رنګ لري او د کيسه ليکني ښي پکي نه وي. د مصري ليکوالو يوه مهمه ځانګړنه د دوديزو قالبونو پالنه او بيا يې له نوو هغو سره نښلونه ده. ياده سوې ځانګړنه د احمد شوقي(۱۹۳۳_۱۸۶۸م) د (د هند پېغله) په نوم لومړني رمان کي په يو ډول نامتعادله او ناعادي بڼه ليدل کېږي. مصطفى لطفي المنفلوطي، توفيق الحکيم، هيکل بای، جرجي زيدان او د نړۍ نوموتی ليکوال نجيب محفوظ د مصر د نماينده کيسه ليکوالو په توګه يادېدلای سي.

## نجيب محفوظ

## (د دووتمدنونو زوی)

د عربو يو تر ټولو لوی او بې جوړې ليکوال نجيب محفوظ دی، چي په ۱۹۸۸م کي يې عربو ته نوبل جايزه وګټله. ده لومړی په ادبي مجلو کي د معاصر ژوند په اړه وړې طرحي چاپ کړې چي د نورو په ژوند کي د کشمکش او تراژيدۍ د ډګرونو په نسبت يې د يوې متيني او هوښياري ځوانۍ د تاثيراتو او تاثراتو کيسه کوله.

نجيب محفوظ د سوېډن له ټولني څخه د خپلي جايزې د ترلاسه کولو پر مهال ځان داسي معرفي کړ:-

"زه د دوو تمدنونو زوی يم، يو فرعوني او بل اسلامي تمدن"

د محفوظ لنډي کيسي د مصطفى لطفي المنفلوطي له آثارو څخه اغېزمني وې. ښکاره ده چي آن هغه مهال لا محفوظ خپلي کيسي د معاصرو ليکوالو خلاف (چي منثوره کيسه يې د




نجيب محفوظ

یوه ادبي قالب په توګه نه منله، د افکارو د روښانولو او ټولني د سمون او پرمختګ وسیله بلله. د نورو له اندېښنو او انګېزو سره د اخلاقي ژمنتیا او لېوالتیا هغه احساس چي د نوموړي په لومړنیو کیسو کي تر سترګو کېږي، د ده د وروستیو آثارو د غوراوي لامل هم دی او هغه پراخه پاملرنه او درنښت چي محفوظ ګټه ځني اوچتوله، د همدې احساس زېږنده دی. د ده له آثارو څخه (د شیطان شرارت، د ولسمشر د وژلو ورځ، مدق کوڅه، د توري ېېزو میکده او د تېپي پر سر مینه) د غورو هغو په توګه یادولای سو.

**مدق کوڅه (۱۹۴۷):-**

د (مدق کوڅه) رمان د مصر په زړه کي د یوې غریبي او لرغوني سیمي کیسه ده. حمیده یوه ځوانه نجلۍ ده او تر ټولو ستره هیله یې له دې ځوروونکي سیمي تېښته او یوه نېکمرغه او آرام ژوند ته رسېدل دي. عباس حلو یو سپېڅلی ځوان دی، چي پر حمیدې مینېږي، مګر د ټولني د ټیټ پوړو وګړو په شان ساده او لومړني ژوند لري. عباس د حمیدې د غوښتنو د تر سره کولو لپاره د انګلستان په پوځ کي دنده پیلوي او ... مګر بشپړه کیسه همدا نه ده. کیسه، د هغو وګړو کیسه ده چي هر یو یې ځان ته ستونزه لري. (مدق کوڅه) د خیر و شر، سپېڅلتیا و ناولتیا، میني و فریب تر منځ ټکر دی. په دغه رمان کي د محفوظ د ډېرو آثارو په شان، وخت د بې مرګه کېږې او سیمي په شخصیت کي راغلی او د داستان د پېښو مرکز ګرځېدلی دی. هغه کوڅه چي د ژوند او مرګ دایره تل پکښي په څرخ او تسلسل ده او د خپلو اوسېدونکو هیلي او تراژېدۍ په بې تفاوتۍ ننداره کوي. رمان د بشري ژوند ډرامه نېغ په نېغه په خپل لید کي راوستې ده، او د یوه هېښوونکي مهارت په مټ د یوې ادبي پنځوني زېږنده ده. مګر په (مدق کوڅه) کي هم، د ژوند د ساه په شان دومره شور، خوښي، رنګونه او هیجان پروت دی چي دغي فاني او ژر تېرېدونکي کتني ته روح او ژوند وبخښي.

## جبران خلیل جبران

## (د دودیزو لارو ماتوونکی)

جبران پر ۱۸۸۳م د لبنان په (بکاري) کي نړۍ ته راغی. مور یې خپل اولادونه له لبنانه متحده ایالاتو ته بوتلل او پلار یې د کار په موخه په لبنان کي پاتي سو. جبران په ځوارلس کلنۍ کي د عربي ادبیاتو د زدکړې په نیت د دوو کلونو لپاره لبنان ته لاړ او بېرته امریکا ته وګرځېد. د (اف ډې) په نوم یوه هنرمند عکاس سره د ده پېژندګلوي په دغه مهال کي د ده د ژوند مهم ټکی سو.

جبران په شل کلنۍ کي خپله مور له لاسه ورکړه او د خور (چي هغه هم لیکواله او انځورګره وه) تر مالي څارني لاندي راغی. په ۱۹۰۴م کي یې خپل لومړنی هنري نندارتون په بوستن کي پرانیست. لومړنی کتاب یې هم یو کال وروسته د



جبران خلیل جبران



د جبران لیکلی اثر

(الموزیکا) په نوم چاپ سو. په ۱۹۱۲م کي نیویارک ته لاړ او خپل وخت یې لیکوالۍ او انځورګرۍ ته ځانګړی کړ.




د جبران لیکلی اثر جبران

جبران له ۱۹۱۸م کاله خپل ډېری آثار په انګلیسي ژبه ولیکل، تر دې چې د ۱۹۲۰_۱۹۳۰م کلونو په ادبیاتو کي یې بنسټیز اوښتون رامنځته کړ. د ده لیکنۍ لار ـ چې د ښکلا او معنویت ترکیب و ـ په معاصرو ادبیاتو کي د (جبرانیزم) د سبک په نوم ثبت سوه.

خلیل جبران د عرب لیکوالو لپاره د (المهجر) په نوم یوه ټولنه بنسټ کړه چې په محافظه کارو عربي ادبیاتو کي د بنسټیز اوښتون راوستلو لپاره یوه ښه زمینه بلل کېده. جبران د ۱۹۳۱م د اپریل میاشتي پر لسمه نېټه د (کبد) ناروغۍ له امله د ژوند پر اووه شپېتم کال په نیویارک کي ومړ.

جبران په خپله وصیتنامه کي د خپلو آثارو ټول امتیاز او لاسته راوړنه د خپل زېږنځای (بکاري) د وضعي ښه والي ته ځانګړې کړې ده. د دغه ستر لیکوال تر ټولو مشهور آثر (پیغمبر) دی چي شپږویشت شاعرانه رسالې او د ځاني تجربو یوه برخه چاپېروي. نوموړی اثر د نړۍ په څه باندي دېرشو ژوندیو ژبو ژباړل سوی دی. د ده اورني توري کیسې، مقالې، سپین شعر او نمایشنامې رانغاړي. د اروا حمام، لېوني، د میني او تلپاتوالي کوچنی کتاب د نوموړي نور آثار دي. د (مجنون یوحنا، ورده الهاني، مارتا، لبنانۍ نجلۍ، هیله منه بنفشه، د ناوي خونه او مات وزرونه) په نوم لنډې کیسې یې د عربي ادبیاتو بریالۍ کیسې بلل کېږي.

د ناوي خونه: د د ناوي خونه داستان د میني کیسه ده. د هغې میني کیسه چې د واټنونو له آوازه زېږي او د مینانو زړه بایلنه او ښور په یوه جذباتي بڼه پکي راښکاره کېږي. په (د ناوي خونه) کیسه کي، یوه ځوانه، سنجیده، پاک زړې او ښکلې نجلۍ د ځملاستي(جماع) د معنا پر رښتیاینه تر پوهېدو وړاندي له یوه شتمن نارینه سره واده کوي. نجلۍ د تېل سوي واده ترخه څکي او په یوه دردناك او پارېدلي حالت کي د دود خلاف، مېړه خوشي کوي او له خپل اصلي مین سره چې هماغه رښتینی عشق دی یو ځای کېږي.

په دوو کیسو (د ناوي خونه) او (کافر خلیل) کي د خلیل جبران د دود ماتوني اروا اوج ته رسېږي او د رښتیني میني د ننداري په ترڅ کي د فیوډالیزم د کشیشانو، ناپوهۍ او هغو بدعتونو پر ضد چي د حضرت مسیح پاك قانون ته یې لار کړې په بشپړ ځواك پاڅېږي. لنډه دا چي د (د ناوي خونه) او (کافر خلیل) کتاب په کیسو کي یې د ستمګرو ټولنیزو او مذهبي قوانینو او تګلارو پر ضد زغ پورته کړی او مخالفت یې ورسره کړی دی.

په تېوليزه توګه دغه دوه داستانونه د سياسي فيوډاليزم او تحريف سوو مذهبي دودونو پر وړاندي د ده د اندېښنو جدي جګړه بيانوي.

## د فلسطين کيسه ييز ادبيات

### حليم برکات

د فلسطين د مقاومي ځمکي کيسه ييز ادبيات د حليم برکات او غسان کنفاني په نومونو پېژندل کېږي. حليم برکات په (شپږ ورځي) کيسه



حليم برکات

کي په دې توکم کي د ترون مسئله وړاندي کوي.

حليم برکات، خپل اصلي شخصيت (سهيل) د بحران په داښ، د مصيبت په زړه او د تاريخ دناورين په يوه لړزوونکې شېبه کي رامنځته کوي. سهيل د (ديرالبحر) په نوم يوه کلي زوی دی چي يهوديانو په تسليم او يا هم تلپاتي نابودی منلو باندي وګواښه. د (شپږ ورځي) داستان بنستيزه پېښه د دښمن د خبرداري پر وړاندي هماغه د ديرالبحر مصيبت دی.

سهيل په (شپږ ورځي) کيسه کي له يوه کشمکش سره مخېږي. آيا له هوسا اروپا سره وتړل سي، که د خپلي ځمکي ارزښتونو ته ژمن پاتي سي او د هيلي و نهيلی، تېښتي و مبارزې، مرګ و ژوند او دوستی و ځان خوښوني په دوړو کي ورک سي؟ سهيل د (ناهدې) په نوم يوې نجلی ته چي په مذهب ځني بېله ده زړه سپارلی دی او ... په هر حال حليم برکات په (شپږ ورځي) داستان کي خپله هڅه د زمان او مکان اخښلو ته ځانګړې کوي او له همدې ځايه ده چي د ده د هنري کار بنسټ پر دروني يو ويلو ولاړ دی.

### غسان کنفاني

د مقاوم ادب له اړخه (د لمر نارينه) د کنفاني ډېر اوچت اثر دی. هغه د يوې بشري ټولی کيسه کوي، د يوې داسي ټولی چي زورواکانو يې ځمکه له پښو کښلې او يوازې يې د (ژوندي پاتېدو) هيله ورپرې ايښې ده. (د لمر نارينه) ابوقيس، اسعد او مروان دي چي د عراق بصرې ښار ته پر ځان رسولو او له هغه ځايه کويټ ته پر تېښته بريالي سوي دي چي د دوی په اند ښايي يو آرام او د ځمکي له پرله پسې رنځونو ليرې ژوند پکي ترلاسه کړي. دغه درې نارينه د فلسطين آواره ملت ننداري ته وړاندي کوي. هر يو يې ځانګړې غميزه لري. مګر درې سره په يوه پېښه کي د يوه وېروونکي مرګ



غسان کنفاني

منګولو ته لوېږي. (د لمر نارینه) داستان درې نارینه له سرحدي پوستو څخه د تېرېدو له امله ځانونه په قاچاقي بڼه د تېلو په يوه ټانکر کي پټوي.

د لـــومړۍ او دويمـــي پوســـتې او يـــو لــږ ځوروونکو پېښو تر تېرېدو وروسته، د لمر نارينه په ټانکر کي له منځه ځي او چلوونکی پر مړو دومره لوړې چيغې وهي چي غبرګون يې په دښته کي شور جوړوي:

- ولي مو د ټانکر دېوال ونه ټکاوه؟ ولي مو د زندان دېوال په سوك ونه واهه؟ ولي؟ ولي؟ ولي؟

ښايي د داستان پيغام دا وي چي ولي عرب سروالان د مرګ دېوال په سوك نه وهي؟ ولي د نيواکګرانو د استعمار دېوال نه ړبوي؟

سهيل د (شپږ ورځي) په پای کي د دښمن افسر ته اخطار ورکوي چي ايرې، ځمکه بلاربوي او ابوالخيزران(د تېلو د ټانکر چلوونکی) د لمر پر نارينه وو چيغي وهي چي ولي مو د زندان دېوال په سوك ونه واهه؟

دغه دوې ناخوښوونکي پايلي، حليم برکات ته يوه ستره هيله غوروي چي د ده (شپږ ورځي) به ژر اوومه ورځ ولري او هغه ورځ به، د خپلواکۍ دا وي او همدارنګه د غسان کنفاني د (لمر نارينه) به د مرګ ټانکر ته ور ونه ښوويېږي، بلکي د ژوند د لمر پر لوري به لار پرانيزي.



غسان کنفاني



غسان کنفاني

په ټوليز ډول د فلسطيني کيسه ليکوالو شخصيتونه د انتقادي رياليزم پر لوري وړاندي ځي. اصلاً ډېر ځله د فلسطيني کيسه ليکوالو منځپانګه د فلسطين اشغال او د دښمن پر وړاندي مقاومت او پايداري ده، لکه (خليل سواحري) چي په (د باشورې قهوه خانه) داستان کي د لوستونکي احساسات د وطن ميني او د دښمن په مقابل کي ژوري کرکي ته پاروي.

جمال بنوره هم په (ورك جدي والشي) داستان کي د ښځو او ماشومانو پر وړاندي د نيواکګر دښمن وېروونکي او بې رحمانه کړني انځوروي. د فلسطيني ليکوالو ليکنې لار ډېر ځله ساده او د کوڅي و بازار د وګړو ژبه ده يعني هغو وګړو ژبه چي د فلسطين رښتيني اتلان شمېرل کېږي او په کيسو کي ځلېږي.

## د الجزاير کيسه ييز ادبيات

محمد ديب د الجزاير د نوي کيسه ليکني په سروالانو کي راځي. د نوموړي درې لنډي کيسې: ستر کور، اور سوځېدنه او تون(د غالۍ اوبدلو دستګاه)، د الجزايري وګړو يادګارونه بلل کېږي.


محمد دیب

(افریقایي اوړي) کیسه د دیب یو بل اثر دی چې بېله او اوچته هنري تومنه لري. دیب په (آفریقایي اوړي) کې د هغو دودپالونکو په شان نه دی چې ناورین اوج ته رسوي او له هغه ځایه یې ورو-ورو د پای پر لوري راولي. دی خپل فني جوړښت له شخصیتونو اوبي، داسې چې له یوه سره څو ګامه ملتیا کوي او بېرته یې خوشې کوي او دویم و درېیم شخصیت رامنځته کوي، چې همدلته بیا لومړي شخصیت ته بېرته په نوې بڼه راګرځي.

د (ذکیې) شخصیت د محمد دیب په وسیله څارل کېږي. ذکیې ښوونځۍ پای ته رسولی او غواړي د ښوونکي دنده خپله کړي، مګر کورنۍ یې د واده لارښوونه ورته کوي. دلته لیکوال دویم شخصیت ته مخ اړوي. دا شخصیت د (مرحوم) په نوم یو بزګر دی چې پر خره سپور او د ښار پر لوري په منډه دی او نه غواړي پر لار سرتېري ووینې. ده فرانسوي سرتېري لیدلي وو چې سرګردانه یې منډې وهلې او په ډزو، وینو او مرګ یې لارې کوڅې په هدیرو بدلولې.

محمد دیب مو د داستان په اوږدو کې درېیم شخصیت ته بیایي، هغه سړي ته چې ځواکمنو ښو ته اړتیا نه لري او هغه (بابا علال) دی چې سهار وختي یې په کور کې د چا ږغ تر غوږ کېږي او ناڅاپه له یوه سړي سره مخېږي او هغه یې د سیلکا په نوم یوه کس ته د پناه ورولو لپاره لارښوونه کوي....

لږ وروسته مو لیکوال بېرته مخکینو شخصیتونو ته ګرځوي او مرحوم ته مو بیا ورولي او هغه وینو چې پر خپل خره ناست او د خپلو نېکمرغو ورځو په اړه په اندېښنو کې ډوب دی.

محمد دیب مو د (افریقایي اوړي) په پای کې بېرته پیل یعنې ذکیې، د هغې پلار، نیا، دایي او عمه زوی ته ورګرځوي. محمد دیب په نوموړې کیسه کې فرانسوي استعمار او د الجزایري وګړو د پایدارۍ ننداره وړاندې کوي.

## مالک حداد

حداد د الجزایر د کیسه لیکنې یوه بله څېره ده. د (زدکوونکي او لوست) کیسه یې د هغو خوځېږو تناقضاتو تر ټولو ژور هنري ترسیم دی چې نوموړي یې له دننه سوځاوه. مالك خپله لیکنه له کلیمې پیل کړې او وروسته جملې ته رسېږي او له همدې ځایه نورې داستاني اوبدنې پیلوي. نوموړی داستان اصلاً له ځان سره خبرې (مونولوګ) دی. (زدکوونکی او لوست) په خپل ځان کې یوه پراخه ځانې مرکه ده، ځکه په ټول داستان کې له یوې خبرې پرته چې هغه هم یو بوډا الجزایری ډاکټر دی او یکې یوازې اوسېږي، له بل هیچا سره نه پېژنو، لور یې -چې کله_کله تر سترګو کېږي- د یوه هوایي خیال په شان یې په زړه و مغز کې اوسېږي...

په هر حال داستان د دښمن پر وړاندې د پایدارۍ پر محور وړاندې ځي او د یوه ملت رنځ او هیله په هنرمندانه توګه انځورېږي.

## د سوریې داستاني ادبیات

د سوریې فرهنګ او ادبیات اوږده کلونه د لوېدیځ تر اغېز لاندې وو. په سوریه کې لوېدیځ پلوه نهضت واکمن او په ډېرو مسیحي ټولنو په تېره لبنان کې یې منګولې ښخې کړې وې. د لوېدیځ فرهنګ مینه وال مبلغان او د دوی ښوونځي وو چې ځوان نسل یې د اروپایي اند تر سیوري لاندې کړی او د غربي آثارو په تېره فرانسوي هغو مطالعه یې د دوی تر منځ دود کړې وه.

نوموړی نهضت په لومړیو کې لوېدیځ پلوه ته زیاته پراختیا ورکړه او یو ډول سست تعادل یې رامنځته کړ. د دغه لومړني پړاو تر ټولو نوموتي

شخصیت احمد فارس الشریاق و. ده خپلي لومړنۍ زدکړې په سوریه کې وکړې او د مصر د لوېدیځ پلوۍ تر اغېز لاندې راغی.

په هر حال د نوګیو(ځوانو) سوري لیکوالو د نوښت مخه د غربي شعر، داستان او نمایشنامو د ژباړو خپېدو کړه او له همدې امله سوریه ونه توانېده چې نړیوال داستاني ډګر ته ستر لیکوال وړاندې کړي.

## غاده السمان

غاده السمان د سوریې معاصره لیکواله، شاعره او متفکره ده. دا په ۱۹۴۲م په دمشق کې وزېږېده. پلار یې ډاکټر احمد السمان د سوریې د پوهنتون او ښوونې او روزنې رییس و. غاده د سوریې له پوهنتونه د انګلیسي ادبیاتو لیسانس ترلاسه کړ. تر لیسانس لوړې زدکړې یې د بیروت په امریکایي پوهنتون او د انګلیسي ادبیاتو ډکترا یې له لندن پوهنتونه واخیسته. اوږد مهال د دمشق پوهنتون استاده وه او همدغه مهال یې په مطبوعاتي چارو لاس پورې کړ.

نوموړې او سمهال د الحوادث په نوم یوه مجله کې اوونیز کالم چلوي او ورته ځانګړې سوې پاڼه یې (د خوشي کېدو شېبې) بې شمېره مینه وال لري. دغې پرکاره مېرمنې د خپلو آثارو د چاپولو لپاره یوه خپرندویه موسسه تاسیس کړې چې یوازې د دې کتابونه خپروي.

د غاده السمان ډېر آثار د نړۍ په ژوندیو ژبو ژباړل سوي دي. په ځانګړې توګه یې لنډې کیسې په انګلیسي، روسي، فرانسوي، الماني، یوګوسلاوي، لهستاني، اسپانیایي، ارمني، ایټالوي او ... ژبو اړول سوي دي.

غاده په الحوادث مجله کې د (ایراني لوستونکي ته د میني لیك) په نوم یوه لیکنه کې لیکي:

(زما هغه دننني راز چې په شعرونو کې مې پټ کړی و، یوازې ایرانیانو وموند.)

دا د لبنان تر جګړو وروسته پاریس ته مهاجره سوه او اوس هم هورې اوسي. مېړه یې ډاکټر داعوق د پوهنتون استاد دی یوازنی زوی یې حازم د پوهنتون په وروستیو پړاوونو کې دی.

غاده السمان د نظم او نثر زیات آثار لري چې لاندې څو یې څنې یادولای سو:-

- عيناك قدري، ۱۹۶۲م
- اعلنت عليك الحب، ۱۹۷۳م
- رحيل المرافى القديمه، ۱۹۷۳م
- حب، ۱۹۷۳م
- كرابيس بيروت، ۱۹۷۶م
- اشهد عكس الريح، ۱۹۸۷م
- بيروت، ۱۹۹۵م
- لا بحر فى بيروت، ۱۹۹۵م
- عاشقه فى مبحره، ۱۹۹۵م
- رسائل الحنين الى الياسمين، ۱۹۹۶م
- القلب نورس وحيد، ۱۹۹۸م
- الابديه لحظه حب، ۱۹۹۹م

**پای**



غاده السمان



# د فلسفې او ژوند نړۍ

## فیلسوف

لیکوال :
استاذ صباح



ژباړن :
همیم جلالزی/غزنی

فیلسوف هغه چا ته ویل کېږي چي له فلسفې سره اړیکي او سروکار ولري، یاني د فلسفې عالم وي. پخوانیو خلکو به فیلسوف ته حکیم وایه، د دوی موخه له دغي کلمې څخه دا وه چي حکیم هغه څوک دئ چي په بېلابېلو پوهنو، لکه : طب، ریاضیات او داسي نورو باندي برلاسی وي او دغه رازيې همدغه یاد سوی حکمت (فلسفه) هم د یوې داسي پوهي په توګه چي د موجوداتو له حالاتو څخه بحث کوي زده کړې وه. فیثاغورث لومړنی سړی و چي خپل ځان یې فیلسوف یاني د پوهي مینه وال وباله، ځکه د ده په اند د حکیم ستاینوم یوازي له خدای ﷻ سره ښایېده او په هغه پسي ځانګړی و. فیثاغورث ژوند د لوبي او سیالۍ له ډګر سره ورته باله او ویل یې :-

"هغه کسان چي دغه ډګر ته حاضرېږي، درې ډلي دي :-

یو هغه کسان چي په لوبه کي د ګډون په موخه دغه ډګر ته حاضر سوي دي.

دوهم هغه ډله کسان دي چي د ټکټونو د پېر او پلور له پاره راغلي دي، او درېیم هغه کسان دي چي د ننداري له پاره راغلي وي.

د ژوند په ډګر کي درېیمه ډله کسان فلاسفه دي. همدا فیلسوفان (د ننداره چیانو په څېر) نړۍ له پاسه ګوري او د هغې په اړه پرېکړه کوي. فیلسوف

تل د داسې ستونزو په مطالعه بوخت وي چې زموږ ټولو له پاره ارزښت لري".

نوموړي د سمې انتقادي مطالعې په مټ هڅه کوله چې د نرۍ او انسان په اړه زموږ ګروهې او پېژندنه ارزښتمن ثبات کړي. نوموړي هڅه کوله د هغه څه چې موږ يې په پوهېږو او يا يې په اړه سوچ کوو، يو ټوليز، منظم او منطقي انځور طرحه او راډګر ته کړي.

يو عادي سړی د يوه فيلسوف د څېړنې په رڼا کې او هغې ټوليزې طرحې ته په کتلو سره چې ده رامنځ ته کړې وي، کولای شي د نړۍ او هغو انسانې لارو چارو چې له هغې طرحې سره متناسبې وي په اړه خپل تصور اصلاح کړي او خپل کره وړه له هغې سره سم وسنجوي.

د فلسفې له هماغه پيدايښت څخه د هغو متفکرينو ګروهه چې په دې ډول څېړنو بوخت وو، دا وه چې هغه اندونه او الواکونه چې د خپل ځان او نړۍ په اړه يې منو بايد تر ژورې څېړنې لاندې ونيسو، څو وينو چې ايا دا شيان عقلاً هم د منلو دي کنه؟

موږ ټول د نړۍ او انسان په اړه ګروهې او پوهه لرو، مګر يوازې څو کسانو په مـ . کې دا فکر کړی دئ چې ايا زموږ همدغه ستـه معلومات او ګروهې د باور او داډ وړ دي او کنه؟

فيلسوف ټينګار کوي چې دا ټول په ژوره توګه مطالعه کړي څو وپوهېږي چې دغه اندونه او ګروهې په بشپړو لاسوندونو او سرچينو باندې ولاړ دي، کنه؟

سقراط فلسفې ته د خپلې پاملرنې دليل داسې ياد کړی دی :-

"له تفکر او سوچه پرته ژوند، ژوند نه دئ، او هيڅ ارزښت نه لري".

نوموړی په دې پوهيده چې د ده د چاپېريال ټول خلک خپل ژوند بېلابېلو موخو، لکه : خوندونو او ښتمنۍ ته په رسېدلو لګوي، پرته له دې چې له ځانه وپوښتي چې ايا دغه چارې کوم ارزښت هم لري او د داډ وړ دي او کنه؟ او ځرنګه چې له ځانه څخه د داسې سوال پوښتنه نه کوي او د ځواب په لټه کې يې هم نه دي، نو په دې نه سي پوهېدلای چې دوی پر سمه لار روان دي او کنه؟ او د دوی ټول ژوند د بې ګټې او ناوړه موخو په لاسته راوړلو باندې لګېږي. له همدې امله ټول فيلسوفان په ټوليز ډول په دې اند دي چې د اندونو، فکرونو او ګروهو او د هغو د دلايلو مطالعه، کتنه، کره کتنه او شننه مهم او ارزښتناک شی دئ. په بنسټيزه توګه فيلسوف هغه چا ته ويل کېږي چې داسې ځانګړنې ولري چې له يوې فلسفي اروا سره ښايي.

د دغو ځانګړونو يو څو په لاندې ډول دي :-

۱. فيلسوف هغه څوک دئ، چې د سول په ارزښت ايمان لري او په خپله پوهه او کړو وړو کې د سول د پرېکړو پيروي کوي. دا مهال دئ د هغه چا په ډول نه وي چې پخپله پوهه او کړو وړو کې په وحيه او الهام باندې باوري وي او يا په خرافاتو باندې ډېره لګوي.

۲. فيلسوف هغه څوک دئ چې د پېښو او چارو د بنسټيزو لاملونو په اړه تحقيق کوي. په بل عبارت دی يو متفکر دئ چې د پېښو په هکله د سول په مټ شننه کوي او د هغو لاملونو پلټنه کوي.

۳. فيلسوف هڅه کوي چې د نړۍ او د هغې د ځرنګوالي په مانا ځان وپوهوي، دی شيان له هغه اړخه څخه نه څېړي چې نورې پوهې يې څېړي، بلکې د شيانو له هستۍ او ځرنګوالي سره کار لري او غواړي چې د شتون قوانين ومومي.

۴. فيلسوف د جزئياتو په اړه فکر نه کوي، بلکې ټولې چارې په يوه کُل کې ګوري، يانې د ژوند او نړۍ په اړه ټول اندونه او الواکونه په يوه کُل کې يو د بل تر څنګ دروي او هغوی تنظيموي او وروسته ورباندې کره کتنه کوي.

۵. فيلسوف هيڅ شی هم تر هغه پورې نه مني، چې خوښې برهان او استدلال شتون ونه لري، بلکې تر هر څه وړاندې خپل د پام وړ شی مطالعه او ازمويي، چې هسې نه فلسفي دستګاه ته کوم غير سولي، توک نه وي ننوتلی.

۶. فیلسوف بې له دې چې خپلو موخو یا هغې چارې ته چې دی ورسره سروکار لري وګوري، غواړي چې د نړۍ او ژوند په اړه افکار او اندونه مطالعه او کره کتنه پر وکړي. دی غواړي پوه سي چې موږ انسانان د هغو بنسټیزو مسایلو په اړه چې ورسره مخامخ یو څه ډول سوچ کوو؟ زموږ پېژندنه د هغوی په وړاندي پر څه شي ولاړه ده؟ او هڅه کوي چې سمې پرېکړي ته د رسېدلو له پاره کوم آرونه او آړونه باید په پام کي ونیول سي؟

۷. فیلسوف هڅه کوي چې د نړۍ انسان او هغو انساني ارزښتونو په اړه چې موږ یې لرو، زموږ ګروهې او اندونه روښانه کړي. دی وړاندي تر دې چې د ګروهو یوازې یوه ټولګه له ځانه سره ولري، داسي احساس کوي چې دغه ګروهې باید په غور سره وکتل سي او د اندونو په یو داسي نظام کي ځای پر ځای سي چې یو له بله سره منطقي تړاو او اړیکي ولري.

۸. فیلسوف تل په دې هڅه کي وي چې ځانته حقایق څرګند کړي، دی له حقیقته پرته په بل شي پسي تړلی نه دی.

## د فلسفې تګلاره :-

هره پوهه ځانته یوه تګلاره لري چې د دغې تګلارې په مټ هره پوهه خپلې موخې ته رسېدلای سي. مثلاً د کېمیا د پوهې تګلاره ازمویښت او کتنه ده، یانې تجربي تګلاره ده، ځکه د دغې پوهې موخه د شیانو د کېمیاوي ځانګړنو پیدا کول دي، البته د دې له پاره چې ګټه ورڅخه واخیستل سي او د دې موخې د لاسته راوړلو له پاره له تجربې پرته بله هیڅ لاره نسته، چې سړی خپلې دغې موخې ته ورسوي. یا د بېلګې په ډول د ریاضیاتو موخه د اعدادو تر منځ اړیکي پیدا کول دي، او څرنګه چې عدد د سولې او انتزاعي سکال دئ او په خارج کي شتون نه لري، نو له همدې امله د دغې پوهې تګلاره له خپلې موخې او موضوع سره انډول او د سول، محاسبې او تفکر تګلاره ده.

## د فلسفې د پوهې تګلاره :-

لکه څنګه چې مخته وویل سول کولای سو په فلسفه کي د هغو قواعدو ټولګه چې د دغې پوهې موخې یانې د فلسفي مسایلو طرحې، اثبات او په هغې کي رامنځته کېدونکو بنسټیزو پوښتنو ته ځواب ولټوي، د فلسفې تګلاره بولو.

د فلسفې تګلارې له لویه سره د نورو پوهنو له تګلارو سره توپیر لري، لکه څنګه چې وویل سول له ریاضیاتو پرته نورې ټولې پوهنې له تجربې تګلارو څخه ګټه اخلي، دا په داسي حال کي ده چې له تجربي تګلارې څخه په فلسفه کي ډېره لږه ګټه اخیستله کېږي، (ریاضیات او فلسفه دې وکتل سي) نو پر دې بنسټ نه سو کولای چې د فلسفې او نورو پوهنو په تګلارو کي بشپړ ورته والی وموم.

یو ټکی چې هغه ته باید پاملرنه وسي دا دئ چې فلسفه یوازې یوه تګلار نه لري، بلکې د خپل سکالوګانو سره پرتلې ته په پام سره د بېلا بېلو تګلارو درلودونکې ده.

په حقیقت کي باید داسي ووایو چې په بنسټیزه توګه فلسفه ډېرو بېلا بېلو تګلارو ته اړتیا لري، ځکه باید د انساني تجربو ټول اړخونه شرح او وشني. نو پر دې بنسټ فلسفه د خپلې تګلارې د ټاکلو په معیار کي دوه شیان په پام کي نیسي :-

الف : د ټولو انساني تجربو همږغي کول.

ب : له ټولو انساني تجربو څخه د یوه بشپړ انځور لاسته راوړل.

یو فیلسوف باید له هغو تجربو څخه یو انسان چې پخپل ژوند کي لاس ته راوړي یو بشپړ تصویر لاسته راوړي او هغه خپله موخه وګني. نو له همدې امله د ده تګلار هم باید په داسي ډول وي چې دغې موخې ته د رسېدلو له پاره لاره اواره کړي.

څرنګه چې مخته وویل سول د بېلا بېلو فلسفي مکتبونو یا د هره یوه مکتب، یا هر فیلسوف د موخې پر بنسټ د فیلسوفانو او فلسفي مکتبونو تر منځ بېلا بېلې تګلار رامنځ ته سوي دي، چې هره یوه تګلاره د هغه مکتب یا فیلسوف له پاره پر مثل سویو آرونو ولاړه ده. د بېلګې په ډول که د یوه فیلسوف ګروهه دا وي چې یوازې په تعقل باندې کولای سو حقیقت ته ورسېږو، نو د ده تګلار به هم یوازې د

عقلي استدلال درلودونکې وي، مګر که چیرې د تعقل په څنګ کې په شهود او داخلي کشف باندې هم ایمان ولري او هغه هم د حقیقت عالم ته د رسېدلو یو اړین لامل وبولي نوبیا هغه مهال به یې بیا تګلاره یوازې عقلي استدلال نه وي، مور دلته د فلسفې د بنسټیزو تګلارو یوې برخې ته نغوته کوو او راوړو یې :-

استدلال یا قیاسي داسې یوه تګلاره ده چې په غوڅه توګه په فلسفه کې کارول کېږي او هر مهال چې د فلسفې له آرې تګلارې څخه خبرې کېږي موخه همدغه تګلاره وي.

په بنسټیزه توګه استدلال ذهني لاسته راوړنو ته وایه سي، چې د منطقي قوانینو او قواعدو پر بنسټ ولاړ وي او سم یا صحیح استدلال هغه استدلال ته ویل کېږي چې قیاسي وي. نو پر دې بنسټ د فلسفې تر ټولو د باور وړ او معتبره تګلاره همدغه قیاسي استدلال دئ او له قیاس څخه موخه دا ده چې د معلومو سریزو په اوډلو سره نامعلومو هغو ته ورسېږو، نو په دغې تګلاره کې پر دوو شیانو ډېره لګول کېږي :-

عقلي برهان او استدلال.

داخلي شهود چې د نفس په تصفیه او ریاضت باندې لاسته راځي.

دغې تګلارې ته په کتلو سره نه سو کولای چې یوازې د عقلي برهان او استدلال په زور د نړۍ حقایقو ته ځان ورسوو، بلکې د نفس په تزکیه او د داخلي مشاهداتو په مټ کولای سو چې د نړۍ هغه بل اړخ ته چې هماغه یې حقیقت هم دی ځان ورسوو.

لکه څنګه چې وویل سول په اشراقي تګلاره کې هم عقلي برهان او استدلال له پامه نه غورځول کېږي، بلکې یوازې پر برهان او استدلال باندې تکیه کول ناوړه بلل کېږي، دغه تګلاره په یو نه یو ډول عرفاني او تصوفي یا سلوکي تګلارو ته هم شاملېږي.

د سقراط مکاملې د مناظرې د تګلارې یوه بېلګه ده. په دغې تګلاره کې فیلسوف د تر بحث لاندې موضوع په شاوخوا کې پوښتنې مطرح کوي او هڅه یې دا وي چې سوال ځواب له لارې د موضوع ټول اړخونه روښانه کړي او حقیقت ته ورسېږي.

دغه تګلاره که څه هم په فلسفه کې لږه کارول کېږي، مګر د فلسفې په یو لړ بحثونو کې لکه د معرفت پېژندنې او د اخلاقو او ارزښتونو په بحث کې ورڅخه ګټه اخیستل کېږي، استقراء یانې دا چې فیلسوف د یوه جزئي شي په مطالعه سره کُلي یا ټولیزه پایله اخلي. په بل ډول که ووایو استقرایي تګلاره کُلي یا ټولیزو قضایاوو او احکامو ته د رسېدلو په موخه د یوې جزئي چارې مطالعه کول او کتنه ده.

په فلسفه کې دغې تګلارې تر سقراط وړاندې شتون درلود او دود وه، آن د ارسطو په فلسفه کې هم د فلسفې د څېړنې د تګلارو یوه برخه پاته سوه، مګر د خپل درلودونکي ماهیت له امله ورته ډېره پاملرنه ونه سوه.

نور په بله ګڼه کې



عبدالهادي ریشا/کراچي

## شنه دژړا مِل د خندا

زه داګرې پر کور بېکاره ناست یم. سړي چې بېکاره سو نو یې نیمه ورځ پر خان نیت بد وي نیمه ورځ پر جهان.

مګر ولا زه لا بنه یم په دې بېکارې کې مي څه دمه غلطه ده، درسته ورځ لکه باوله د ځانه سره خاندم، چرت وهم په خپل چرت سره مي سات تېر دئ. لکه د ځینو کسانو چې د چارلي چاپلین په فلم سات تېر وي او دی کټ کټ ورته خاندي.

زه پوهېږم چې هر څوک په یوازیتوب کې دونه خندا نه سي پیدا کولای، که نه نو زړه خو د هر چا غواړي چې وخاندي. ضرور چا ته دا سوال پیدا کېږي چې په یوازیتوب کې په څه شي او ولي د ده دونه ترنګ خوش دئ چې خاندي؟ په داسي حال کي چې نور خلک تر پزې ونیسې ساه یې خېژي او دی خاندي لکه چې بېخي بې اثره دئ؟

یا زه هم د نورو خلکو څخه نه یم جلا، زما تر زړه هم ویني څاڅي، زړه مي له ګرومه ډک دئ خو څه وکم خندا راځي. د نړۍ د هري صوبې څخه خورا نخبه غوره صوبه داران د جنګو، مرګو، لوږې، تجاوزاتو څخه د انسانانو د ژغورنې په خاطر یو ځای راټول سوي دي. چې دا ځای یا ملل متحد بولي. دلته هغه پرېکړي کېږي چې د انسانانو په ګټه وي، بشر له جنګو او تجاوزاتو څخه په امان کوي.

نو د خدای پار دئ تاسي یو ځل سر ور ایسته کئ، د دوی خبرو ته غوږ ونیسئ، بیا راووزئ دباندې د نړیوالو بد حالات ووینئ، نو د دوی د خبرو پر نتیجه به بیا تاسي هم شنه د ژړا یا مِل د خندا تللي یاست، ما یې خندا غوره کړه.

لالهاند :-

# ملي سرود

## دوهمه او وروستۍ برخه

**يادونه** :-

د دې مقالې لومړۍ برخه، د ۱۳۸۴ ش کال د هوډ مجلې په دريمه ګڼه کې خپره سوېده، چې پاته برخه يې د هغې مجلې د څه څنډ له وجې خپره نه سوه، کله چې د هغې مجلې د همهغه کال ځلرمه، پنځه او شپږمه ګڼې خپرې سوې، د ښاغلي لالهاند د مقالې وروستۍ برخه يې نه وه خپره کړې، دا چې د نومورې مقالې په ټولو محتوياتو ښاغلي لوستونکي ښه پوره پوهېدلي وي، د کندهار مجلې وړ وبلل چې د دې مقالې دوهمه او وروستۍ برخه د خپلي خوا څخه درنو لوستونکو ته وړاندې کړي.

اداره

(۳)

### د ملي سرود ځرخښه

مځالا : پښتانه يو لوی جاهل او له نيمګړتياوو څخه ډک توکوم دئ. دوی قبيلوي ذهنيت لري، نو هم قبيلوي تعصب پکښې سته، اوس بيا حزبي تعصب هم ورکښېوتلئ دئ، او دوی په ژبه کښې خورا ګوښي لهجې لري، نو خود لهجوي تعصب هم لري. او نو د دغه لهجوي تعصب پر اساس باندي په دوي کښي سمتي تعصب هم سته. د دغه سرود شخړه ئې ځرګند ثبوت دئ چي ځوک پر ناګاره کېدلای هم نه سي.

په دغي پسې ليکني کښي، لکه له نامه څخه چي ئې هم ښکارېږي، له تبعيض (اپارتايد) څخه يادوءني کيږي. او هم له ډېرني او لږني (اکثريت او اقليت) څخه خوله وهله کېږي. له اکثريت څخه مراد ځوک دي او له اقليت څخه مراد ځوک دي؟ که به پښتانه اکثريت (ډېرنيان) وي، نو له اقليت (لږنيانو) څخه به مراد غير پښتانه توکومونه وي. که به داسي وي، نو بيا خو نور توکومونه د ملي سرود په جوړونه کښي برخه نه لري. يا د اساسي قانون له خوا څخه دغه وظيفه و دوی ته ورسپارله سوې نه ده. يوازي پښتانه شاعران و دغه کار ته هځول سوي دي. دا په دا چي ملي ،سرود بايد د ډېرنيانو (اکثريت) په ژبي سره وي. اوس چي به واقعيت داسي وي، نو غير پښتانه توکومونه د لږنيانو په توګه طرح کېدای سي. ځکه چي دوی له ملي سرود جوړوني سره اړه نه لري. بيا نو اکثريت او اقليت څه مانا؟ پس نو له ډېرنيانو (اکثريت) څخه مراد ځوک دي، او له لږنيانو (اقليت) څخه مراد ځوک دي؟ غير پښتانه خو نه دي. د دغو پوښتنو جوابونه به ګوندي لوستونکي پخپله له دغي پسې ليکني څخه وموندلای سي.

### "ملي سرود د فرهنګي اپارتايد په توره لومه کي"

په ملي هينداره مجله کښي د ملي سرود په اړوند دريېمه مقاله د هغه چا ده چي ځان کابلی والا بولي. د ، په خپله مقاله کښي چي لوی عنوان ئې "اوس ئې ځنګه کوې ضابط صاحب" دئ. دغه د د، د مقالې په مځالا کښي د يوې پيښې يو پيره ګراف بيان دئ. خو د

لیکنې فرعي، یا لا اصلي، عنوان ئې "ملي سرود د فرهنګي اپارتاید په توره لومه کې" دئ، چې د مجلې درې مخه بیان دئ.

۱.۳ :- کابلي والا کښلي دي:-

"ملي سرود د یوه مثلث په منګولو کې لوېدلئ وُ، اوس ئې خبره روښانه شوه چې ولې په توطیو کې ښکېل و او ولې مو خپله ګناه په نورو وراچوله؟ په دغه ترڅ کې به تر ټولو دمخه به د مثلث برنۍ ضلعي ته وروګرزو. په دغه ضلع کې کرزی صاحب ناست دئ".

هر مثلث قاعده لري، هیڅ مثلث برنۍ ضلع نه لري، مګر پر سر کول ودرول سي هر مثلث برنی راس لري.

۲.۳ :- "و کرزي صاحب ته لویې جرګې دنده ورکړې {وه} چې دی باید د مسئول کس په توګه په ملي سویه دا خلکو او شاعرانو ته د خپلو ډله ئیزو وسایلو له لارې اعلان کړي {...} چې ملي سرود باید جوړ شي، هغه د یوه ولس مشر په توګه نه بلکې د شخصي اړیکو پر اساس د ملت پر ځای او د ملت د شاعرانو پر ځای دا غلبه پرې زوره وره شوه چې ملي سرود یې هم اول امریکایان ورته جوړ کړي او که هغوی یې نه شي کولای نو لږ تر لږه باید یو امریکایي تبعه خو وي. ځکه نو جهاني صاحب خوارکی په لاس ورغی او دا ملي دنده یې په شخصي توګه ښاغلي جهاني ته وسپارله چې دا فرمایش باید عملي کړي لکه چې په خورا رښتینو شاعرانه اخلاقو سره یې په دغه ټکي باندي اعتراف هم کړی دی او یو شاعر باید هم داسې وي،" (ملي هینداره، ۲۰۰۵ : ۱۱ مخ).

الف : ښاغلي لوستونکي دي قضاوت وکړي چې جمهور رئیس کرزی له ښاغلي جهاني څخه په دې سبب سره د ملي سرود جوړوني غوښتنه کړې وه چې هغه د امریکا تابعیت لري، که دا چې هغه ښه لغات اوډونکی او نازک خیاله شاعر دئ؟ د ده د اشعارو څلور _ پنځه ټولګي چاپ او خپرې سوي دي. د ده په ویاړ په اروپا او

افغانستان کښي غونډي جوړې سوي دي څو علاقه مندانو د ده اشعار اورېدلي وي، ز، په دې خبر نه یم چې ښاغلي جهاني د امریکا تابعیت لري که نه، خو پخپله جمهور رئیس کرزی ئې نه لري. دی یوازي د افغانستان تبعه دئ. نور چې به هم په افغانستان او اروپا کښي د هغو هیوادونو تابعیت منلی وي، یو عامل به ئې دا وُ چې د دوی به له خپله هیواده څخه امید ختلئ وُ.

ب : بل دا چې جمهور رئیس د عامه خپرونو، چې نور ئې د فارسي د "رسانه ها" په تقلید سره رسنۍ بولي، له لارې څخه د ملت او مملکت و شاعرانو ته اعلان کړئ وُ چې د ملي سرود په سیالۍ کښي برخه واخلي، ځکه نو تر سلو زیاتو شاعرانو هم خپل شاعرانه استعداد پر اټکلولئ دئ. که ئې داسې کړي نه وای نو د ارزوني مرکه (کمېټه) ئې د څه له پاره جوړوله؟ یا دغو سلو شاعرانو خپل شعرونه ولې او پر څه اساس باندي ور واستول؟

۳.۳ :- "د مثلث په دویمه ضلع کې هیوادمل صاحب ناست دئ. نه پوهېږم چې هغه خوارکی به په دغه شخصي معامله خبر و او که په غالب ګمان چې نه به و خبر. هغه فرمان او یا حکم ولیکه چې د هیواد شاعران، هغوی خواران چې یوازې شعر وایي او له اصلي حاله خبر نه دي، باید خپل شعرونه ټاکلي کمېسیون؟ ته ور واستوي چې ښاغلی زریاب یې مشر دی. په دغه ترڅ کې د ښاغلي جهاني صاحب له لیکنې داسې ښکاري چې د ملي سرود له پاره په عین وخت کې دوه کمېسیونونه فعال وو، چې یو د کرزي خپل کمېسیون و، چې جهاني صاحب یې په کې راګیر کړی و او بل د زریاب صاحب و چې تر سلو زیات یاران یې په کې بې خوبه کړي وو او د هیڅ له پاره یې شعرونه پرې جوړول. په دغه ترڅ کې هیوادمل صاحب یوازې په یوه داسې برزخ کې پاتې شو چې نه یې اثر په پورتنۍ ضلع او نه هم په لاندنۍ ضلع (جهاني) و، یعني په هر څه کې هیڅ." (ملي هینداره _ ۲۰۰۵، ۱۲ مخ).

الف : د کابلي والا له لومړني ټکي څخه داسې څرګندېږي چې دی نه د ملي هینداري له سرنۍ لیکنې څخه آګاه و، او نه هم د ښاغلي جهاني له لیکنې څخه آګاه وُ. په سرنۍ لیکنه کښي ښاغلي انوارالحق احدي په یوې مرکې کښي ویلي دي چې "د ملي سرود په اړوند یوازې سلاکار وزیر زلمی هیوادمل په دې اړه ټاکونکئ رول لرلای شوای" (په دغي لیکني کښي د دغي وینا اخیستنه تر مخه سوې ده). خو کابلي والا ئې بې خبره بولي. د ښاغلي زریاب مرکه (کمېسیون) هم پخپله ښاغلي زلمي هیوادمل جوړه کړې ده، نه زریاب.

ب : ښاغلي کابلي والا پر دې اعتراف کړئ دئ چې د ده د ښاغلي **جهاني** لیکنه تر مخه لوستلې وه. نو بیا دی څنګه **تجاهل** کوي چې زلمي هیوادمل په دغي شخصي **معاملې** خبر وُ که نه؟ په داسې حال کښي چې پخپله ئې **ښاغلئ هیوادمل** رابط کس وُ چې ښاغلئ جهاني ئې په **واشنګټن** کښي د افغانستان و سفارت ته وربللئ و، نو **بیا څنګه** شخصي معامله بلله کېدای

سي؟ خو د تبعيض (اپارتايد) له مخي څخه لا نور څه هم پر ويل سوي دي.

ج: دا چي تر سلو زيات ياران ئې پکښي بې خوبه کړي ول، دلالت پر دې باندي کوي چي دې د ملي هينداري لومړنۍ مقاله هم د ملي سرود په اړوند تر چاپ دمخه لوستلې وه، که دي پخپل قول کښي صادق وي، او په هند کښي وي، نو به دغه دواړي مقالې ورفاکس کړل سوي وي، يا په اي مېل E-mail سره ورلېږلي سوي وي. دې ښاغلئ هيوادمل هم په برزخ کښي اچولئ او د دې له پاره ئې خپل مثلث هم وران کړئ دئ.

د: بله ئې لا دا هم چي کابلي والا پخپله کښلي دي چي سل کسان شاعران ئې بې خوبه کړي ول. دا خو مانا له ټولنيزو خپرندويه وسايلو څخه کار اخيسته سوئ وُ، او يوازي پر شخصي اړيکو باندي اتکاء سوې نه وه. نو دا خو بيا په جمهور رئيس پوري تور لاس نيونه سوه، او دا ښه دئ چي خپله تورا ئې پخپله رد کړې ده.

هـ: دغه څه باندي سل سرودونه خو جمهور رئيس ښاغلي کرزي رد کړي نه دي، بل لا د ښاغلي هيوادمل او ښاغلي زرياب د مرکې له خوا څخه رد کړل سوي دي. په داسي حال کښي چي نور سرودونه رد کړل سوي وي، نو خود هم بيا و ښاغلي جهاني ته اړتيا پيدا سوې وه. څنګه چي د دوی تر منځ شخصي پېژندنه او رفاقت وُ، نو بيا ئې تليفون هم ورته کړئ دئ، او جهاني ئې پخپل دغه لطف سره تر خپل احسان هم لاندي کړئ وُ.

۳_۴ :- کابلي والا کښلي دي چي: "په لاندنۍ ضلع کي د جهاني صاحب څلور ځله خواري او څلور فرمايش {...} آفرين د ده په ... لله. زه نه پوهېږم چي د دغه کار لامل سړی څه وبولي. د ښاغلي کرزي شخصي دوستي، د ده شاعرانه طبيعي ځان غوښتنه او که له پښتو ژبي سره د ده مينه؟ زه په دغه باره کي اوس هم نه پوهېږم. خو دومره ويلای شم چي که دی يې هر څه وبولي زمونږ باور به لږ پرې خام وي." (ملي هينداره ۲۰۰۵ : ۱۲ مخ).

الف: په دغه اړه دي (۱، ۳ او ۱، ۵) ولوستل سي، که ئې لا بيا هم "باور پرې اوم وُ" نو دي اور تر لاندي بل کړي چي پوخ او خورين سوئ وي.

ب: که جمهور رئيس ښاغلي کرزي په شعري رموزو نه پوهېدای، نو ئې د ښاغلي جهاني سرود پر څه اساس باندي څلور پلا وي ور رد کړئ دئ؟ دې غوښتنه ځني کړې وه، دې ئې د اصلاحاتو يادونه ورته کړې وه، خو بيا ئې هم د ده قناعت حاصل کړئ نه وُ. ښاغلي زلمی هيوادمل يې په دغه چاره کښي صلاح کار وزير دئ.

ج: ګورئ، چي کيڼه په لومړنۍ درجه کښي له جمهور رئيس ښاغلي کرزي سره ده، ځکه چي وايي دې د داکټر اکبر جوړ کړئ سرود منلئ نه وُ. په دوهمه درجه کښي ئې قرباني پخپله جهاني دئ. د تورزنو (بدبينانو) قضاوت همېشه هم دغسي وي. دوی و هر مثبت کار ته په کيڼه سترګه ګوري. کار ئې غندنه او تخريب وي لکه په دې پسې عبارت کښي

۵.۳ :- "بيرته ګرزم و پورتنۍ ضلعي ته يعني کرزي صاحب ته. کرزي چي په کوم هيواد کي ګوډه ماته ماستري ويلې، زه هلته استاد يم. کله چي امريکايانو دی د افغانستان پر ګدۍ کېناوه، نو په پېژندنه کي {ئې} دا خبره راتله چي ده په شمله کي درس ويلی {دئ}؟ زما دوه پوهان دوستان وو چي هغوی له شمله پوهنتون سره علمي رابطه درلوده. دواړه ئې په خته پښتانه وو. يوه يې هلته درس ويلی و او بل يې هلته د تاريخ استاد و. دغه استاد يوه ورځ راته وويل چي کرزي چي دلته زده کوونکی و، يو بل خپلوان {خپل} يې هم هلته ورسره و. خو ما به له ده د پښتنو په باره کي پوښتني کولې، په هيڅ نه پوهېده {پوهېدئ}، او له هغه بل خپلوان {خپل} څخه ئې خپل پښتانه لرې ګرزېدل په دې چي هغه له ډېري کاکګۍ له خپلو پښتنو سره فارسي ويله." (ملي هينداره ۲۰۰۵ : ۱۲ مخ).

الف: د ښاغلي کرزي عالي تحصيلات په هند کښي، او د دې د يوې خپل فارسي ويل له ملي سرود سره څه اړه لري؟ يو څوک چي په هند کښي استاد وي، هغه دغسي د ګيډړي حوالې وړاندي کوي؟ يو استاد آبرومندانه ليکنه کوي، پاخه اسناد او پاخه شواهد وړاندي کوي، له موضوع څخه نه وزي، بې ربطه نه ږغېږي، دروهه نه کوي، درواغ نه وايي، پر ليکنو او شواهدو باندي سترګي نه پټوي.

ب: کابلي والا دا نه دي ښوولې نه ده چي دی څه نومېږي، په کوم پوهنتون کښي استاد دئ او د څه استاد دئ ـــ د افترائاتو، توراوو، تعصب او کينې؟

۶.۳ :- کابلي والا کښلي دي: "زه چي اوس د استاد خان دغه خبري رايادوم، زړه ته مي دا رسي چي ښاغلي کرزي په رښتيا هم د خپلي ټولني د جوړښت د پوهي په اړه ډېر غريب دی، نه خپله ټولنه پېژني او نه هم د دغه خلکو تېر تاريخ ته لږ ګوري." (همغه).

الف: دا خو داسي مانا لري لکه کابلي والا چي به د پښتني ټولني په جوړښت پوهېږي، او دې ئې د تاريخ

ته کتلي دي. نو چې داسې ده. بيا ئې بايد خپل نظر او فهم وړاندې کړي وای چې هغه څه چې ښاغلی کرزی ئې کوي صحيح نه دي. بل لا صحيحه لار ئې دغه ده يا بله ده. خپل وړانديز ئې بايد په تپولنيزو او تاريخي دلايلو سره ټينګ او ثابت کړئ وای. دغسې کار و هر هغه چا ته ښايېږي چې هغه ځان پښتون او د دې وطن خواخوږئ بولي. او له سمون او پرمختګه سره ئې مينه لري. مثبت کار تر منفي کار په مراتبو سره ښه او د ستاينې وړ دئ.

ب : بل دا چې له دوو دوستانو څخه يې يو استاد خان بللئ دئ، په هند کښې خو هر پښتون خان بلل کېږي، او دغه هر خان خپل اصلي نوم لري. کابلي والا که د خپلو ناخوالو په سبب سره خپل نوم کښلای نه سوای. د خان نوم خو ئې کښلای سوای.

۷.۳ :- "تاسې باور وکړئ چې دی که څه هم د دموکراسۍ د عملي کولو په نامه امريکايانو راوستی او د يوه امريکايي ظالمانه يرغل برېا دی. خو زه باور لرم چې دی نه په دموکراسي پوهېږي او نه غواړي دموکراسي په افغانستان کې عملي شي. يو څو تنه راندهء او کانه يې راټول کړي { دي }. له هغو يې يوه مافيايي داره د دولت په نامه جوړه کړې چې په ګډه توګه يې په افغانستان کې د دموکراسۍ برعکس يو غير انساني فرهنګي اپارتايد راپيل کړی دی." (همغه).

دء چې په ليکنه کښې داسې څه کښلي دي. نو خدای زده چې په ژبه يا خوله به ئې لا څه نوري ناکوجاتي ويلي وي؟

الف : کابلي والا ډېر کله له تبعيض (اپارتايد) څخه خوله وهي. تر مخه ئې د امريکائيت تور لاس په ښاغلي کرزي پوري ونيوئ. نو په امريکا کښې خو نور ډېر افغانان شاعران هم سته، ولې ئې هغوی هم دغسې نه وربلل؟ که به دی اپارتايد د دوی شخصي پېژندنه بولي، آيا و دغسې دوستۍ ته اپارتايد ويل کېدلای سي؟ نو بيا له اپارتايد يا تبعيض څخه د دء مراد څه دئ؟ که به د جهاني شخصي پېژندګلوي و ښاغلي جمهور رئيس کرزي ته اوليت لرلای. نو ولې به ئې د ښاغلي جهاني سرود ځلور پلاوي ور رداوء؟

ب : کابلي والا خو په هند کې .ا.ست دئ، لکه دی چې داسې رښتيا وايي. نو دی څنګه پوهېدلئ دئ چې ښاغلی جمهور رئيس په ديموکراسي نه پوهېږي؟ د کابلي والا له بيانه څخه ښکارېږي چې دی په ديموکراسي پوهېږي. نو مهرباني دي وکړي او غلطي دي ئې که ور اصلاح کولای نه سي په معقوله. مستنده او مشخصه توګه سره ور انتقاد خو دي ئې کړي. که به دی وايي چې په افغانستان کښې له دغې عمليې څخه خبر نه دئ. نو بيا هوايي ږغېدنه څه مانا لري؟ نو دا خو توراوي دي.

ج : بل دا چې ښاغلی کرزي خو لومړی د ملګرو ملتو له خوا څخه د جمهوري رياست په دندې سره وګمارل سو. خو د امريکايانو مشوره او موافقه به خود ورسره ول. اوس دی د افغاني ولس له خوا ځخه منتخب جمهور رئيس دئ. که نه ګانه دی ناپوه، نااهله او بې کفايته وای. د لنډ مهالي مرحلې په پای کښې به ئې ايسته کړی وای. د ملګرو ملتو د سرمنشي خاص استازي، ښاغلي لخضر ابراهيمي، ئې په خوا کښې څارنه کوله.

دء د لنډ مهالي مرحلې ازموينه په بريالېتوب سره تېره کړه. بيا لويي جرګې، د لنډ مهالي مرحلې پر اساس او پېژندنه باندې اعتماد پر وکړ، او دی ئې د يوء کال له پاره وټاکه. دء منځ مهاله مرحله هم په لياقت، درائت، او صداقت سره وپالله. نو تر دغې مرحلې هم دی په بريالېتوب سره ووتئ. دء ډېر بين المللي سفرونه وکړل. د جهان او لويانو سره ئې وکتل. دء خورا ډېر ازمويني ګامونه واخستل. د دغو ډېرو ازموينو پر اساس چې ده په بريالېتوب سره تېرې کړې وې. په عمومي انتخاباتو کښې ملت د پنځو کالو له پاره د جمهور رئيس په حيث اعتماد په وکړ او د دغه مقام له پاره ئې وټاکه. اوس دې نو ښاغلي لوستونکي دغه او نور واقعيتونه او د کابلي والا توراوي سره مقايسه کړي. او قضاوت دې پر وکړي.

د : که د ښاغلي کرزي د حکومت وزيران راندهء او کانه وي، نو بيا ئې دغه مافيايي داره څنګه جوړه کړې ده او بيا ئې دغه توکميز تبعيض (اپارتايد) څنګه رامنځته کړئ دئ؟ داسې کارونه خو خورا ډېر درائت او مهارت غواړي.

ه : دا به هر څوک مني چې پښتانه په افغانستان کښې اکثريت دي، او نو ځکه هم ښاغلی کرزی جمهور رئيس وټاکه سو. ولې له بده مرغه چې ددغه اکثريت هم اکثريت جاهلان پاته سوي دي. هم دوی دي چې خپل وطن خرابوي، او هم دوی دي چې په خپلو منځو کښې سره وژني. په افغانستان کښې نور څوک دي چې و خپلو کورونو ته اور اچوئ.

و : دا چې وايي د ښاغلي کرزي کابينه له ړاندو او کڼو وزيرانو څخه جوړه ده. دی په دغو ښاغلو : هدايت ارسلا، جنرال وردګ، ښاغلي احدي، ښاغلي اتمر، ښاغلي زلمي هيوادمل او نور پښتانه هم پکښې

شاملوي، که ئې نور څوک داسي بولي نو هغه څوک دي؟

ز : په افغانستان کښي د ديموکراسۍ عملي کول يوازي د جمهور رئيس ښاغلي کرزي وظيفه نه ده. دغه دنده له لويه سره څخه د ملګرو ملتو مؤسسې پر غاړه اخستې وه. د دوی خپل استازي د يوناما U.N.M.A د دفتر له خوا څخه د انتخاباتو ښووڼه او اجرائات کول. دولسي جرګې او مشرانو جرګې د استازو په ټاکنه کښي د حکومت لاس يو مخيز ه لنډ کړه سوئ ؤ. دغه چاري يوناما پر مخ بيولي.

۸،۳ :- کابلي والا نور داسي کښلي دي :

"نور به تر ټولو دا ښه وي چي پښتانه بايد د مځکي په {پر} سر د ژوند کولو له حقه بې برخي شي. که د افغانستان برخليک د اقليتونو اوسنی فرهنګي اپارتايد چي د اوسنۍ دموکراسۍ د هر ډول خلاف عمل دئ، ټاکلئ شي، نو بيا ښاغلو پښتنو کرار کېنئ. له دموکراسۍ ځان مه خبروئ او نور نو لکه کرزي غوندي د دغه فرهنګي اپارتايد چي په {پر} ملي سرود او پښتو روان ناولتياوو ته غوږ ونيسئ د دوی نوکري وکړئ، او د يوويشتمي پېړۍ په دغه پرمختللي دور کي چي هر څه د نړۍ په سياست او اداره کي د اکثريت په پرېکړو پوري تړلي دي، په دغه ترڅ کي تاسي بايد د اقليتي غير ملي توکونو {توکومونو؟} د غير دموکراتيکي صوبداري نخرو ته لاس په {پر} نامه شئ په داسي حال کي چي افغانستان په تېرو دوو لسيزو کي دغه ناولې صادره شوې تجربه د هغې له پايلو سره هم دا پرون د دغو پردي پالو توکونو چي په يوه قام پوري هم نه وو اړوند د څو ورځو د جناياتو د سره تاريخ ډېره ښه ننداره وکړه، د فارسي ژبې متل په دغه اړه سم دی چي "آزموده را آزمودن خطاست".

له دغه يادوني مي مطلب دا دی چي ښاغلی کرزي بايد د يوه واکمن په توګه دومره هم ټيټ نه شي چي له يوې خوا ملت ته وايي زه ستاسي خدمتګار يم او له بلې خوا د همدغه ملت پر ضد په پټو او شخصي توطيو لاس پوري کوي. د ده سره دا وړ نه وه چي له يوې خوا د خلکو د غولولو لپاره د ملي سرود په نامه کميسيون په هيوادمل او زرياب جوړوي او له بلي خوا په يوه شاعر پسي امريکا ته تليفون کوي. څومره ځوروونکې خبره ده په تېره بيا د داسي چا لپاره چي له يوې خوا ځان د يوه ملت واکمن بولي او له بلي خوا په دومره وړو مسايلو کي چي نه يې صلاحيت لري او نه يې عملي کولای شي ځان بوخت ساتي. دا پخپله د دغه ټکي څرګندويه خبره ده چي ډېر ژر به پښتانه

پخپله ستا له لاسه په {پر} يو لړ خطرناکو غميزو باندي وراوړي، په دې چي دوی لکه جهاني صاحب اول خپل صداقت کوي، خو کله يې چي څوک په خوله {پوري} خاوري ور وموښي، بيا يې عقل سر ته راځي {ورځي}، او د خپل صداقت قرباني {کېږي} پرته له دې چي په اصلي لامل ګوته کېږدي خپل هډ او وزر شوی {؟} کوي لکه هيوادمل صاحب يې اوس د "اګر اين ملاست و اين مسجد" په غم نيولی دی". (ملي هينداره ۲۰۰۵ : ۱۲).

الف : وروستنۍ پيره ګراف يې وړاندنۍ پېره ګراف هم روښانه کوي چي ما پخپله هم سم فهمولئ نه ؤ. دی وايي چي جهاني په اقليت (لږنيانو) پوري اړه لري، او نورو شاعرانو چي خپل ملي سرودونه وړاندي کړي دي، هغوی په اکثريت (ډېرنيانو) پوري اړه لري. زه تر مخه داسي پوهېدلئ وم چي دی نسبت نورو توکومونو ته پښتانه ډېرنيان بولي. ولي د ملي سرود په اړوند د نورو توکومونو سوال نه رامنځته کيږي.

ب : دا چي و جمهور رئيس جلالتمآب حامد کرزي ته ئې هم تر خولې تيري او پر سر سربيري کښلي دي عامل ئې هم دغه بدمرغه سمتي تعصب دئ. د دغه بدمرغه ناورين له پاره په حزبي سويې سره کار کېږي. هغه لوېديځوال چي و دغه حزب ته ورکښېوتلي دي، و خپل شخصيت ته ئې ناوړه صدمه رسولې ده.

ج : ښاغلي جمهور رئيس کرزي په ښاغلي جهاني پسي و امريکا ته تليفون کول دا مانا لري چي دی په ښه ملي سرود پسي ګرځېدئ. دا چي د جهاني لومړنيو سرودونو د دې قناعت حاصل نه کړای سوای، هغه ئې ور رد کړل. په دغه رد کښي خو به ئې نه شخصي دوستي، نه وطنداري، او نه امريکائيت اغېز لاره. دا چي د نورو شاعرانو سرودونه هم منل سوي نه ول، نو دی اړ وتلئ ؤ چي بيرته و ښاغلي جهاني ته مراجعه وکړي، او هغه هم په داسي حال کښي چي د ښاغلي جهاني ماينه مړه سوې وه، نو ئې د همدردۍ او فاتحې له پاره تليفون ور کړئ و. په ضمن کښي ئې دا غوښتنه هم ځني کړې وه چي پر ملي سرود باندي نور کار وکړي. کابلي والا دغه عبارت د ښاغلي جهاني په ليکنه کښي چي و دې ته تر چاپ دمخه ور رسېدلې وه، لوستلئ دئ. نو دغه سړی تحريف بللای سي که نه؟ ولي په بله پلا کښي ئې و ښاغلي هيوادمل ته وظيفه ورسپارلې وه چي له ښاغلي جهاني سره د ملي سرود په اړوند وږغېږي، او پخپله ئې بيا دغه کار کړئ نه دئ. "نو اوس ئې څنګه کوي ضابط صاحب؟".

۹،۳ :- "خو دا چي جهاني صاحب په اول کي په

(یانه به سیل د گلو کړم څه نور به گورم) بسنه کړې او بیا یې وروسته غبرګ راپورته کړ په دغه کار سره یې نښه { نخښه } له اصلي هدفه په خطا ولګېده، تاګور { ... } ویل نه غواړم دا خپل تیټ سر د سر په لقب تر دې هم تیټ کړم.

زه دا نه وایم چې جهاني باید دا کار نه وای کړی، باید کړی یې وای، او باید اوس هم ترې لاس په سر نه شي، ملي سرود که زموږ په وینو هم ولیکل شي باید ویې لیکو او څوک دا حق نه لري چې په دغه باره {کښې} د یو ملت حق غصب کړي". (ملي هینداره ـ ۲۰۰۵ : ۱۲ مخ).

کابلي والا تر مخه ویل چې ښاغلي کرزي د شخصي ملګرتیا، اپارتاید، او دامریکایي تابعیت پر اساس باندي له ښاغلي جهاني څخه غوښتنه کړې وه چي ملي سرود ولیکي. مانا له دې څخه باید غوښتنه سوې نه وای. اوس بیا د جهاني ته مشوره ورکوي چي سر ورته تیټ که، او نور ملي سرودونه ورته جوړ که! که د دغه جلالتمآب کرزي پر ځای باندي بل څوک جمهور رئیس وای، بیا به دي ملي سرود پخپلې ژبې سره نه وای، لکه تر دغه لنډ دمخه چي هم نه ؤ. دا ستا له ډېرنیانو څخه دغه حق غصب سوئ ؤ، که نه؟ او دغو ډېرنیانو څه وکړل؟ دوی دغسي ږغ و ږوغ پر جوړ کړ لکه اوس چي ئې د جهاني په اړوند جوړ کړئ دئ؟ موږ یو متل لرو چي وایي: "د خپل کور پیر و ځپلو کورنیانو ته نه ورمعلومېږي".

ب: له اوږېدني څخه جمهور رئیس ښامنی له مقربو همکارانو او مېلمنو سره خوري، او بیا تر نهو بجو وروسته و کور ته ستنېږي.

۱۰،۳ :- "مګر پوښتنه دا ده چې جهاني او ملت او شاعران باید د کرزي او د هغه د فرهنګي اپارتاید پلوو عاملینو د ګناه او توطیې په جرم نور څوک ګناهکار ونه شمېرل شي. داسي هم باید نه وي چي ښاغلي کرزي ته چي په دغه ترڅ کي مدعي دئ د بېلابېلو شخصي ملحوظاتو له امله بیا هم څه نه وایي او یا یې نه شي ویلای د هیلي په ترڅ کي سر ورته ټیټوي او دا لا ډاډ هم ورکوي". (ملي هینداره ـ ۲۰۰۵ : ۱۳ مخ).

الف: کابلي والا دا ویلي نه دي چي ښاغلی کرزی او د دې تبعیض پلوو عاملانو نور څوک ګناهکار بللي دي؟ آیا دغه ښاغلی زلمی هیوادمل دئ؟

ب: آیا " د هغه د فرهنګي اپارتاید پلوو عاملینو د ګناه توطیې په جرم نور څوک ګناکهار ونه شمېرل شي"؟ ولي ئې سم دم نوم نه یادوي؟ جهاني به ښایي ورته ووایي: "مځکه هغه سوځي چي اور پر بل وي".

ج: په ترمخني پېره ګراف کښي ئې کښلي دي چي سر ورته تیټ کړئ او ملي سرود هرومرو ولیکئ چي چا ئې حق غصب کړئ نه وي، او په وروستني عبارت کښي پېغور ورکوي چي سر ورته تیټوي او د توزني هیلي پر اساس باندي لا ډاډ هم ورکوي.

۱۱،۳ :- "جهاني صاحب او نور یاران چي غوړ غوړ شعرونه یې لیکل او په پرله پسې سفرونو یې د مځکي تناوونه په خوښیو لنډول په هغه وخت کي د دې ځوانان نه شول چي مقاومت یې کړی وای او ویلي یې وای د استاد ښهنوا شعر سم دی، یو عمومي پروتیسټ به یې کړی وای چي موږ تر دغه شعر بل ملي، هنري او افغاني شعر نه لیکلای شو او نه یې لیکو. خو دا کار چا ونه کړ. زه دا یوه خبره د اوسنیو ادبیاتو او اوسني شعر د کارپوه په توګه په زغرده کوم چي زموږ یو شمېر شاعران چي ځانو ته یو شی هم وایي د شعر پوهه نه لري. ټول په تقلید او کاپي ښاغلي دي، آن یو شمېر په ماهرانه غلا ...". (همغه).

الف: وړاندي عبارت دا ښووي چي دغه مقاله له کابله څخه و لندن ته لېږلې سوې ده، نه له هندوستانه څخه. مانا د مقالي لیکوال په کابل کښي څوک دئ چي سرود ئې رد سوئ دئ، بل څوک د داسي توراوو غرورئ لرلای نه سي. لوستونکي دغه فهم له (۳، ۸) عبارت څخه هم استنباط کولای سي.

ب: اوس چي کابلی والا کابلی سو، نو بیا ئې پخپله ولي توره جنډې نه پورته کوله، او نور شاعران به ئې په ځان پسې کړي وای چي زموږ تر نظمونو د ښادروان بېنوا ملي سرود ښه ترین دئ، موږ دغه شعر غواړو، نه بل یو!

ج: کابلي والا اوس پخپله ومنل چي ښاغلي جهاني غوړ ـ غوړ شعرونه کښل. نو خود پر همدغه اساس باندي جلالتمآب کرزي هم د یوه غوړ ملي سرود جوړوني غوښتنه ځني کړې وه. آیا دغه یو د قدر وړ کار نه دئ چي جمهور رئیس د خپل هیواد له پاره د وطن له یوه تکړه شاعر څخه د یوه ښه ملي سرود جوړوني غوښتنه وکړي؟ آیا ملي سرود کم ارزښته دئ که ملي شاعر جهاني هیڅوک دئ. جهاني څه چي یو جمهور رئیس باید دونده تواضع ولري چي له یوه کلیوال بزګر او کاریګر سره هم کښېني او ورسره وږغېږي. دغه ښېښه پر دې باندي دلالت کوي چي ښاغلی کرزی په ملي امورو سر ګرځوي، او هم په پوهېږي، که دی نه په پوهېدلای، دغه چاره به ئې

يـوازي و ښـاغلي هيوادمـل او د دء و کمېسـيون تـه ور پرې ايښې واى. وايي : "الا بلا به گردن ملا". خو اوس ئې له نېکه مرغه داسي کار کړئ نه دئ.

د : کـابلي والا ادعـا کـړې ده چـي دى د اوسـنيو ادبياتو او اوسني شعر کارپوه دئ. دا خو ډېر د خوښۍ ځاى دئ. نو چي پېښـه داسي ده خو د دء بايد خپله کارپوهنه د ملي سرودونو په تحليل او تعبير سره خپل قضـاوت کـړئ واى پـر ځـاى د دې چـي پـه تـوراوو، اتهامـاتو، او تعبيض (اپارتايد) سره ئې و ځـان او نورو ته سرخوږى جوړ کړئ واى.

کابلي والا او نور هر څوک چي د شعرپوهني ادعا کـوي، دوى دي د دغـو اشـعارو ارزيـابي وکـړي، او بيـا دي نو ليکنه پر وکړي چي دغه شعر په دغو معيـارونو سره ښه تره او تر نورو برتره دئ. دوى بايد دغه کار په خپلو ليکنـو کښـي کـړئ واى، نـه دا چـي دوى يـوازي عمومي مجرد حکمونه کوي. د سرودونو شننه، سپړنه، او ورېشـنه بـه د ارزمونـدني لـه مرکې سره مرسته کړې واى. دوى به ئې هرو مرو تر اغېزې لاندي تللي واى. هـو، پـه شـرط د دې چـي هغـه سـالم، معقـول او علمـي قضاوت واى، نه له تعصب او شخصياتو څخه ډک.

هـ : دا بـه ئې ښونده د قـدر وړ کـار کـړئ واى چـي پخپله ئې دغه شاعران هم پـه خپلو کمزورتيـاوو سره پوهولي واى، پر ځاى د دې چي پـه غـلا او تقليـد سره ئې تورن کړي واى. دا چي دغه کار ئې کړئ نـه دئ، نو به څوک پر څه باندي و دء ته د ادبياتو او شعر پوهني کريډيټ ورکوي؟ لومړى ئې بايدد خپل رد سوي سرود ښېگني او باريکۍ بيان کړي واى.

و : دا چي هغه شاعران چي و ځانو ته "يو شى هم وايي ... ماهرانه غلا"، نو به نـه ورسره ژاړو چي ولي د دوى سرودونه يو چا يا بل چا ور رد کړي دي، "د هيواد شـاعران خـواران دي چـي يـوازي ڈ ٭ر وايـي او لـه نـور حالـه خبر نـه دي". چي دوى پـه تقليـد، کـاپي کولـو، او ماهرانه غلا سره لا تورن سوي هم دي.

۱۲.۳ : "په علمي او ادبي لحاظ دا ټولي بېلگي چـي تـر اوسـه مـوږ ليـدلي {دي} پـه دې ټولـو کـي د استاد بېنوا د شعر په شان اوچت انسـاني، افغـاني او ملي پيغام خورا کمزورى دى". (همغه).

الف : وړاندنۍ کرښه زمـا ترمخنۍ پېژندنه نوره هم تقويه کوي. کابلي والا نور ډېر سرودونه هم لوستلي او په بشپړه توگه سره ځني خبر دئ. دا سي ايسي لکه دى چي دي د ارزمنوندني د مرکې "(کمېسيون) غړى هم وي، يا و.

ب : دا چـي د ښـادروان بېنـوا داودي ملـي سرود جامع الکمالات دئ، مرکې هم داسي منلئ وُ. خو د اساسي قانون د يوې مادې لـه مخي څخه بايـد پـه ملـي سـرود کښـي د توکومونـو نومونـه اخستل سوي واى چي ترمخنۍ ليکني ئې پر دغه کار باندي استاد شهراني غندلئ دئ. د دغـه کـار لـه پـاره لـه ښـاغلي رفيـع څخـه، لکـه لـه ښـاغلي جهاني څخه، غوښتنه سوې وه چي دغه کمښت ئې ورپوره کړي. کله چي دء دا کـار وکړ، بيـا نورو دا انتقاد پر کاوء چي دا پتليس سوئ ملي سرود دئ، او بـل دا چـي اسـتاد بېنـوا بـه، کـه ژونـدى واى موافقه ورسره لرلاى که نه؟ ځکه نو دغـه سرود د ملي سرود پـه توگـه سره نـه ومانـه سو. کـابلي والا خـو دغـه هـر څـه لوسـتلي دي، نـو بيـا ولـي پـر ږغېږي؟

ج : بلـه لا دا هـم ده چي هيڅ شلومبې والا نـه وايي چي د دء د غړکي خوند بد دئ. ډېر شاعران خپل شعر تر نورو ښه تره بولي. دا لا هم چي څوک و څـوک د خپـل سـرود پـر رد بانـدي خـورا سـخت خښمېـدلي دي، او دغـه ليکنـه هـم د يـوء دغسـي شاعر ايسـېږي. کـه اختيـار د دوى واى هـر يـوء بـه خپل نظم ملي سرود گرځولئ واى. بېنوا خو مړ و.

۱۳.۳ : اوس نو د کابلي والا دغه پسې تورا هم ولولئ :

"بېنـوا تـه بايـد درنـاوى شـوى واى او د هغـه شعر بايد هماغسي په خپل ملي اهميت سره زموږ له خوا ملاتړ شوئ وئ. کرزى خو نـه اديـب دئ او نه دومره سواد لري چي په شعر او د هغه پـه مفهـوم دي پوه شي. تاسي خو شاعران واى او پـه هر څه پوهېدئ بايد دغه ټکي ته متوجه شوي واى. رفيع صاحب هم د جهـاني صاحب لـه توري پـه هم دغـه گناه چي د استاد بېنوا دغه لوى انسـاني ارزښت د خپل پوهنيز وجدان لـه مخي ځېر و پـه تـوره شـوى {؟}، زه فکـر کـوم چـي پـه دغـه برخـه کـي د کـوم داسي ځانگړي سرقت سوال د ادبي کره کتني لـه مخي نه مطرح کېږي، داسي سوال چي سرى يې د بگت کبير، خيام، او غني د سرچينو پـه اړه علمـاً طرح کـولاى شـي"، (ملـي سـرود ـ ۲۰۰۵ : ۱۳ مخ).

الف : کابلي والا ! هله طرحه کوه يې، و څه

ته ګوري؟ ځکه چي موضوع په زړه پوري ده. که ښه کوي، دی دي د بګت کبیر، خیام او غني د اشعارو سرچینې ئې په شعر کښي علماً وښووي چي د خپلو هیوادوالو له پاره به ئې نه یوازي یوه خوندوره موضوع وي، بل لا به معلومات او د کره کتني (سره کتني) فهم هم ور په برخه سوئ وي. خو هو، منابع (اخیستیځونه) به پکښي ښوول کېږي. بل به نو خود دغه یوه مقایسوي مطالعه وي.

ب : دغه د ادبي سرقت موضوع او له ښاغلي رفیق سره ربط ورکول ولي مطرح سوې ده؟ چا خو چیري په دغه پوري داسي تورا نه تړلې ده او نه ئې تړلای سي. نو بیا ئې په ناسیده توګه سره مطرح کول څه مانا لري؟ هغه انتقاد چي د ښادروان بېنوا پر ملي سرود باندي کېدئ. ښاغلي رفیع د نورو په غوښتني سره د هغه پورلاینه کړې ده. خو د جهاني دا انتقاد پر ځای دئ چي استاد بېنوا به له دغه راز پتلیسه سره موافقه لرلای که نه؟ په بل صورت کښي به ملي سرود د ډېرو وای. ښاغلي رفیع نه هغه په ځان پوري تاړء او نه ئې تړلئ دئ. نو ادبي سرقت بیا مانا څه؟

ج : شف، شف څه مانا؟ سمدم ووایه چي شفتالو، ښاغلي جهاني هغه د کتابونو په توګه په شعر سره ترجمه کړي دي، او هم یې په نورو اشعارو کښي حواله ورکړېده.

۱۴،۳ : "زه یو ځل بیا ټولو هغو یارانو ته چي تر دغي غوړي خو توري کټوي لاندي بلي لمبې په سترګو ویني او لاس تر زنه { تر زني لاندي } ورته ناست دي، په ډاګه دا وایم چي یوه نامریي لاس بیا هم خپله توطیه درباندي عملي کړه. اوس مو یو د بل غاړي ته سره وراچوي. د خدای لپاره لږ ځان وینښ کړئ او په دې لټه کي شئ چي تر دې زیات مو یو بل ته سره چاړه او غوښه نه کړي"، (ملي هیندار_۲۰۰۵: ۱۳ مخ).

الف : وړاندنی ډېر ښه بیان دئ چي مانا تفرقه او تعصب له منځه وباسئ، و خپلو ته بد او رد مه وایاست، ملاتړ ئې وکی- د یوه نظم پر دباندي، او هغه هم په حقانیت سره، دوتده ناخوالي ویل هم نه ښایېږي. کله چي زه په کابل پوهنتون کښي محصل وم، د اطلاعات او کلتور وزارت له خوا څخه د شعر جوړوني سیالي اعلان سوه. نو ما هم یو شعر د پښتو د انکشاف مدیریت ته ورووړ چي دغه ئې د وروړنګ مرکز و. کله چي د سیالی نتایج اعلان سول، زما د شعر، چي ما په خپل فهم سره ښه ترین باله، هیڅ یادوءنه هم نه وسوه. نو زه په سبا ئې د پښتو انکشاف مدیریت ته ورغلم، او پوښتنه مي ځني وکړه. مدیر صاحب د پروان جریده و مخي ته راته کښېښووله او راته ئې وویل چي دغه دئ په دغه اخبار کښي مو در چاپ کړئ دئ، نور نو څه غواړې؟ ما هم تر اوسه پوري هیڅ ویلي نه ول. خو البته سړی مأیوس کېږي او بیا په دغسي توګه چي شعر ئې هیڅ و قضاوت ته وړاندي سوئ نه وي.

کابلی والا په خپل وړاندني معقول، نیکي غوښتونکي، اصلاحي، غوره عبارت پسې بیا نور داسي څه کښلي دي :-

"پښتانه چي په نړۍ کي څوک د خپل هیواد برخلیک ټاکلو ته نه پرېږدي، باید په دې پوه شي چي لا اوس هم توطیې ورته کېږي او لا هم د نړۍ ظالم ځواک او د هغه مختوري ګوډاګیان دې ته نه دي تیار چي دوی دي په افغانستان کي د یو برلاسي قام او اکثریت په توګه ومني او یا دي د دوی مدني، روزنیز او نور حقوق د نړیوالي دموکراسۍ له مخي دوی ته ورکړي"، (ملي هینداره _ ۲۰۰۵: ۱۳ مخ).

الف :دا پخپله په پښتنو پوري اړه لري چي خپل منځي اختلافات، تعصابات او تبعیض پرېږدي، د پوهني، هنر، کسب، او مهارت لار خپله کړي، دوست او دښمن وپېژني، سره متحد وي، بیا څوک ملا ورماتولای نه سي. که ئې جهالت او قبایلیت په خوا وو، خوند به ئې اوبو وړئ وي، او وړئ ئې هم دئ. دوی خپل حقوق غواړي، اخلي ئې نه. په دیموکراسي کښي خو خپل حقوق په سمه سره اخستل کېدای سي، نه په رد و بد ویلو او نه هم په زور سره.

ب : دغه وروستنۍ درې _ څلور اخستني هم په زغرده سره دا ښووي چي کابلي والا په رښتیا

سره هم کابلي والا دئ. دغه ماتا دي په کابل کښي اوسېږي، او خپله ليکنه ئې هم په کابل کښي کښلې، او بيا ئې په لندن کښي ملي هنداري ته ورلېږلې ده. دا به البته خپل تحصيلات په هند کښي کړي وي.

ج: دا چي نور څوک دوی دېرنيان د خپل هيواد برخليک ټاکني ته نه پرېږدي، خورا ډېر تأمل غواړي. آيا له ۱۹۹۲ څخه ئې تر ۲۰۰۱ پوري دغه دېرنيان او لړنيان و خپل سر ته پرې اينبي نه واست؟ څه مو سره ونه کړل؟ هغه وخت د دغه اکثريت برخليک چا ورټاکئ، او څنګه ئې ورټاکئ؟ اوس هم سر و خپل ګرېوانه ته ورکښته کړئ، او فکر وکړئ! که مو دغه نن يا ګاندء د خپل هيواد و برخليک ټاکني ته پرېږدي، هيواد به مو دړي وړي وي، او په دء رب که ئې بيا سره غونډ يا متحد کړئ! پخپل منځ کښي سره ويشلي او پاشلي ياست، نور به څنګه سره متحد کوئ! اوس پر يوء ملي سرود باندي نه سره جوړېږئ!

د: دغه ستاسي اکثريت خو دي د خپل برخليک ټاکني له پاره دا کابل نيولئ وای! آيا کوم بل ځای ئې نيولئ دئ؟ آيا هر څه پر تياره باندي غوښتل زياتي نه دئ؟

**پايلامه**

ما چي دغه مقالې ولوستلې ځينو ټکو ئې په وروسته کښي و دې ته ځير کړم چي دا دونده چغ و بغ پر څه باندي دئ؟ دا پر دې باندي چي ولي جلالتمآب جمهور رئيس له ښاغلي جهاني څخه د پېژندني، دوستۍ او وطنداري پر اساس باندي د سرود جوړوني غوښتنه کړې وه؟ آيا دغه کلتوري اپارتايد دئ؟ نو بل څه؟ دا که ښاغلی جهاني نه وای، يو بل ښه ننګرهاری، پکتياوال يا وردګستاني شاعر وای چي دء غونډي پېژندنه او شهرت ئې لرلای، هم به ښاغلي جمهور رئيس کرزي د سرود جوړوني غوښتنه ځني کړې وای، که به څه هم هغه سيده نه وای. دء له ښاغي جهاني څخه دغه غوښتنه د سرود په نيامت کړې وه، نه د پېژندني په سبب سره. هغه به خود نور شاعران هم پېژني، خو دء غونډي به ښه شعر ويلای نه سي. دا چي و دء ته ئې مېلمستيا کړې وه، هم د سرود په نيامت. ولي ئې په بل وخت کښي داسي مېلمستياوي نه ورکولې؟ بالآخره جمهور رئيس دا حق او اختيار لرئ له هر چا څخه چي غوښتنه کوي کولای ئې سي. څوک دا حق نه لري چي ووايي، چي دء نو ولي داسي وکړه. و دء ته قانون دغه حق او صلاحيت ورکړئ دئ.

ښاغلي جمهور رئيس کرزي دغه غوښتنه يوازي له دء څخه کړې نه ده، بل لا له نورو څخه ئې هم کړې ده چي تر سلو زياتو شاعرانو خپل سرودونه وروړي ول.

که پښتانه نيمګړي او جاهلان نه وي، نه به نور څوک پتې او ښکاره دسيسې ورته جوړي کړای سي، او نه به ئې دوی له خپله حقه محروم کړي وي. و دوی ته ئې په اساسي قانون کښي د ملي سرود د جوړوني حق ورکړئ دئ. آيا دا چي دوی هر يو غواړي د دء سرود دي ملي سرود وي، امکان لري؟ وايي که به زما سرود ردېږي، نو موږ هم دغسي ناکوجاتي وايو لکه يو ځای او بل ځای چي مو داسي کښلي هم دي. اوس نو تاسي زموږ او نورو فهم او سويه سره مقايسه کړئ. تر طالبانو دمخه په کابل کښي د ښاغلي رباني حکومت و، او خپل ملي سرود ئې لاره. چا د دوی پر ملي سرود باندي مخالفتونه او غوغا واورېدله؟ آيا دوی موږ غونډي دغسي رسوايي جوړي کړلې؟ چا ئې بغ واورېدئ؟ چا ئې بد و رد کښل ولوستل؟ موږ لا د خپلو نيمګړتياوو په هم پر دوی باندي وراړوو. هو! دوی تر موږ دمخه دي، او پر مخ ځي. په موږ کښي جهالت، نيمګړتياوي، قبيلوي تعصب، ګوندي مخالفتونه، سمتي تعصب، او لهجوي تعصب په اوږدء او په پساره سره ستنه. تاسي ئې په مخامختيا کښي وګورئ چي دغه ناخوالي په نورو کښي هم سته. که يوازي په موږ کښي دي. لږ څه پخپل ګرېوانه کښي وګورئ! يئه، موږ پخپل ګرېوانه کښي کتلای نه سو. ځکه چي سويه ئې نه لرو. ثبوت ئې جهالت دئ، قبايليت دئ، سمتيت دئ، کينې او تعصبات دي.

اوس ئې تاسي دا دئ ويښئ چي پښتانه د ملي

سرود په جوړونه کښې له یوه کاري ازمیښته سره مخامخ دي. بنیادي پوښتنه دا ده چې د استاد برهان الدین رباني په رژیم کښې ولي څا داسي مخالفتونه او شرارتونه جوړ کړي نه ول؟ که څه هم په فارسي کښې هم لهجې سته. هراتیان یو راز لهجه لري، بدخشیان بل راز، هزاره ګان لا بل راز، او کابلیان لا هم بل راز. نو د دوی تر منځ ولي دغسي مخالفتونه او شرارتونه را پیدا نه سول لکه د پښتنو تر منځ چي راپیدا سوي دي؟

الف: یو اساسي دلیل ئې دا دئ چي د فارسي ژبانانو د عمومي فهم سویه تر پښتنو لوړه ده. پښتانه خصوصي معلومات لري، خو آفاقي معلومات ئې له فارسي ژبانانو سره برابري کولای نه سي. فارسي ژبانان تاریخي علمي او ادبي پشالا لري، بل لا دا هم چي په پېړیو ــ پېړیو کښې دوی ښاري او رسمي داسي قشر پاته سوي دي چي حکومتونه ئې چلولي دي. زموږ خپل پښتانه فارسي وایي او فارسي کاږي.

ب: بل اساسي عامل ئې دا دئ چي په فارسي ژبانانو کښې یوه معیاري ادبي فارسي سته والی لري چي له پخوا څخه ئې کتابي علمي او ادبي شکل خپل کړئ دئ. سرېبره پښتانه د خپلو نیکونو پرتګلاري باندي هم نه ځي. ځکه ئې نو ژبه معیاري علمي او ادبي یووالی نه لري. نو ځکه هم پښتو خورا ډېري ځله ګوښي لهجې لري، او په کښته کښي ئې هم دغسي پاللي دي، "کارګه وایي زما سپینککیه زویه، او جیړګی وایي زما پستکیه زویه".

ج: دا چي له یوې خوا څخه د دوی د عمومي فهم سویه کښته سي. دا په دا چي ډېری ئې ښاري خلک نه دي، او له بلې خوا څخه ئې په ژبه کښې داسي لهجې وي چي د ختیځ او لوېدیځ واټن ئې تر منځ وي، نو خود به پر هر څه باندي د دوی تر منځ کړکېچ وي. یو ثبوت ئې دغه درکړي مقالې دي، او نوري هم سته.

د: د دغو لهجوي ویشنو په سبب سره د دوی تر منځ سمتي تعصباتو هم وده کړې ده. دا سره له دې چي دوی له محوه کوونکو سیالی یا چلینجه سره مخامخ دي، نو تر څو چي د دوی تر منځ یوه معیاري علمي او ادبي پښتو وده موندلې نه وي، د دوی یووالی به شکلي وي نه اصلي. بیا به ئې نو میدان هم په تدریج سره بایللئ وي، او بایلوتي هم دي.

هـ: د پښتنو د فهم او علمي سویې د کښته والي بل ثبوت دا دئ چي په سیمه ئیزه توګه سره، چیري چي لهجوي توپیرونه هم نسته، د دوی تر منځ تش په نامه سره قبیلوي مخالفتونه او تعصبات سته والی لري. له بده مرغه چي دغه تعصبات ئې په روزلو او تربیه سوو مشرانو کښې لا هم سته. نور به ئې لا څه ثبوت راڅخه غواړئ؟

په پای کښې یوه بله یادوڼه هم کوم او هغه دا چي د ارزیابۍ و مرکې ته رسېدلي ټول سرودونه دي په یوه مجله یا کتاب کښې د شاعر د نامه په الفبائي ترتیب سره چاپ کړل سي. دغه به مو هم په اوس کښې او هم په تاریخي څېړنو کښې د هیوادوالو و قضاوت ته وړاندي کړي وي.

**قضائیه حق ساتنه:**

الف: په مدني رسېدلي جهان کښې دود او رسم داسي دئ چي کله کومه د لیکنې یا شعر ویلو سیالي وي، او د لیکوالانو کتابونه یا مقالې، یا د شاعرانو شعرونه و ټاکلي دفتر ته ورسېږي، هوري هغه له سره څخه ټایپ کېږي، یا د لیکوال یا شاعر نوم ځني ایسته کېږي، او پر ځای ئې د ده و نامه ته شمېرنه ورکوله کېږي، او هم هغه شمېرنه ئې و مقالې یا شعر ته ورکوله کېږي. دغه مقالې او یا اشعار په شمېرنو سره و قضائیه مرکې ته ور وړاندي کېږي. د قضائیه مرکې هیڅ غړی او مشر ئې هیڅ یو باید هیڅ لیکوال یا شاعر نه وپېژني.

ب: د مرکې غړي باید په پټه سره ټاکل سوي وي. هیڅ لیکوال یا شاعر باید په دوی کښې هیڅوک نه وپېژني. تر څو پوري چي د قضائیه مرکې وظیفه و پای ته رسېدلې نه وي. دوی اجازه نه لري چي ځان دي په نورو او بالخصوص لیکوالانو او شاعرانو سره وپېژني چي دوی د سیالی په مرکه کښې غړیتوب لري. د دوی تماس له نورو سره منع دئ.

ج: د مرکې هیڅ غړئ حق نه لري چي په سیالي کښې ګډون وکړي. که نه ګانه داسي پېښه سوه، یا به دی له مرکې څخه ایستل کېږي او یا به ئې لیکنه یا شعر نه منل کېږي. ځکه چي دی د مرکې غړي پېژني. نو دی په هیڅ توګه سره بیا د مرکې له غړو سره تماس نیولای نه سي. بل دا چي د ده باید خپله لیکنه یا شعر د مرکې و غړو ته ورښکاره کړئ نه وي او نه ئې څا شمېرنه و ده ته یا و نورو ته ورښوولې وي. نو د هري لیکنې یا شعر شمېرنه پټه ساتله کېږي څو څوک پوهېدلي نه وي چي دغه د کوم شاعر شمېرنه ده، یا د دغې شمېرنې: شعر شاعر څوک دئ.

پای

❁ محمد معصوم هوتک/کاناډا

# نجومي څېړني

دوهمه برخه

## کليزونه - تقويمونه

...په لرغونو عربي جنتريو کې دوولس قمري مياشتي وې. معمولاً په هر دوهم يا دريم کال کې يوه بله ديارلسمه مياشت پر زياتېدله. دا د دې له پاره يوه هڅه وه چي قمري کال له شمسي کال او د کرني له فصلونو سره په ارتباط کې وساتي. خو دې هڅي د يادوني وړ مغشوشتيا منځ ته راوړې وه. د دغي مغشوشتيا نتيجه وه چي په حقيقت کې دغه کلونه، نه د شمسي نظام او نه د قمري نظام سره تړلي وو.

اسلامي جنتري يو مذهبي کليز (جنتري) ده او يوازې د سپوږمۍ پر بدلونونو (حرکت) باندي ولاړه ده. دغه کال دوولس مياشتي وي، چي په تناوبي ډول ۳۰ يا ۲۹ ورځي لري. په هر سايکل کې له وروستۍ مياشتي ذوالحجې سره يوه اضافه ورځ په دوهم، پنځم، اووم، لسم، ديارلسم، څوارلسم، شپاړسم، نونسم، دوه ويشتم، څلېرويشتم، او اووه ويشتم کال کې جمع کېږي. دغه کلونه کبيسه کلونه نومېږي. په دې ډول يو عادي کال ۳۵۴ ورځي لري او کبيسه کال ۳۵۵ ورځي. په داسي حال کې، چي دا قاعده له قمري کال سره د تطبيق وړ ده، خو له لمريز کال سره هيڅ راز اړيکي نه سي موندلای. د اسلام اساسي نوښت د کبيسه اضافي مياشتو منعه کول و، د مشکوه شريف په يوولسم فصل کې يې راوړي دي، چي محمد ﷺ د حجه الوداع په خطبه کې وويل : "کال دوولس مياشتي دئ، لکه د خلقت په وخت کي چي و". د قرآن شريف په نهم سورت شپږدېرشم آيت کې وايي : "په رېشتيا سره د خدای په نزد دوولس مياشتي د مياشتو شمېر دئ. لکه خدای پاک چي پخپل کتاب کي ويلي دي، له هماغه ورځي راهيسي چي خدای مځکه و اسمانونه پيدا کړل[1]". بايد وويل سي چي دغه خطبه د لسم هجري کال په پای کي (۶۳۳ ع) د حضرت محمد ﷺ تر وفات لږ موده وړاندي ويل سوې وه.

حضرت محمد ﷺ په ۶۲۲ ع کال د يثرب (اوسنۍ مدينې) د پنځه اويا تنو اوسېدونکو له خوا دعوت سو، چي له مکې راووزي او له دوی سره واوسي. له يوې لنډې مودې وروسته د ده په لارښوونه دوه سوه تنه صحابه په پټه له مکې ووتل. دی يوازې پسي رهي سو. له مکې څخه د ۶۲۲ ع کال د سپتمبر پر لسمه ووت او مدينې ته د ۶۲۲ ع کال د سپتمبر پر ۲۴ مه ورسېد. اوه لس کاله وروسته حضرت عمر ؓ د يوې جنترۍ جوړولو اړتيا

[1] دلته ليکوال د سوره التوبه دغه آيت شريف ته اشاره کوي :
ان عدة الشهور عند الله اثنا عشرة شهراً فی کتب الله يوم خلق السموت والارض منها اربعة حرم.

محسوسه کړه. ده امر وکړ، چې د قمري کال دوولس میاشتي باید له هغي ورځي پیل سي چې حضرت محمد ﷺ له مکې څخه ووت (د ٦٢٢ ع کال د جولای ١٦مه) او د اسلامي تاریخ مبداء باید له همدې نېټې څخه وشمېرل سي. له مکې څخه د حضرت ﷺ وتل په عربي ژبه کي هجرت بولي یعني(Migration). ځکه نو اسلامي جنتري د هجرت د عصر په توګه پېژندل سوې ده. په انګرېزي کي دغه وخت په مخففه توګه له لاتیني بڼه (A. H) ښوول کېږي یعني Anno Hijrae (هجري کال). په دې ډول د ٦٢٢ ع کال د جولای ١٦مه په رسمي توګه د لومړۍ هجري سنې د محرم د میاشتي لومړۍ ورځ سوه.

لکه وړاندي چې وویل سوه، اسلامي کال قمري کال دئ. چې نه شمسي کال په پام کي نیسي او نه د فصلونو بدلون. له دې امله نو هغه له شمسي کال سره د پرتلې په صورت کي هر کال تقریباً یوولس ورځي پر شا ځي. په نتیجه کي په هرو ۳۲ کالو او شپږو میاشتو کي د شمسي نظام له ټولو فصلونو څخه یو وار تېرېږي. په دې ډول که په یوه ټاکلي قمري کال کي د روژې میاشت د دوبي له اهار سره برابره وي، شپاړس کاله درې میاشتي وروسته به هغه په ساړه موسم کي راسي. باید په پام کي ونیول سي، چې دغه د هر کال تقریباً یوولس ورځي شا ته تګ باید د یوه ثابت رقم په توګه ونه ګڼل سي. په شمسي کال کي د سپوږمۍ د بدلونونو له واقعي وخت سره سم، کله کله لازمه سي چې دغه بدلون لس ورځي ونه لیدل سي. د روژې د میاشتي پیل او پای باید د یوه معتمد مسلمان د شهادت له مخي اعلان سي. دغه اعلان یا د یوه قاضي یا د تولني د یوه بل مهم غړي لخوا کېږي. په زیاترو ځایو کي دغه اعلان د توپ په ویشتلو سره سر ته رسېږي. دغه راز د هري روژې د نیولو او ماتولو وختونه هم د توپ په ویشتول سره اعلانېږي. د قرآن حکم (دوهم سورت) په دې برخه کي پوره څرګند دئ: "د روژې پیل له هغه وخت څخه دئ، چې په شفق کي سپینه کرښه له توري کرښي څخه تشخیص کړله سي[1]".

کله کله پېښه سي چې اسمان اوریځ وي او د روژې پیل او پای دواړه په شک کي وي. ځکه نوې میاشت نه وي لیدل سوې. په داسي حال کي د روژې د میاشتي پیل نورمال قانون داسي دئ، چې روژه د مخکینۍ میاشتي د دېرشو ورځو له پوره کېدو څخه پیل کېږي. په هر صورت، ځیني ځایونه سته، چې دغه دود نه پکښي پالل کېږي. ځکه د شوال تر لومړۍ ورځي چې د کوچني اختر د نمانځلو ورځ ده، تر هغه وخته پوري چې نوې میاشت په واقعي توګه لیدل سوې نه وي، نه روژه ماتېدلای او نه اختر پیل کېدلای سي. د چټکو پیغامونو په دغه ورځو کي زیاترو عصري او موډرن کسانو ته هم کله کله واقعي ستونزي پېښي سي. له دې سره سره زیاتره کسان لرغونو دودونو ته پابند دي او دوی په اکثریت کي هم دي. په دې ډول، په داسي حال کي چې راتلونکي جدولونه د سپوږمۍ د واقعي بدلونونو پر اساس په دقیقه توګه محاسبه سوي دي، خو نتایج یې بیا هم په همدومره دقت نه سي تطبیق کېدلای. څرنګه چې د هري نوې میاشتي د پیل له پاره د نوې سپوږمۍ لیدل ضروري دي، نو که اسمان اوریځ وي، ډېر امکان لري چې درې ګاونډي کلي دي د نوې میاشتي د لیدلو د ورځي په باب درې بېلابېلي نېټې وښیي او هر یو دې خپله دا سمه بولي. لیکونکي پخپله داسي حالت لیدلی دئ. په مقایسوي اسنادو یا له اسلامي جنتري سره سم د شهادتونو د اورېدلو په برخه کي د دغه راز ځانګړتیاوو په پام کي نیول ضروري دي.

**رومي تقویم :-**

بله مهمه جنتري څو زره کاله وړاندي د رومیانو له خوا اختراع سوې وه. اوسنۍ جنترۍ د هماغه تقویم له مخي ترتیب سوي دي. رومي جنترۍ دوولس میاشتي درلودې چې ځیني میاشتي یې دېرش ورځي او ځیني نوري یې بیا نهه ویشت ورځي وې. کال یې د ٣٦٥ ورځو پر ځای چې باید وای، ٣٥٥ ورځي و. د دې له پاره چې دغه

---

کوي:-
وکلوا واشربوا حتی یتبین لکم الخیط الابیض من الخیط الاسود من الفجر (الخ).

[1] دلته لیکوال د سوره البقره دغه آیت شریف ته اشاره

غلطي يې سمه کړې وي، يو کال تر منځ به يې د ۲۲ يا ۲۳ ورځو يوه بله مياشت پر زياتوله. خو په هرو ۲۴ کلونو کې به بيا مجبورېدل يوه بله اضافي مياشت هم پر وتپي. کله کله بـه د هغـو کسانو د غفلت پـه وجه، چې په جنترۍ کې د دغه راز بدلونونو راوستلو مسئول وو، د دغې اضافي مياشتې د ور زياتولو کار له ياده وووت او ښه زيات کلونه وروسته روميان په هغـه مشکل اخته سـول چـې تـر دوی وړانـدي مصريان ورسره مخامخ سوي وو. يعنې دا چـې د فصـلونو پـه تاکلو کې به ستونزې ورته پېښې سوې.

ژول سزار له مصري منجم Sosigenes سره تـر سلا مشورې وروسته دغه غلطي اصلاح کـړه[۲]. دوی په دواړو يوه داسې جنتري جوړه کړه چې د هغې له مخې به درې کاله پرله پسې د کـال د ورځـو شـمېر ۳٦۵ و او څلرم کال به ۳٦٦ ورځـې درلـودې. کـال يې د جنورۍ له مياشتې پيـل کـاوه او وروسـتۍ هغـه مياشتې راټلې، چې نن ورځ هم په جنتريو کې رواج لـري. دغـه جنتـري د ژول سـزار د نامه پـه نسبت جولين جنتري Julian Calender نومېږي. څو سوه کاله وروسته چې عيسويت د زياترو اروپـايي هيـوادو رسمي دين سو، کليسا هر څه لـه هماغـه کـال څخـه راپيلول، چې د دوی په اټکل د حضرت مسيح ؏ د زېږېدلو کال و. دا اټکل که څه هم څو کالـه وروسته ناسم وخوت خو تر اوسه لا هم پالل کېږي. جـولين جنتري يوه غلطي درلوده او هغه دا چـې پـه کبيسـه کلونو کې يې د کال يوولس دقيقې توپير په پام کـې نه و نيولی. د دې غلطـی اغېزه دومره سـوه، چـې شپاړس کاله وروسته په جـولين جنتـري کـې د لسـو ورځو په اندازه غلطي راغله. دا غلطي پاپ ديارلسم گريگـوري د گريگـورين جنتـرۍ پـه را ايسـتلو سـره اصلاح کړه.

د جـولين جنتـرۍ نېټـې Old style نومېږي چې لنـډيز يـې (O. S) دئ او د گريگـورين جنتـرۍ نېټې New style بلل کېږي چې مخفف يې (N. S) دئ[۱].

**هندي تقويم :-**

په هند کې د تقويم جوړولو څېړنـه پـر هنـدي مدنيت باندې د بېلا بېلو کلتورونو د اغېزو د دوام له امله يوه پرله پېچلـې مسئله ده. د ۱۹۵۰ ع کـال پـه نيمايي کې د تقويم د ريفورم کمېټې د يـوې سـروې له مخې په دغه هيواد کې زيات و کم دېرشو جنتريو رواج درلود، چې هندوانو، بودايانو او د نورو اديانو پيروانو د خپلو مـذهبي ورځـو د ټـاکلو لـه پـاره کـار ځنې اخيست. ځينو دغو جنتريو ته پـه ملکـي چـارو کې هم مراجعه کېدله. دا جنتري د مروجو پرنسيبونو پـر بنسـټ جـوړي سـوي وې خـو سـيمه ييـزې ځانگړتياوې يې هم درلودې.

د ريگويدا په سرودونو کې د سپوږميز لمريـزې جنترۍ په هکلـه ځينـي اشارې مونـدل سـوي دي چې نېټه يـې تـر مـيلاد دمخـه دوهمـي زريـزې، تـه رسېږي. په دې برخه کـې د ۱۳۰۰ ق م او ۳۰۰ ق م تر منځ موده کې يو لړ مشخص معلومات سـته او هغـه مو په يوه داسې پنځه کلنيز سپوږميز تقـويم بانـدې خبروي چې په هغـه کـې لمريـز کلونـه لـه کليسايي Synodic او نجومي Sidereal قمري مياشـتو سـره هماهنگ سوي دي.

د ميلاد په لومړنيو څو پېړيو کې، چې هنديان د بابل او يونان په استرونومي کې په منځ تـه راغلـو پرمختگونو خبر سول، نو په هندي نجوم پوهنه کـې

---

[۲] دغـه معلومـات بـه د ښـاغلي فـريمن گرينويـل پـر څرگنـدونو بانـدي، چې مـا د دې کتـاب پـه سـر کـې راوړي دي، يو اضافت وي او لوستونکي دي يې پـه تکـرار حسـن کـې وشمېري. ژول سزار د روم يـو سـتر جنـرال او واکمـن و چې پـه ۱۰۲ ق م کـي زېږېدلی او پـه ۴۴ ق م کـي د مـارچ پـر ۱۵ وژل سـوی دئ. Ceasar سـزار پـه لرغـوني روم کـې د يـوې مشـهورې کورنـۍ نـوم و. د سـزار نـوم وروسـته د امپـرتور معنا درلوده. د ژول سزار تـر وژل کېدو رووسـته د ده بچـه خوانده اگوسـتوس سـزار Augustus Ceasar پـه روم کـې تـر ۲۷ ق م وروسـته امپراتـوري تاسـيس کـړه. د اگوستوس لقب د روم د سنا مجلس له خوا ورکـول سـوی و او د رومي کال اتمه مياشت د ده پـه وياړ اگسـټ وبلـل سـوه. د اگوسـتوس مړينه يې پـه ۱۴ ميلادي کال پېښه ده.

[۱] د گريگـوي پـه نامـه ۱٦ تنـه رومـن کـاتوليـک پاپـان تېـر سـوي دي چې پـه هغـو کـې درې تنه ډېـر مشـهور دي. لومـړی گريگـوري (۵۴۰ _ ٦۰۴ ع)، اووم گريگـوري (۱۰۸۵ ع مـړ) او ديارلسـم گريگـوري (۱۵۰۲ _ ۱۵۸۵ ع). د عيسـوي جنترۍ بدلونونه د اووم گريگوري له خوا منځ تـه راغلي دي.

هم عمومي سمون (ريفورم) راغـی او هغـه دا چـي دوی دوديزي نجـومي چـاري د لمر او سپوږمۍ د حرکت له نويو نجومي ماډلونو سره عيـاري کـړلې. دغه چاري د هغه وخت په نجومي رسالو کـي، چـي سيدانتها Siddhanta نومېدې، درج سوې، لـه دغـو رسالو څخه يوې رسالې چي سوريا سيدانتها Surya Siddhanta نومېده او په څلرمه هجـري پېړۍ کـي منځ ته راغلې وه، پر هندي تقويم باندي دومـره اثـر واچاوه چي اغېزې يـې د ۱۹۵۷ ع کـال د تقـويمي اصلاحاتو تر زمانې وروسته لا هم پاته وې.

د ۱۹۵۷ ع کال له ريفورم سره سم د هند ملـي جنتري له سپوږميز لمريز تقويم سره سم تدوين سـوه او په هغه کي کبيسـه کـال د ګريګـورين جنتـرۍ لـه کبيسه کال سره برابر سوی و او لومړی مبداء يـې د ساکا دوره وټاکل سوه، چـي د هنـدي کرونولوجـۍ يوه دوديزه مرحله ګڼله کېږي. د ريفورم کمېټې دغـه راز د مذهبي جنتريو له پـاره ځينـي لارښـووني هـم وضع کړې چي د لمر او سپوږمۍ د حرکت محاسبه پکښـې پـه پـام کـي نيـول سـوې ده. د هنـد د مترولوجـۍ څانګـه هـر کـال د مـذهبي رخصـتيو جدولونه په منظم ډول برابروي او پـه The Indian Astronomical Ephemeris کي خپرېږي.

## د پارس تقويم :-

ويل کېږي چي په پارس کي لومړنۍ جنتري د هخامنشيانو په دوره کي ترتيب سوه او په هغـه کـي زردشتي آئين د تاداو په توګه منل سـوی و. پـه دې جنتري کي د پېريـو ځانګړتيـاوي هـم پـه پـام کـي پکښـې نيـولي وې. پـه دې جنتريـو کـي دوولـس مياشتي د بېلابېلو جشنونو يا فعاليتونو په نامه نومول سوي وې او هري مياشتي دېرش ورځـي درلـودې. په هرو شپږو کلونـو کـي ديارلسمه مياشـت پـه دې نيامت پر کال زياتېدله چي د ۳٦۰ ورځـو جنتـري د کـال لـه فصـلونو سـره هماهنګـه کـړي. خـو د هخامنشيانو د دورې په جنتري کي مصري دودونـه په پام کي نيول سوي وو.

د سکندر تر فتوحاتو او مړيني وروسـته چـي د پارس خاوره د ده د يوه جنرال سيليکس Seleucus په لاس ورغله، دوی د يونـاني دودونـو پـر بنسـټ د نېټو ټاکنه د مبداء له مخـې رواج کـړه نـه د ځـانګړو پاچهانو د واکمنۍ له رويه. خو دوی پخپله سـکندر د مبداء په توګه وټاکه. زردشتي ملايانو چي پـه دربـار کي يې خپل نفوذ ځکه له لاسه ورکړی و، چي تـوي واکمنان زردشـتيان نـه وو، لـه دربـار څخـه مـانېجن سول او لازمـه يـې وګڼلـه چـي ځانتـه خپلـه مبـداء وټاکي. دوی د مبداء له مخي د نېټو ټاکل ومنل او د لومړي ځل له پاره يې د زردشتي مبداء لـه مخـي د نېټو محاسبه پيل کړه. دا نو د خپل پېشوا لـه پـاره د يوې تاريخي نېټي د ايښوولو په خـاطر د زردشـتيانو لومړنـی هڅـه وه. د دې مبـداء د ټـاکلو لـه پـاره زردشتي مآخذ او منابع په منځ کـي نـه وو ځکـه نـو دوی د بابل ارشيف ته، چي پـه لرغـونې نـړۍ کـي مشهور ارشيف و، مخ ور واړاوه. له دغو اسنادو څخـه دوی ته څرګنده سوه چي د پارس يوه ستره تاريخي پېښه د سکندر تر عصر ۲۲۸ کاله وړاندي واقع سـوې ده او هغه د لوی سيروس له خوا د بابل فتح کول و. زردشتي ملايانو دغه نېټه له هغه وخت سـره مغالطـه کړه، چي د دوی پېشوا خپل مذهب رامنځ ته کـړی و او څرنګه چي اوستايي ادبيـاتو څرګندولـه، دغـه نوی مذهب د زردشت په دېرش کلني کي رامنځ ته سوی و، ځکه يې نو ۵٦۸ د نومورې د زېږېـدلو نېټـه ګڼلـې وه. دا ناسـمه نېټـه پـه ليکلـو اسـنادو کـي د زردشتي عصر د پيـل پـه توګـه ثبـت سـوه او تـر نـن ورځي پوري لا هم په زياترو اوسنيو دائره المعارفونو کي د زردشت د زېږېدلو د نېټې په توګه ښوول سوې ده.

په جنتريو کي بل سـتر بـدلون د ساسـانيانو د دورې د مؤسس لومړي اردشېر په زمانه کي منـځ تـه راغـی. اردشېر د کال پر ورځو پنځه نـوري ورځـي ور زياتي کړې. خو دې بدلون يو راز ګډوډي پېښه کـړه او له مقاومت سره مخـامخ سـو دا ځکـه چـي زيـاترو زردشتي ورځو او تجليلونو به دوې نېټـې درلـودې. دا حالت هله نور هم پېچلی سو چي د اردشېر لمسي لومړي هومزد په جنتري کي يو بل بدلون راووست. ده نوي او زړې مقدسي ورځـي سره يو ځای کړې او يو شپږ ورځنی اختر يې جوړ کړ. نوروز له دغه اختره وتلی و.

دې بدلون هم سـتونزې اواري نـه کـړلې او د دې دورې وروسـتي واکمـن دوهـم يزدګـرد نـور

بدلونونه وړاندي کړل. دا جنتري د یزدګرد په نامه پېژندل سوې وه. خو مخکي له دې چي پر نوې جنتري باندي کار بشپړ سي، عربو مسلمانانو دا واکمني پای ته ورسوله (اوومه مېلادي پېړۍ) او د دوی له سوبو سره سم د ساسانیانو د دورې د زړې جنتري ځای نوي قمري جنتري ونیو چي تاداوېي د اسلامي جنتري پر اصولو ولاړ و.

په یوولسمه پېړۍ کي د پوهانو د یوې ډلي له خوا چي عمر خیام هم پکښې و، د پارس پر جنتري باندې نوې کتنه وسوه او دا نوې کتنه د جلال الدین ملک شاه سلجوقي په عصر کي بشپړه او نوې جنتري د ده په نامه (جلالي تقویم) وبلل سو. اسلامي قمري جنتري د ۱۹ پېړۍ تر پایه پوري په پراخه توګه کارېدله. په پهلوي عصر کي (۱۹۲۵ ع) د قمري جنتري پر ځای معاصره ایراني جنتري په رسمي توګه را منځ ته سوه او د میاشتو لرغوني پارسي نومونه بیرته راژوندي سول چي تر ننه پوري لا هم کارېږي. ایراني لمریزه جنتري په ۱۹۲۵ ع کال د ایران د پارلمان له خوا په رسمي توګه ومنل سوه چي مبداء یې له مکې معظمې څخه مدینې منورې ته د حضرت رسول ﷺ هجرت دئ. په دغه جنتري کي د کال لومړۍ ورځ د پسرلي لومړۍ ورځ هم ده.

په افغانستان کي به لومړنی چاپي تقویم غالباً د امیر شېرعلیخان د پاچهۍ د وخت ۱۲۹۵ هـ ق کال تقویم وي، چي د شمس النهار په مطبعه کي چاپ سوی و. د دغه تقویم د استخراج چاري د ملا عبدالرحیم او عبدالرحمن له خوا سر ته رسېدلي وې. دوی د عزیز الله اخندزاده قندهاري زامن وو[1].

د امیر شېرعلیخان تر عصر وړاندي په ټولو پاچهي او دولتي اسنادو کي د هجري قمري جنتري دود عام و. اولسي معاملات د همدې تقویم له مخي سر ته رسېدل.

د هجري قمري جنتري استعمال د نونسمي پېړۍ تر اواخرو او د شلمي پېړۍ تر اوایلو پوري په ټولو سرکاري او ملکي اسنادو او د اولس په ورځنیو چارو کي عام و. د غازي امان الله په پاچهي کي د هجري شمسي جنتري رواج ته پاملرنه زیاته سوه. د دغي جنتري د میاشتو نومونه د منطقه البروج zodiac د عربي نومونو فارسي ترجمه ده.

**منطقة البروج یا zodiac څه ته وایي؟**

دا نوم د مځکي دپاسه په اسمانو کي یوې فرضي دایرې ته ورکړه سوی دئ. له دې دایرې څخه لمر، سپوږمۍ او ځیني ستوري د کال په مختلفو وختونو کي د اسمان په بېلابېلو برخو کي لیدل کېږي.

لرغونو انسانانو په لومړي سر کي د منطقه البروج د دایرې په واسطه د کال وخت معلوماوه. په دغه دایره کي د ستورو بېلابېل ګروپونه سته چي لرغونو انسانانو نومونه هم پر ایښي او هري برخي ته یې په دې ډول نومونه ورکړي وو :-

| پښتو | فارسي ـ عرب | انګلیسي | لاتین |
| --- | --- | --- | --- |
| وری | حمل | The Ram | Aries |
| غویی | ثور | The Bull | Taurus |
| غبرګولی | جوزا | The Twins | Gemini |
| چونګاښ | سرطان | The Crab | Cancer |
| زمری | اسد | The Loin | Leo |
| وږی | سنبله | The Virgin | Virgo |
| تله | میزان | The Balance | Libra |
| لړم | عقرب | The Scorpion | Scorpio |
| لیندۍ | قوس | The Archer | Sagittarius |
| مرغومی | جدي | The Goat | Capricornis |
| سلواغه | دلو | The Water-Bear | Aquarius |
| کب | حوت | The Fishes | Pisces |

په پښتني سیمو کي د ځینو قمري میاشتو له پاره ځانګړي نومونه کارېدل. د کال د دوولسو میاشتو نومونه یې داسي دي :-

| عربي | پښتو |
| --- | --- |
| محرم الحرام | محرمه |
| صفرالمظفر | صفره |
| ربیع الاول | لومړۍ خور |
| ربیع الثاني | دوهمه خور |
| جمادي الاول | دریمه خور |
| جمادي الثاني | څلرمه خور |
| رجب | د خدای تعالی میاشت (بزرګه) |
| شعبان | برات |

[1] پېښندلیک ۲۰۳ مخ.

| | |
|---|---|
| رمضان | روژه |
| **شوال** | **کوچنی اخت** |
| **ذي القعده** | **مياني** |
| **ذی الحجه** | **لوی اختر** |

په افغانستان کې د شلمي پېړۍ تر نيمايي پورې په تولو معتبرو کتابو او تاريخي اسنادو کې د کلونو تورکي نومونه هم باب وو او منجمانو د کال دوولس مياشتې د دوولسو حيوانانو په نامه نومولې. د هر کال نوم د "ئيل" کلمې، چې په تورکي ژبه کې "کال" ته وايي، او د يوه حيوان د نامه له ترکيبه څخه جوړ سوی و، په دې ډول:-

| | |
|---|---|
| اودئيل | : د غوايي کال |
| پارس ئيل | : د پړانګ کال |
| توشقان ئيل | : د سوی کال |
| لوی ئيل | : د نهنګ کال |
| يونت ئيل | : د آس کال |
| ايلان ئيل | : د مار کال |
| قوی ئيل | : د پسه کال |
| پيچي ئيل | : د بيزو کال |
| تخاقو ئيل | : د مرغه کال |
| ايت ئيل | : د سپي کال |
| تنګوز ئيل | : د خوګ کال |
| سچقان ئيل | : د موږک کال |

د پښتو ژبې نازکخيال شاعر ميرزا حنان بارکزي ويلي دي :-

شچقان موش، او د يې عويې، پارس پلنګ دی
پس له دې توشـــقان سوی، لوئيل نهنګ دی
ئيلان مـار، ينت ئيل فـرس، قوی ئيل پسه دی
بچ بيزو، تخـاق مرغـــه يې هم پر خنـګ دی
ايت ئيل کلب. تنګوزي خـــوګ د کال نومونه
کـــه دي نه زده له مـا واوره دا فرهنـګ دی[1]

## د ورځو نومونه :-

| پښتو | هندي | انګليسي |
|---|---|---|
| شنبه | سينچروار | Saturday[2] |
| يکشنبه | اتوار | Sunday |
| دوشنبه | سرموار | Monday[3] |
| سه شنبه | منګلوار | Tuesday |
| چهارشنبه | بدهوار | Wednesday[4] |
| پنجشنبه | ويروار | Thursday[5] |
| جمعه | شکروار | Friday[6] |

[1] دا قطعه د ميرزا حنان د ديوان له يوې خطي نسخې واخيستل سوه. په چاپي ديوانو کې دا قطعه نسته.

[2] د Saturday د نامه ريښه د روميانو يو رب النوع Saturn ته رسېږي. يهوديان يې Sabbath يا د استراحت ورځ بولي. د روميانو په عقيده ستېرن د کرهڼې او د تخمونو د پخېدلو رب النوع و. دغه راز په شمسي نظام کې دوهم لوی ستوری هم Saturn (زحل) نومېږي.

## د مياشتو افغاني او ايراني نومونه :-

| | | |
|---|---|---|
| حمل | وری | فروردين |
| ثور | غويی | ارديبهشت |
| جوزا | غبرګولی | خرداد |
| سرطان | چونګاښ | تير |
| اسد | زمری | مرداد |
| سنبله | وږی | شهريور |
| مېزان | تله | مهر |
| عقرب | لړم | آبان |
| قوس | لېندی | آذر |
| جدی | مرغومی | دی |
| دلو | سلواغه | بهمن |
| حوت | کب | اسفند |

زما سره د اعليحضرت محمدنادر خان د پاچهي د وخت فارسي تقويمونه سته، چې د استخراج چاري يې د ملا محمد مهدي منجم باشي زوی حاج عبدالحسين سر ته رسولي دي او تقويم په هرات کې چاپ سوی دی.

دا ستوری په هغو دريو کړيو سره، چې پر راتاو سوي دي، ډېر په زړه پوري ښکاري. دا کړۍ (حلقې) واردواره د ايتالوي پوه ګاليله له خوا په ۱٦۱۰ ع کال کشف سوې.

[3] د Monday د نامه ريښه Monandaeg ته منسوبه ده. دا د هغه جشن نوم دئ چې موچيان پکښې رخصت وي او په دغه ورځ کار نه کوي.

[4] د Wednesday د نامه ريښه يې د جرمانيک کلتور له مخې د Odin په نوم يوه رب النوع ته منسوبه ده، Odin د ارباب الانواعو مشر او د عقل ورکوونکی ګڼل سوی دئ. جرمانيکو قبايلو دغه خدای Woden باله.

[5] د Thursday د نامه ريښه Thor's day ده، چې په لرغوني جرمانيک ژبه کې يې د تالندي رب النوع Thor باله او د دغې ورځې نوم هم په دغه ارتباط اېښوول سوی دئ.

[6] د Friday نوم د روميانو له Dies Veneris سره اړيکې لري. په فرانسوي کې دې ورځې ته Vendredi وايي.

ټولوونکې : هُما غفوري
ژباړن : روایت کندهاري

# ښځه پلورنه

## د انسان نړیواله سوداګري

نن روځ فحاشي د نړۍ په اقتصاد کې یوه ستره زیاتونه ده او روځ په روځ ډېرېږي. ځینې ناپېیلې ټولنې (NGO) او نړیوال ارګانونه غواړي چې تن پلورونکو ته د "سکس کارګران" نوم ورکړي او د هغوی کار د "سکس صنعت" په نامه ونوموي او داسې وښیي چې ګویا تن پلورنه یو کار او دنده ده، کټ مټ لکه په هوټل کې کار کول، په یوه کارځای کې کار کول او ....، مګر په ډېر لږ بدلون سره او هغه دا چې د کار په شکل کې یې توپیر موجود دی.

کارګر کالي تولیدوي او تن پلورونکې ښځې خپل ټول وجود د بل په واک کې ورکوي او دا هم تقریباً یو ډول تولید بلل کېږي.

هر کال له خوارو او فقیرو ملکونو څخه سل زره ښځې ختیځې اروپا، استرالیا، اتریش، جاپان، امریکا او د عربي وطنونو شیخانو ته د قاچاق په ډول بېول کېږي.

د دغه کارونو سوداګر هر کال په لکونو لکونو ډالر لاسته راوړي. په هند کې له څلور لکه څخه تر پنځه لکو پورې ښځې د تن پلورنې په کسب اخته دي، له دوی څخه ډېرکې له نیپال او بنګله دېش څخه د قاچاق په ډول راوړل کېږي، د آسیا په جنوب کې هر کال کابو دوه لکه ښځې او هلکان د انساني قاچاق قرباني کېږي، په دغو کې له دیارلس کلنۍ څخه نیولې تر نولس کلنۍ پورې نجونې شاملې دي. د ګرځندوی صنعت هم په دغو ملکونو کې د ځانپلورنې پر لور راچورلي. په دغو کې تاینه، فیلیپین، مالیزیا او اندونیزیا هم خورا فعال رول لري.

**جنوب ختیځه آسیا** :-

د جنوب ختیځې آسیا ملکونه په څرګند ډول تن پلورنې ته وده نه ورکوي، مګر په داسې حال کې چې د دغو ملکونو اقتصاد او سیاست په دغې ځانپلورنې پورې تړلی دئ. هغوی پوهېږي چې په څه ډول د ګرځندیانو پاملرنه خپل وطن ته را اړولای سي، او په همدې توسن نو خپلې ځوانې ښځې دباندنیو ملکونو ته لېږي.

د هغوی مالي سرچینې هم له همدغې لارې غښتلې کېږي او په اصطلاح ټول اقتصاد یې په همدغه کار پورې تړلی دئ. هغوی په مستقیم او یا غیرمستقیم ډول له دغه صنعت څخه خپل اقتصادي نظام پیاوړی کوي او همدغه دلیل دئ چې له "ګرځندوی سکس" سره هیڅ مبارزه نه کوي او په دغه اړه یې تر اوسه هیڅ اقدام نه دی کړی.

په تایلینډ او کامبوج کې لوړ دولتي مقامات په دغه کار کې دخالت لري او دغه کار ته روځ په روځ پراختیا ورکوي.

ډېرې ښځې په خپلو ملکونو کې له غریبۍ او بدې اقتصادي وضعې څخه دغو بدو کارو او فاحشه توب ته ورکښل سوي دي.

په ۱۹۹۰ م کال د جنوبي آسیا اقتصادي بحران حالت ډېر خراب کړ. ډېرو ښځو په تن پلورنې

پیل وکړ، نو په هریانوونکې توګه یې پراختیا پسې وموندہ او یو وحشتناک حالت رامنځته سو، هغه ملکونه چې د "سکس صنعت" تجربه یې نه لرله، هم دغو کارونو ته ور وکښل سول، د بېلګې په ډول ویتنام او کامبوج چې لسیزه وړاندي یې د خپل وطن دروازې د ګرځندیانو پر مخ تړلي وې، نن روځ یې د همدغو ګرځندویانو له پاره د "سکس صنعت" رامنځته کړی دئ او کټ مټ د تایلینډ، فیلیپین او سریلانکا غوندي سوي دي.

په کامبوج کي ۹۸ سلنه ښځي د خپلو کورنیو خرڅ و خراجات له همدغو بدو کارونو او تن پلورني څخه برابروي او په تایلینډ کي هغه ښځي چې په دغه کسب بوختي دي، هر کال درې سوه میلیونه ډالر خپلو کورنیو ته د خپل دغه کسب له لاري لېږي.

**د پخواني شوروي اتحاد ملکونه :-**

د پخواني شوروي اتحاد د اقتصاد لویه برخه د هغو انسانانو له خرڅلاو څخه جوړېدله چې ځانپلورني ته هڅول کېدل. د اروپا د فقیرو ملکونو لکه اوکراین، آلبانیا، رومانیا او ملدوانیا اصلي تجارت له هغو ښځو څخه تشکیلېږي چې غربي ملکونو ته لېږل کېږي.

د پخواني شوروي ځیني ملکونه لکه روسیه، ګرجستان، ارمنستان او ځیني نور هر کال تر حساب تېري ښځي غربي اروپا او امریکا ته د قاچاق په ډول استوي. د دغو ملکونو تجارت او اقتصاد د دغو بدبختو ښځو له قاچاق څخه جوړېږي.

تیرانا (البانیا) او چیزیناو (ملدواني) د ښځو له قاچاق څخه ډېر ستہ لاسته راوړي. د یونیسف د شمېرني له مخې تېر لس کاله یو لک ځواني البانیایي ښځي غربي اروپا او بالکان ته قاچاق سوي دي. ویل کېږي چې اوسمهال ډېرش زره آلبانیایي نجوني په اروپایي ملکونو کي د فاحشه توب دنده سر ته رسوي. د هغه سند له مخې چې د یونیسف او له کوچنیانو څخه د ملاتړ ټولني وړاندي کړی دئ، دا پایله راوتلې ده چې ډېر کم عمره هلکان او نجوني په آلبانیا کي تن پلورني ته هڅول کېږي.

د ځینو درواغجنو ملګرو، دوستانو او کورنیو له خوا ځواني ښځي دباندنیو ملکونو ته د تګ له پاره هڅول کېږي او په لومړي سر کي وعده ورکول کېږي چې هلته به په شتمنو ملکونو کي په هوټل، کور او یا یو بل تجارتي مرکز کي ډېر ښه کار ورته پیدا کړل سي، مګر کله چې دغه ځواني ښځي پور او دار وکړي او د یوه شتمن دباندني ملک د سفر خرڅ تر لاسه کړي او هلته ولاړي سي، نو هورې بیا کیسه بل ډول وي، نه په هوټل کي کار ورته پیدا کېږي، او نه په یوه مغازه کي د کارګر په حیث کار ورکول کېږي او پر دې ټولو سربېره دوی اړ ایستل کېږي چې هغه پور ادا کاندي چې دغه شتمن ملک ته په راغلي دي او په دې صورت کي نو دوی مجبوري دي چې تن پلورني ته زړه ښه کړي او ټول عمر د یوې فاحشې په توګه ژوند وکړي.

پر دې ټولو سربېره هم د دوی پور نه ادا کېږي، ځکه چې دوی مجبوره دي چې نیمي پیسې فاحشه خانې ته ورکړي او نیمي هغه قاچاقچي ته وسپاري چې د دوی د راتګ کاریې پر غاړه اخیستی وي او په دې ډول سره هم تهدیدېږي چې که پولیسو ته مراجعه وکړي، نو خپله به په یو لوی جنجال ځان اخته کړي او دوی خوارانې نو اړې دي، چې په یوه روځ او شپه کي له لسو یا پنځلسو کسانو سره جنسي اړیکي ونیسي.

**نړیوال تجارت :-**

په داسي حال کي چې جنوبي آسیا او ختیځه اروپا د ځوانو ښځو په قاچاق کي ډېره ونډه لري، مګر له دغه تجارت او سوداګرۍ څخه ځیني ډېر غریب ملکونه هم ګټه اخلي.

هر کال د زرو کسانو په شاوخوا کي چې عمرونه یې له څورلسو څخه تر پنځه ویشتو پوري دي له موزامبیک څخه ژوهانسبورګ ته په غیرقانوني ډول لېږل کېږي او هلته په وچ کلک زور سره د تن پلورني کار ته اړ ایستل کېږي.

د ملګرو ملتونو د احصائیې له مخې په برازیل کي د دوو میلیونو کسانو په شاوخوا کي چې عمرونه یې تر اتلسو کالو کم دي، د تن پلورني په دنده اخته دي. په زرونو ځواني کلمبیایي ښځي په درواغجنو

ژمنو سره په جاپان کې په لومه بندېږي، دغه بدمرغه ښځې نه پوهېږي چې جاپان ته په ور ننوتلو سره یې په وړاندې څه بدمرغه حالت پروت دی.

آن دا چې ځینې اسلامي ملکونه هم پـه دغـه کټګورۍ کـې شـامل دي او پـه ایـران، مـراکش او تونس کې چې حجاب او پرده یـوه اجباري خبـره ده، مګر بیا هم په دغو ملکونو کې د تن پلـورنې یـو ډېر غټ راز څرګند سوی دئ، پـه دغـو ملکونـو کـې هم ډېرې ښځې اړ ایستل کېږي چې فاحشه توب تـه مخه کړي او د خلیج شیخانو تـه د قاچـاق پـه ډول ورلېږل کېږي.

د یو اېراني آژانس د خبر له مخې هره روځ پـه منځني ډول څلورېنځوس ځـواني اېرانـۍ ښځـې د پاکستان (کراچي) ته د قاچاق په ډول بېول کېـږي چې بیا له هغه ځایه ځیني غربي وطنونو تـه اسـتول کېږي. د آتن په یوه کنفرانس کې دا خبره رسوا سوه چې شل زره بهرنۍ ښځې چې ډېرکی یې د پخواني شوروي له ملکونو څخه دي، پـه یـو بیلیـون ډالـري صنعت کې بوختې سوي دي او دغه ښځې پـه آتـن کې یو میلیون خلګو ته خدمت کې.

نن روځ په انګلستان کې اتیا زره ښځـې د تـن پلورنې په کار بوختې دي. په یـوه علمـي او مسـتند ګزارش کې ویل سوي دي چې په برتانیه کې خلـک د کاله دوه سوه میلیونـه پونـده د "سکس" لـه پـاره څرڅوي. لوېدیځې اروپا ته هر کال شپږ لکـه ښځـې پـه غیرقـانوني ډول لېـږل کېـږي او هلتـه د جنسـي استثمار ښکار ګرځي.

تېر کال د لندن پولیسو درې سوه ښځې او لـس هلکان له فاحشه خانو څخه را وایستل. په دغو ښځـو کې په سلو کې نولس د انګلستان وې، پنځـه ویشـت فیصـده د ختیځـې اروپـا او نـوري د آسـیایي او افریقـایي ملکونـو وې. پـه فرانسـه، ایټالیـا، سـویس، هالنډ، آلمان او سویډن کې هم حـالات تـر دغـه نـه دي ښه.

## ګلوبلایزېشن او د نړیوال کار وېش :-

د ننـۍ دنیـا د ښځـو بـد او وحشـتناکه حالـت ښایي دوه لامله ولري او لومړی دا چـې د پخـواني شوروي اتحاد د ګلوبلایزېشن د لومړي روند لـړۍ

دلیل دا دئ چې دغه ملک له ډېر پخوا څخه د ښځو په تجارت کې کارنده ونډه لرله او د ښځو غیرقانوني تجـارت یـې راپیـل کـړی و او ښځـو هـم ځکـه تـن پلورنې ته غاړه ایښووله چې فقر، خـوارۍ، غریبـۍ او بدبختیو پر سر اخیستي وې او دوهمه یـې ښـایي دا وي چې په ځینـو نـورو غریبـو ملکونـو کـې ځـواني ښځې او کم عمره هلکان د دندو ا کارونو د نستوالي له وجې تـول عمـر مفلسـه ګرځـي او پایلـه دا راوزي چې تن پلورنې ته غاړه کېښږدي. د دغه سرمایه داره نظام په منځ کـې ډېـرې غریبـې ښځـې او هلکـان د ژوند څرڅولو ته مجبورېږي او هغه په دې معنـا چـې باید فاحشه توب ته مخه کړي او له دغه کار څخه پـه امریکا، انګلستان، آلمان، فرانسه او جاپان کې ځیني پانګه اچوونکي د "سکس صنعت" جـوړوي او خـورا ډېرې ګټې لاسته راوړي.

د شـتمنې نـړۍ یـو بـل خصـلت دا هـم دئ چـې غـوارې د "سـکس صـنعت" لـه لاري ځـان رامنځته کړي او د یوه نړیوال کار وېش ته را داخـل سي.

ځیني ملکونه د ټاکلو کالیو د تولیـد لـه پـاره د نړیوال تجارت په ډګر کې کار ته ګمارل کېږي، هغـه ملکونه چې د (ښځو او هلکانو) د کالیو جوړولـو تـه مؤظف دي چې د سکس په صنعت کې وکارول سي، ډېر غریب دي او خپل طبیعي تولیدات او زېرمې نه لري چې د وطن پـه پیـاوړي کولـو کـې کـار ځنـې واخلي، ځکه نو دغـه تولیـداتو تـه پراختیـا ورکـوي چـې د نړیـوال تجـارتي بـازار غوښتنـه هـم ده او د دوی په شهرت کې هم پـوره مرسته ورسـره کـولای سي.

## د ښځو په وړاندې اوسنی نړیوال جنګ :-

امریکا هغه وروستی کنفرانس چـې د ښځـو پـه باب و، په لاس کې واخیستی او په رسـمي ډول یـې اعلان کړ چې د ښځې په نس کې د کوچني له منځه وړل سمه خبره نه ده. د امریکا اسـتازي دغـه مسـئله غیرقانوني وبلله او زیاته یې کړه چې د اولاد له منځه وړل د تن پلورنې دندې تـه پراختیـا ورکـوي او کـه دغه کړنه بنده او غیر رسـمي سـي نـو ښـایي چـې د ښځو په قاچاق کې کمښت راولي.

مگر پر دې ټولو سربېره امریکا په دغه باره کې چنداني لازم اقدامات نه کوي او دې ته نه گوري چې آیا ښځې نه سي کولای چې د خپل ځان په باب پرېکړه وکړي او هغه څه چې زړه یې غواړي په خپله خوښه تر سره کاندي او یا داسي خبره ده چې د ښځو خپل وجود په خپل واک کې نه دی او د یوې ناوکۍ غوندي د نورو په لاسونو کي پورته کښته سي؟

پر دې ټولو بېځایه باټو او لاپو سربېره بیا هم د دولتي او غیر دولتي ټولنو غونډو، پرېکړي او خبري بې نتیجې او بې گټې دي، که له یوې خوا د امریکا په ډېرو ایالتونو کي تن پلورنه غیرقانوني اعلان سوې ده، نو له بلي خوا بیا په سوئډ، آلمان او هالند کي دغه کړنه قانوني اعلان کړه سوه.

مگر په دغو ټولو وطنونو کي ځانپلورنه خپل اوج ته رسېدلې ده، هر وخت په دغه باب پرېکړي کېږي چې د ښځو قاچاق بند کړي، د پناه غوښتني اصول او قوانین سخت کاندي، ځانپلورنکي تر فشار لاندي راولي او ځیني ډلي یې آن له وطنه هم پسي باسي، مگر څوک باور کولای سي چې دغسي پرېکړي به تن پلورني ته د پای ټکی کېښېږدي؟

د دغو پرېکړو عملي کېدل یوازي پر هغو بدبختو تر سره کېږي چې یوازي او یوازي شتمنو او پرمختللو دباندنیو هیوادونو ته د دې له پاره تللي دي چې هلته یو څه د آرام ساه واخلي.

د نړیوالو اخلاقي سنگر چې د ښځو او کوچنیانو د قاچاق په وړاندي یې نیولی دئ، که څه ریاکاره وي او که بې ریا، خو دا له آره پر ښځو یو بل ستم او فشار رامنځته کوي او دغه شعار چې "د کورنیو ارزښتونه" همدا اوس اوس خورا په جوش سره ویل کېږي، هم د ښځو له پاره ډېر تاواني گڼل سوی دئ، هغه په دې معنا چې د ښځو ټول حقوق تر پښو لاندي سوي او پایمال سوي دي.

دا څنگه نړۍ ده چې هر څوني پرمختللې او متمدنه کېږي، هغونه د میلیونونو انسانانو ژوند ورسره سختېږي.



عبدالهادي ریښا/کراچي

# شوده گان

یو وایي هغه کس احمق دئ چي په مجلس کي پر خپله خبره دمخه تر خبري کولو خاندي.

بل وایي دا هم احمق دئ چي یوه پښه یې پر دې بل زنگانه ایښې وي، ځان او پښه ښوروي او تله په چپلاخه وهي یا ټکوي.

څوک بیا وایي تر دې سړي بل ساده چیري دئ چي کیک او کلچه د چایو په پیاله چخ کړي بیا یې خولې ته وړي، هغه پر لاري ځني وڅڅېږي.

بل وایي څوک چي د نن مېوه یا بل د خوړک شی و سبا ته ساتي او ساتلی شی نن خوري، دغه سړی شوده نه بولئ؟

څوک وایي هغه سړی ډېر بې عقل دئ چي په مجلس کي بل چا ته د خبرو وار نه ورکوي.

ځیني وایي تر هغه سړي سوډر نسته چي په مجلس کي خبري کوي او د څنگ سړي ته پر زنگانه نوکاري ورکوي، په چپلاخه یې وهي یا یې په تشي کي په څنگل وهي.

په مجلس کي چي څوک په لوړ آواز په زوره خبري کوي دا خوار هم له عقله خلاص بوله.

دا ساده گان چي و تاسو ته دریاد سول ضرور به دوی تاسي په یو مجلس کي لیدلي وي، که دباندي راووزي لا به یې ووینئ، تاسي هغه خوشي کړئ راسئ وگورئ چي د بې گناه انسانانو وینې تویوي. چي مالونه چوروي، چي هستۍ ایرې کوي، چي خپلي د برق، تلیفون خادې اره کوي لینونه یې وړي او په پردي ملک کې خادې ایږدي او لینونه کشوي، برقونه لگوي.

خپل کورونه نړوي، بل ته پاخه منزله تعمیرونه جوړوي، په خپل وطن کي خرابي راولي، په بېگانه ملک کي آبادي راولي، په خپل ملک کي له غروره آسمان ته گوري، په نورو ملکو کي لکه مرڅگه د بل د لاس چوغکه وي، څوک چي داسي کارونه کوي تاسي اوس نو پر دې خلکو کم نوم ایږدئ، کم لقب ورکوئ؟



# اسلامي مدرسې

## کله پيل سوې؟

ليکوال
استاد محمدصديق
اراکاني



ژباړه
احمد فرزان

د بصيرت او پوهې څښتنان پوهېږي چې د دنيا او اخرت برى او برياليتوب په پوهه او عمل کې نغښتى دئ، که چيرې پوهه نه واى نو د حيوان څخه به د انسان توپير نه واي، او د الله پاک او د هغه د پيغمبر ﷺ پېژندنه به د امکان نه بهر پاته واى، او همدغه علم دئ چې له امله يې انسان په غوره صفتونو، ښايسته اخلاقو او سمو کړنو موصوفه کېږي، او د پيغمبر ﷺ د بعثت د مهمو موخو نه يوه هم زده کړه ده، چې قرآن ورته داسې نغوته کړيده:-

وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ

ژباړه:-

او د دې له پاره (پيغمبر ﷺ پاځول سوى) چې دوى (انسانانو) ته کتاب او حکمت وښيي.

او د اسلام پيغمبر ﷺ فرمايي (انما بعثت معلما)، د شک پرته زه ښوونکى پاځيدلى يم.

او دا هم څرګنده ده چې د اسلامي او کلتوري علمونو له پاره مدرسې او ښوونځي تر ټولو زياته اړينه اله ده، ځکه نو د اسلام پيغمبر ﷺ د لومړي ځل له پاره په مدينه منوره کې د (صفه) په نامه د يوې مدرسې بنسټ کښېښوده، چې ځينو صحابه وو به پکښې شپې او ورځې کولې او د قران او نبوي احاديثو زده کړه به يې کوله، دوى ته اصحاب صفه (د صفه وال) ويل کېدل، کله چې به وبېلابېلو ښارونو، کلو او سيمو ته د يوه مبلغ او ښوونکي د لېږلو اړتيا پيدا سوه نو پيغمبر ﷺ به د دوى نه څوک ورلېږل. (سيرت النبي، لومړي ټوک ۲۱۵مخ).

د اسلام په لومړيو کې به زده کوونکو په مسجدونو کې زده کړه کوله. او يوه بېله ودانۍ يې د

ښوونې او زده کړې له پاره نه لرله، بلکې مسجدونه به د درس او تدریس مرکزونه وه، تر څلورمې هجري پېړۍ پورې د زده کړې لړۍ په همدې ډول روانه وه، وروسته بیا د مدرسو جوړولو اړتیا ولیده سوه او خلګو ورته پام واړوه، د پوهانو تر منځ په دې کې د نظر اختلاف دئ چې لومړی چا مدرسه جوړه کړه، ځیني وایي د مصر پخواني ولسمشر چې په کال ۳۸۷ - ۴۱۱ ق _ ۹۹۷ _ ۱۰۲۰ ع کې مړ دئ د لومړي ځل له پاره د خپلې واکمنۍ پر مهال یوه مستقله مدرسه تاسیس کړه، خو هغه یې هم د دریو کلونو وروسته بیرته خرابه کړه، (البدایه والنهایه، ۱۱ ټوک، ۳۴۲ مخ، او حاشیه بن الاثیر).

ځیني بیا وایي د لومړي ځل له پاره چې چا مدرسه جوړه کړه هغه (نظام الملک الطوسي و. چې په کال ۴۸۵ ق = ۱۰۹۲ ع) مړ دئ. چې د (المدرسة النظامیه) په نامه یې یوه مدرسه په بغداد کې جوړه کړه.

خو ځیني نور بیا په دې باور دي چې د مدرسې لومړنی بنسټګر (سلطان محمود غزنوي افغاني) دئ چې د لومړي ځل له پاره یې په غزني کې مدرسه تاسیس کړه.

چا بیا ویلي چې په اسلام کې د لومړي ځل له پاره په نیشابور کې د (المدرسة بیهقیه) په نامه جوړه سوه او په دې مدرسه کې د حرمین شریفین امام استاد الغزالي رحمه الله درس کاوه، همدا سمه هم ده. المامون والغزالي، ۱۰ مخ. لیکوال علامه شبلي النعماني رحمه الله.

او په هند کې د لومړي ځل له پاره د ملتان د واکمنو نه یو واکمن (ناصرالدین قباجه) د (مدرسه فیروزي) په نامه په ملتان کې جوړه کړه، چې د مدرسې چارو تنظیم یې د شیخ قاضي منهاج ته په کال ۶۲۴ ق - ۱۲۲۶ ع وسپاره، او د سهار لمونځ پکښې شیخ زین الدین زکریا ادا کاوه، تر دې وروسته نو بیا د مدرسو او اسلامي ښوونځیو تاسیسول دود سوه چې په بېخي لږه موده کې ډېري مدرسې بنا سوې. شیخ علامه مقریزي رحمه الله ویلي چې د ۷۲۵ ق = ۱۳۲۴ ع سره او ۷۵۲ ق = ۱۳۵۱ ع کلونو تر منځ د محمد تغلق په زمانه کې ډېري زیاتي مدرسې جوړي سوې چې یوازي په ډهلي کې ۱۰۰۰ مدرسې وې. (تاریخ دارالعلوم دیوبند. لیکوال سید محبوب رضوي).

ښځینه مدرسه د لومړي ځل له پاره شیخ فیروزشاهي د ۷۵۲ ق = ۱۳۵۱ ع او ۷۹۰ ق = ۱۳۸۸ ع کلونو تر منځ په هند کې تاسیس کړه. ابن بطوطه لیکي:- (زه د هند هنور نومي کلي ته د خپ! سیاحت په ترځ کې لاړم، هلته مې د نومړي کلي نجوني ولیدلې چې قران او دیني علوم یې لوستل، تر داسې اندازې چې دیارلس ښځینه مدرسې هلته وې، (د ابن بطوطه سفرنامه، اردو ژباړه).

په بورما کې شیخ محمدیوسف کاکا سورتي لومړنی څوک و چې په (رنجون) نومي ښار کې یې د (مدرسه اسلامیه اینګلو و رینکولر اسکول) په نامه د یوې مدرسې بنسټ کښېښود.

او شیخ اسماعیل داود شاه مارکن مدراسي بیا لومړنی څوک دئ چې په (اکیاب عاصمه، اراکان المحتله) کې یې د (اینګلوورینکولر اسکول) په نامه یو اسلامي ښوونځی تاسیس کړ. (تذکره اراکان. ۹۳ مخ).

عادت داسې راغلی چې د علمونو مرکزونه تر زیاتي مودې وروسته له یوه ځای نه بل ځای ته لېږدېږي، د اسلام په لومړیو کې منوره مدینه د الهي علومو یوه ستره سرچینه وه، خو وروسته بیا دغه ویاړ د کوفې او بصرې په برخه سو او د علومو ویالې د همدغو ځایونو نه شپه او ورځ بهاندي وې، هلته هم تل پاته نه شوې، وروسته د دعوت او اسلامي ثقافت د خپراوي مرکز بغداد وګرځېد.

په کال ۷۵۲ ق چې کله اسلامي خلافت د بغداد نه رنګ سو، اسلامي کلتور او معارف د هغه ځای نه مصر، شام او هغوی ته څرمه سیمو ته لکه قاهره، اسکندریه، دمشق او حلب ته ولېږدېد او هلته په ډېره لږه موده کې زیات شمېر مدرسې جوړې سوې، چې اوس به په همدې لیکنه کې ورباندې ورغږېږو، د ښوونې او روزنې دغه لړۍ ترلسمې هجري پېړۍ پوري هملته روانه وه، د لسمې هجري پېړۍ نه وروسته د پوهې او دانش مرکز هند ته وګرځېد، هملته شاه ولي الله او شاه عبدالعزیز خدای دې ورباندې رحم وکړي، په ډېره پوره پیمانه د حدیثو او الهي علومو چوپړ وواهه، تر لږ مودې وروسته په کال ۱۲۸۳ ق د محرم الحرام پر ۱۵ نیټه چې د ۱۸۶۶ ع د مې د میاشتې د ۳۰ سره سمون خوري هملته د دارالعلوم دیوبند په نامه د یوې ستري مدرسې بنسټ کښېښوده سو، د دې نه شپږ میاشتې وروسته په کال ۱۲۸۳ ق د رجب المرجب چې د ۱۸۶۶ ع د نوومبر د میاشتې سره سر خوري هملته په هند کې یوه بله لویه مدرسه د جامعه مظاهرالعلوم سهارنفور په نامه جوړه سوه، د تاریخي پېښو لیدونکي په دې پوهېږي چې د دغو مدرسو څښتنانو او همکارانو په هر ډګر کې د

اسلام له پاره زيات خدمتونه کړي، هغه که د ښووني او روزني په برخه کي دي، که د اسلامي دعوت او د اسلام د خپراوي په ساحه کي او که د سياست په ډګر کي وي.

تر داسي اندازې چي دښمنان د دوی نه ډېر ترهېدل او د هغوی حضراتو په عالي خدمتونو يې اعتراف کاوه.

فضيلت الشيخ سيد رشيد رضا ويلي چي که چيري په دغه زمانه کي د نبوي علومو له پاره زموږ ورونه د هند علماء نه واى نو په ختيځو ملکونو کي خو به بيخي له منځه تللي واى.

په مصر، شام، عراق او حجاز کي خو د لسمي هجري پېړۍ راپه دېخوا په ديني علومو کي کمزوري منځته راغلي وه. او دا همداسي تر څوارلسمي هجري پېړۍ تر لومړيو پوري وغځېده. (مقدمه مفتاح کنوزالسنه).

اوس غواړم چي د هغو مدرسو نوم لړ وليکم چي يوازي په مصر، شام او شاوخوا سيمو کي جوړي شويدي:-

۱_ الجامع الازهر (د الازهر پوهنتون):- په دې کي شک نسته، چي نوموړی پوهنتون د دغو اسلامي مرکزونو په سر کي راځي او د پخوا نه لا د علم او اسلامي فرهنګ يو ستر نړيوال ښوونيز مرکز بلل کېږي، نوموړی پوهنتون فطميانو د څلورمي پېړۍ په دوهمه نيمايي کي منځ ته راوړ.

۲_ جامع العطارين :- په اسکندريه کي، هغه چي په کال ۴۷۷ ق کي امير الجيوش يا د لښکرونو امير بدر الجمالي يي بنسټ کښېښوده، وموړې مدرسه د صليبي جګړو او د هغه نه راوروسته وختونو کي د اسلامي فرهنګ او علومو يوه سرچينه وه.

۳_ جامع بني اميه :- په دمشق کي، نوموړې مدرسه په شام کي د نبوي علومو او ثقافت تر ټولو ستر مرکز ګڼل کېږي.

۴_ جامع حلب.

۵_ المدرسة النظاميه، په بغداد کي.

۷_المدرسة السيوفية للحنفيه _په قاهره کي نوموړې مدرسه سلطان صلاح الدين جوړه کړېده.

۸_المدرسة الفاضليه :- بنسټ يې قاضي فاضل (عبدالرحمن البيساني رحمة الله عليه په کال ۵۸۰ لېږديز کي کښېښود او دا يې د شافعي او مالکي مذهبونو پيروانو ته ځانګړې کړه.

۹_ المدرسة الصالحيه :- په قاهره کي، بنا يې ملک صالح نجم الدين ايوب په کال ۷۴۱ لېږديز کي کړې او د څلورو مذهبونو دفقهاء له پاره يې ځانګړې کړې وه.

۱۰_ المدرسة الصادرية للحنفيه :- په دمشق کي، دغه حنفي مذهبو ته ځانګړې سوې مدرسه شجاع الدوله صادر بن عبدالله په کال ۴۹۱ لېږديز کي تاسيس کړېده.

۱۱_ المدرسة انوريه الکبري للحنفيه :- دا هم د حنفي مذهبه مدرسه ده چي نورالدين بن زنکي يي په کال **۵۲۳** هجري کي بنسټ ايښی دئ.

۱۲_ المدرسة العزيزيه للحنفيه :- دا حنفي مذهبه مدرسه ملک افضل علي بن صلاح الدين پيل کړې او تکميلول يې د هغه ورور العزيز عثمان وکړه.

۱۳_ المدرسة الامينية للشافعيه :- په دمشق کي د دغي شافعي مذهبه مدرسې د بنسټ ډېره (تابک العساکر) چي په امين الدوله سره يادېږي په کال **۵۱۴** هجري کي کښېښود.

۱۴_ المدرسة العادليه الکبري للشافعيه.

۱۵_المدرسة الشاميه البرانيه للشافعيه.

۱۲_المدرسة العمريه للشافعيه.

۱۷_المدرسة الصلاحيه للمالکيه.

۱۸_ المدرسة الزجاجيه :- په کال **۵۱۵** هجري کي جوړه سوې.

۱۹_المدرسة العصرونيه :- چي په کال **۵۴۵** هجري کي يې بنسټ ايښودل شوی دئ.

۲۰_المدرسة الحلاويه للمالکي

يوازي په دمشق کي د شپږمي او اوومي پېړۍ تر منځ نږدې نيوي ۹۰ مدرسې د بېلابېلو مذهبونو د فقه له پاره جوړي سوي، چي تر ۳۰ ډېري يې يې حنفي دي او نږدې ۳۰ شافعي مذهبه، اته حنبلي او دوې پکښې مالکي مذهبه دي.

د نور ښه ترا شنني له پاره د (اللباب في الجمع بين السنه والکتاب) په نوم کتاب د امام ابي محمد علي بن زکريا المنبجي ليکنه ده، لومړی توک ته رجوع وکړئ.

دا د هغو مدرسو او اسلامي ښوونځيو نوملړ و، چي د مصر، شام او د هغوی خواوشا سيمو ښارونو کي سته، هغه چي د نړۍ په نورو ښارونو کي جوړي سوي يادونه يي په دې لنډکي ليکنه کي نه ځايېږي.

# ايلوس

## د فلوريډا په سلمانخانه کي مړ سو

لنډه کیسه

انګرېزي ليکوال :
Roger Din Kisser



ژباړن :
سعيد لودين/کاناډا

په لس کلنی کي ما ته هيڅ نه معلومېدل چي په ايلوس پرسلي کي هغه کوم راز و چي په موږ کي نه و. مطلب هغه يو سر، دوه لاسونه او دوې پښې درلودلې، عيني لکه زموږ غوندي. خو هر راز چي يې و ډېر ښه راز و، ځکه د يتيم خانې ټولي نجوني د ده په موټه کي وې.

د شنبې په سهار د نهو بجو و خوا ته مي پرېکړه وکړه چي د Correthen څخه چي تر موږ مشر و پوښتنه وکړم چي هغه کوم راز دئ چي ايلوس يې نامتو کړی دئ؟

هغه راته وويل : "دا د هغه نڅا او کاکلي وربښتان دي".

نيم ساعت وروسته د يتيم خانې ټول هلکان د دوډۍ خوړلو خوني ته ور وغوښتل سول او ورته وويل سول چي موږ به ټوله د ښار مرکز Jackson Ville ته ولاړ سو او هلته به وربښتان کوچني کړو او نوي تصواري بوټونه به رانيسو. دغه وخت و چي ما ته دا لويه نظريه را پيدا سوه چي که د ايلوس وربښتان د هغه لوی راز وي نو دا خو به زه حتماً تر لاسه کوم.

تولـه لار مـي پـه همـدې بـاره کـي خبـري کـولې چـي زه بـه د ايلـوس پـه څېـر ورېښتـان جوړوم. ما و تولو ته ويل په شمول د هغي ټاکلي زړې ښځي چي تل به يـې مـوږ و ښـار تـه بېولـو چي زه به داسي وايسم لکـه ايلـوس پرسلي. د هغه په څېر بـه زده کـړه وکـړم او يـوه ورځ بـه د هغه په څېر مشهوره او پيسه داره سم.

زه د نـوو نصـواري بوټونـو پـه رانيولـو ډېـر خوشحاله وم. ښه برېښندوکي بوټونه وه، او هغـه د X-Ray ماشين خو مي بيا ښځي خوښ سو په کوم کي چي به دې پښې ونيولې نو هډوکي بـه يې شنه معلومول. اوس نو زما ډېـر تلـوار و چـي څـه وخـت بـه زه ورېښتـان جـوړوم او پـه نـوي نصواري بوټو کي به په يتيم خانه کي د ايلـوس په څېر گرځم.

بـالآخره هغـي لـويي سـلمانخانې تـه راورسېدو چيري چي به يې زموږ ورېښتان مفت راکـوچني کـول، ځکـه مـوږ يتيمـان وو. مـا د سلماني و چوکۍ ته ور وځغستل. پـر هغـه تختـه کښېنستم چي د چوکۍ پر لاسـونو يـې ايښـي وه په دې خاطر چي يو څه پورته يـم، زما چـي لـه خوشـحالۍ څخـه موسـکه خولـه تولېـدلای نـه سوای و سړي ته وکتل او ورتـه مـي ويل :-

"زه د ايلوس پـه څېـر ورېښتـان غـواړم. تـه کولای سې د هغه په څېر ورېښتان راجوړ کړې؟"

ده په مهربانۍ راته وويل :-

"تـه ونيسـه کـوچنی ايلوسـه چـي لا څـه پېښېږي".

ده چي په ورېښتانو شروع وکړه زه نـور هـم خوشحاله سوم خو په دغه وخت کي هغـي زړې ښځي و سلمان ته پـه لاس د هلتـه ورتلـو اشـاره وکړه چيري چي دا ولاړه وه. دې په غوږ کـي و سلمان ته يو څـه وويـل خـو سـلمان داسـي سـر وښوراوه گواکي وايي چي : "يا _ نه !".

دا و يوه بل گردي سړي تـه چـي پـه دفتـر کي ناست و، ورغله او خبري يې ورسره وکړې. وروسته گردی سړی راغی او سـلمان تـه يـې يـو څه وويل. سلمان راته وويل چي مـوږ اجـازه نـه لرو چي د ايلوس په څېر ورېښتان جوړ کړو. هغـه د لاس د ماشين په سر کي د ږمونځ پـه څېـر يـو شی بند کړ چي کتل مي زما د سر تولـه ورېښتـان پر مځکه ولوېدل.

کله چي ده زما تول ورېښتـان راوخـرول او خوشبوداره پوډر يې زما په څټ کي واچول نـو يې يو ډالر راکړ او راته يې وويل :-

"دباندي د چاکلېټو ماشين ته ورسه او ځان ته يو چاکلېټ راوباسه".

ما ډالر بيرته ورکړ او ورته ومي ويل چي زما خوا ته نه کېږي. زه له چوکۍ څخـه را تـا کېـدم چي ده راته وويل:-

"ډېر وېښته نانيه !".

ما چي له سترگو څخه اوښکي پاکولې ورتـه ومي ويل :-

"زه کوچنی نه يم !" او پر مځکـه کښېنسـتم، له خپلو نويـو بوټونـو څخـه مـي ورېښتـان پـاک کړل.

زه را ولاړ سـوم خپـل کـالي مـي هـم لـه ورېښتانو څخه تکوهل او د دروازې خوا ته رهي سوم. زړې کونـډي پـه ريشـخندي موسـکا راتـه وکتل. هغه سړي چي زما ورېښتـان راخرولـي وه زړې کونډي ته ورغـی او پـه ډېـر قهـر يـې ورتـه وويل :-

"ته ډېره مرداره يې !".

کونډه و سلمان ته ودردېده او د دفتر خـوا ته رهي سوه. سلمان له درده دېـوال پـه سـوک وواهه او تر دوکان دباندي و دېوال ته ودرېدی چيـري چـي يـې تـل سـگرېټ څکـاوه. زه هـم دباندي ور ووتم او د ده و څنگ ته ودرېدم.

ده ما ته ومسل او په ډېره مهربـاني يـې زمـا پر خريلي سر لاس تېر کړ. ما پورته ورته وکتـل او ورته ومي ويل : "د ايلـوس هـم د پښـو هـډوکي شنه وه؟"

❀ اداره :-

## هنري فلم

# امانت




دکندهار لرغوني ښار

په اوسني عصر کي د ناخوالو، نشيي توکو او دغه ډول نورو ستونزو څخه د ټولني د خبرتيا له پاره يوه ډېره مؤثره وسيله د تلوېزيون پر پرده باندي د نومړو توکيو څخه د خلکو خبرول دي، پر پرده باندي د يوه شي ښکارول او د هغه په باب تبليغ کول، تر راډيويي خپرونو زيات تاثير ځکه کوي چي د راډيو له لاري تنها اورېدل کېږي خو هغه کسان چي د راډيويي خپرونو سره علاقه و... لري، کولای سي د تلوېزيون له پردې څخه په تصويري ډول د نومړو مضرو شيانو په باب ډېر ژر د هغوی د تاوان او هم د دغو توکيو د دنيوي او اخروي زيان په اړه ګټه پورته کړي.

په کندهار کي د نورو

ولایاتو په څېر د تلوېزیوني خپرونو، هنري فلمونو، د کوچنیانو له پاره د تفریحي او کارتوني سریالونو خپرول ډېر کم ښکاري، چې همدغه وجه ده چې د دې سیمي خلک کله نا کله د دغه ډول ستونزو په وړاندي بې خبري ښکاره کوي.

له نېکه مرغه د څو تېرو میاشتو راهیسي په کندهار کي ځیني شخصي هڅي په وجود راغلي چي د دغه ډول خلاوو د ډه ناڅه ډکولو له پاره کار وکړي، په دغه شخصي هڅو کي یو هم د عزیزي سینمایي خپرونو شخصي مرکز دئ چي ځیني هنري، تفریحي او انتباهي فلمونو په جوړولو بریالی سوی دئ، د دغه مرکز له لوري د تېرو څو میاشتو په جریان کي یو فلم د "امانت" په نوم د کندهار راډیو تلوېزیون په آمریت کي د علاقمندانو له پاره ننداري ته وړاندي سو، د نوموړي فلم اساسي موخي د مخدره موادو څخه مخنیوی او د تېښتوني د تاواني او زیانمن کار په باب د خلکو خبرول دي.

فلم د مرکز د مسئول هدایت الله عزیزي له خوا په شخصي مصرف او هاند و هڅه جوړ سوی، او د خپلي ټولني د دغو زیانونو څخه د مخنیوي په موخه ټولني ته وړاندي سوی دئ، د فلم سناریو، خپرول او لاربنووني ټول مصارف او زحمتونه په شخصي ډول

کښل سوي دي. ټول فلم د کندهار په ښاوخوا غرنیو او سرسبزه سیمو کي جوړ سوی، د فلم له پاره د موقعیتونو ډېر ښه انتخاب سوی، ځکه د دغه ډول پېښو له پاره همدغسي موقعیتونه ډېر برابر او په زړه پوري وي.

موږ د ښاغلي هدایت عزیزي له پاره په دې برخه لا ستري بریاووي غواړو، او دوی ته په راتلونکي هنري او تلوېزیوني کارونو کي بریالیتوب غواړو.










چلوونکی
طه
بهیر

عبدالمجید بابی

د علامه رشاد بابا د دوهم تلین په یاد

# د پښتون شمله

که سپړنه د رشاد کړو
په خلاص لاس له هره لوري
له همدې څلورو تو
د روښنا تاپي را اوري

د (رې) توری یې په سر کې
د رنګونو یو جهان و
خره مخکه ورته خره
او تصویر یې پر اسمان و

د پوهانو په قطار کې
په څرګنده یو ولي و
د ایمان په څېر سپېڅ
د سپېڅلو په سیالي و

عقل و فکر یې په سیل وه
د پوهانو سرغنه و
چارچاپېره دې مهال کې
همدا دی پر زمانه و

د څراغ غوندې په ځل و
د رونا یو سېلاب و
د تیارو په دې ماحول کې
هم سحاب و هم شهاب و

او په (ش) کې یې یو شور و
د بقا راز پکښې نغښتی
دا چې پوهي ته ساقي و
د ښکلا راز پکښې نغښتی

د لارورکو مسیحا و
او د پوهې رڼ سحر و
که یې فکر اباسین و
په لیکنې د سلېمان غر و

هم پښتون هم پښتونخوا و
هم شمله وه د پښتون
که و نن ته خوند او رنګ و
هم رڼ لمر و د پرون

د تاریخ د پاڼو پلار و
د ادب د ډګر څلی
که تحقیق و که تخلیق و
هر یو ده تر لاس نیولی

د (الف) نړۍ یې بېله
یو ورکړه د مولا وه
د مولا خوښي یې
هر ګړي ته مشغولا وه

دا چې هسکه ککرۍ یې
تیټه نه سوه تر ابده
دا کاته د کردګار وه
چې یې پت ته‌ر و له حده

که یې څار د حقیقت و
دا یې ژوند دا یې جوهر و
د اصیلو برخه داسې
په یوه قلم رهبر و

که په پوهه کې مخکښ و
د تقوا ښکلی تصویر و
صفتو کې که لاهو و
هم یې ده پسې تکبیر و

او که (دال) ته په کتو سو
خدایږو بل ډول ایوب و
که هغه د میوند ستوری
دی هم ټولو کې محبوب و

د دلیل پر تخت سلطان و
د علمي مرکو پیر و
هم په پرېکړو کې لاربنود و
هم دې چارو کې قادر و

دا څښتن د کمالاتو
نن زموږ له منځه تللی
ژوند یې وباخښه ولس ته
ګوندې رب وي نازولی

دا د ده د جمال زور دئ
چې "بابی" لا په روښان دئ
ورته غوارم جنتونه
دا مې تل د زړه ارمان دئ



د ښاغلي بابي نوموړی شعر د علامه بابا د دوهم تلین په غونډه کې واورول سو.

عبدالقديم پتیال/کندهار

## ستا شاعر

ستا شاعر نور هغه پخوا غوندي ځواني نه لري
هغسي خروښ او د ځوانۍ تکه مستي نه لري
د پرش کلنۍ ته به سبا او بل سبا رسېږي
هم يې د سر ظالم وربښتان کرار کرار تويېږي
له نا اشنا وهمونو رېږدي په يو کنج کي غلی
نور د يارانو له تاوده بانداره ليري تللی
نور يې هغسي کيف په دېغ[1] به خندا کي نسته
د زماني خوښۍ يې نور په شاوخوا کي نسته
نور يې د سترګو د نغري د اور لمبې خاموشي
نور يې د بندري ځوانۍ مستي آوازې خاموشي
نو ګراني ستا شاعر ازل ته تسليم سوی دئ نن
د خپل نصيب په تياره کور کي مقيم سوی دئ نن
ورځه پر پاک رب دي سپارمه ځه په مخه دي ښه
توره دي تل رخصتومه ځه په مخه دي ښه
زما و ستا لاري بېلي بېلي تور قسمت تاکلي
ځکه يې دېر عمر يو، دېر ' ېري يو بل ساتلي
ښايي قبوله به دا نه وه چي لار مو يوه وي
د ژوند سفر مو تر ابده پر يوه جاده وي
ګراني ورځه راتلونکي ژوند دي په خوښيو تېر کړه
نور نو شاعر، د شاعر رنګ، د شاعر خوی تېول هېر کړه
پام چي شېرين ژوند په غم او اندېښنو تېر نه کړې
پر نازولي زړه د ګروم دغه دروند بار دېر نه کړې
پام چي يوه اوښکه دي مخ باندي راونه څاڅي
پام چي د آه دېغ دي له خولې څخه راونه پاڅي
دغه کارونه ته يوازې ستا ' شاعر ته پرېږده
ته دي پر خپل زړه باندي نور يوه غټه تيږه کښېږده
دا به تر مرګه په جنون او په مستۍ تل پالي
يو بغاوت دئ چي زندان او پنجرې ماتوي
د ژوند ساړه په خپل ياغي، بې پروا تاو تودوي
بله ستا مينه ده چي مله يې ده تر ګوره پوري
دا رسوونکې د شاعر ده تر يو شوره پوري
نو ګراني ته نوره ښغمه پر خپل لوري ورځه
تر خپل ژوندون، تر خپل برخليک، تر قسمت پوري ورځه
ورځه پر پاک رب دي سپار[illegible]ه په مخه دي ښه
توره دي تل رخصتومه ځه په مخه دي ښه

## د سعيد لودين دوه شعرونه

### غزل

تور لري سپين لري خو سترګو کي هيڅ څير نه لري
دلته وګړي د سره هار او مار توپير نه لري
د شپې خورک کړي او د ورځي يې څوک نه پېژني
د دغه کلي آدم خور د ښښو ځنځير نه لري
کلونه وسول خدايه دې کاروان منزل ونه موند
هسي خو نه چي هوسا ژوند ورته تقدير نه لري
چي مومنانو اقتدا پسي کول د هغو
پر شونډو ته يې خو په زړو کي ستا تصوير نه لري
هر څو که ښکلي سي سعيده دا پردي ملکونه
مينه، تهذيب، غرور، مړانه د پامير نه لري

### زه لېونی نه يمه

زه چي په تورو تاريکو کي تنها
له خپله ځانه سره
و لېونو په شاني وګړېږم
زه لېونی نه يمه
زه چي همرازه کړم د سترګو تياره
باران د اوښکو سمه
خو د سېراب له پاره
په لپو جوړو لاسو
د ناديده سراب نه
د يو غړپ تمه لرم
زه لېونی نه يمه
لېونۍ سترګي د هوسيو په څېر
په ساه شړلو اوړو
د مرګ په خوله کي د ژوند ساه لټوي
زړه مي اشنا لټوي
زه لېونی نه يمه
خو زه
خو زه پوهېږم
چي و چا ته ګډ يم
په تورو شپو کي چي
هيڅ چا ته ګډ يم

## اوښکه

نسيم لکه وږمه د پسرلي
د زړه له ميني د احساس له کوره
چيرته چي مينه اوسي
چيرته چي ټول ښکلا ښکلا غواړي
له داسي کلي څخه
په څومره ناز او په ادا باندي
ستا تر جهانه راغلم
زه د سپېڅلي عشق استازی راغلم
د عشق ټولواک د يو ښکلا په لټه
زه دې جهان ته په زارو لېږلی
لکه شبنم د اغزو کلی مي تر پښو ايستلی
ستا د گلاب غوندي رخسار په تمه
ما د بڼو غشو ته تن ورکړی
خو ستا پر مېنه باندي
گله چي ما وليدل
څومره جفا څومره کينه کرلې
گرانه زه وډارېدم
زه خو يې زغم نه لرم
گله اوبه اوبه سوم
په روڼ تابوت کي د لېمو پر اوږو
ستا تر مالت به تېر سم
افسوس چي ما په ژوندون
گرانه وصال ونه موند

## غزل

خولگی دي راکړه گله اوس مي زړه بل څه نه غواړي
زه چي راځم څه د اغزو جنگ خو مي زړه نه غواړي
نوی زلمی يمه د ميني مي بس دومره زده دي
د شوخ نظر په لاسو قتل دی وسله نه غواړي
د تورو زلفو په ناڅاپه غـ ځنگ لولپه سوم
مار چي وهل کړي نو له چا نه اجازه نه غواړي
مه گڼه ما زاهدانو په خوله هېره کړله
هوښيار خو چيري له بزدلو مشوره نه غواړي
لکه بورا تازه رخسار پسي دا ځکه گرځم
ناولي مخ څخه "ثنا" کله هم خوله نه غواړي



## د ستومانۍ شپه

ما له اړيه د سرو وينو اشنايي کړېده
ما د ويرونو او گرومونو شاعري کړېده

ما د ژوندونو گړی گړی ستا تر نامه جار کړی
ما ځکندن کي ستا د ژوند دوعا په زگېروي کړېده
دا زما له گرالبو که لاسونه د خزان جاروتي
تا ته مي هيله د سرو گلو د پسرلي کړېده
ما که برخليک د ماښامونو تر سياه چاله بيايي
تا ته مي خدايږو د زړه ارگ کي مهماني کړېده
دا چي د وخت نظري سترگو څملولی نه يم
د ننگ پر اور مي شنه دوده د سپلني کړېده
هر څه که ولاړه مچوم د دار رسۍ په شونډو
د کربلا پر ډاگ مي ژمنه پښتني کړېده
نړی به وواييه چي دا د منصور ورور وگڼۍ
د دار عظمت مي د هغه د دار سيالي کړېده

ما چي دا ستا کيسه راوړه له ليري ليري دلته
د ستومانۍ شپه مي په څنگ کي د "بابي" کړېده

عبدالله پيکار / کابل

## غزل

اوس هم زه شاعر يمه د حسن شور و شر لرم
اوس هم د جذبو د تکلم هغه هنر لرم
اوس هم د ارمان او د هجران په جزيره کي يم
اوس هم د سلگيو د سندرو سمندر لرم
لا په کائنات کي د خپل ځان په لټه گرځمه
لا هم د خالق په لوري داسي ستر سفر لرم
لا زما په ستوني کي ژوندی د بغاوت چيغه
لا هاغه قاضي، هماغه دار هغه ممبر لرم
لا هم د تېپې او د بنگړيو شرنگ ته ناڅمه
شکر چي ملنگ يمه نه سيم لرم نه زر لرم
ما ټول موسمونه په دا خپل زړه کي کرلي دي
زه په ښار کي هم د کلي ښکلي ماړيگر لرم

د احسان الله درمل دوه شعرونه

## د علامه رشاد بابا د دوهمې تلین په یاد

ګــوره پښــه نیــولې ده تمامــه زمانــه دلتــه
پټــه ده تــر خــاورو لانــدي لویــه خزانــه دلتــه

ایښــې د عرفــان تــږیو تــه مستــه میخانــه دلتــه
هــره ذره ښکـــاري د رازونـــو پیمانـــه دلتـــه
مــرګ د ژونــد لــه غــاړي ده شکـولې دُردانـه دلتـه
ایښــې د جنــت د بــاغ بلبــل ده اشــیانه دلتــه
ځــان لــه خــاورو کښتــه ګڼهي ـبر د فرزانـه دلتـه
پــروت دئ د وطــن د مینــي داســي دېوانــه دلتــه
ښخــه ده د عشــق د شــمي ســوې پروانــه دلتــه
جــوړه ده د څــومره پتنګـــانو اســـتانه دلتـــه
بــس د آبــادۍ پــه خم کــي رنــګ دئ ویرانــه دلتــه
رنــګ لــه حقیقتــه اخلــي هــره افســانه دلتــه

ایښــې د الهــام تیــر تــه درملــه ! نښانــه دلتــه
ځمــه او راځــم هســي د دوعــا پــه بهانــه دلتــه

## غزل

څــومره چــي تــر تــا لاري روښــاني دي هــواري دي
هــومره قــافلې پــه شپــو کــي ورکــي دي بې لاري دي

تولــه شپــه مــي زړه د یــار پــه لاس لکــه چمبــه وهــي
ســترګي لېونــۍ دي څــه کــافري ســندرماري دي
هیلــو مــي ښکــالو ده اورېــدلې ستــا د خیــال د پښــو
اوس لکــه د ســتوریو ســترګي تو ـ، شپــه بیــداري دي
ژړي زرغــونې دي خوښېــدې چــي تــه ماشــومه وې
راســـه د ویشـــتلي زړه مـــي بیـــا وتلـــي داري دي
بیـــا زمـــا شـــاعره نغمـــه ګـــره یـــاره راســـه لـــږ
چیرتــه ورک یــې شــور دي نستــه چیغــي دي کــراري دي
خدای خــو دي راپېښ کــړه د ښکــلا د پســته اور طبیــب
نــن ســبا مــي ډېــري د غــزل غوټــۍ بیمــاري دي

کــانې دي درملــه د بــې ذوقــو پــه لاســونو کــي
پــټ ګــرځم لــه تــا ســره د خیــا‍ ـنې هنــداري دي

احمد صمیم

## د اوښکو شپه

شــپې د ظلمــت لمنــه ورو ورو ســمول ســمول
د مــائیګر پــر لــڅ بــدن یــې غــوړول غــوړول
د ستورو شمېر لکه یاجوج او د ماجوج پــه رنګــي
د شــنه اســمان لــه کــوه قافــه راوتــل راوتــل
ســپوږمۍ د شــرم حجابونــه لیــري وغورځــول
پــر لڅــه خېټــه پــه فضــا کــي خوځېدل خوځېدل
د غالمغال ستونی هم ډک سو د سکوت پــه ګولــه
د خاموشــۍ موجونــه ورو ورو خپرېــدل خپرېــدل
شپې د سفر موزې پــه پښــو کــړې پــه مزل ســوه رهــي
د تــورو غــرو تــر ښــدرونو تېرېــدل تېرېــدل
سپوږمۍ یې هم په ځان پسې کړه تر یو لیري ځایه
څــو چــي ســرحد تــه د مغــرب ورسېــدل رســېدل
نو صبحدم سترګي را روښي کــړې لــه خوبــه ډکــي
د کهالــۍ تــوره جامــه یــې غورځــول غورځــول
"صــمیم" تــر هغــه وختــه پــټ ژړل لــه ځانــه ســره
د قلــم څوکــه یــې پــه اوښکــو لنــدول لنــدول



احسان الله جرس

## د علامه رشاد بابا د دوهم تلین په یاد

### وختہ !

زمــوږ رشــاد دي رانــه واخیســتی تــا لمــر واخیســتی
وختــه پــه څــومره نــاځواني دي دا ســحر واخیســتی
هغـــه د علـــم او هنـــر لـــه ښـــاره و راغلـــی
هغــه چــي زمــوږ و ډېــر پــه کــار تــا هغــه ســر واخیستی
چـــي قـــدمونو یـــې لار ورکـــو لـــره لاره ښـــودل
تــا خــو د ســتورو د کــاروان هغــه رهبــر واخیســتی
مرګیــه ! څــومره دي پښتــو لا نــوره خــواره کړلــه
د زهــرو جــام دي راکــړ تــا رانــه کــوثر واخیســتی
زمــا "جــرس" ملــت تــه غرونــو غونــدي غــم دي ورکــړ
تــا زمــا پیــر، زمــا اخونــد زمــا قلنــدر واخیســتی

حیات الله رفیقي

د علامه رشاد بابا د دوهم تلین په یاد

## وېرنه

د پېر سرونه راهسک سوي له دې خاوري
تاریخي قهرمانان يې لاري څاري
هره برخه کې پراته ستر انسانان دي
څوک رزمیان، څوک عالمان او هم غازیان دي
داسي د پېر ښاغلي ولاړل خو یادېږي
قلموال او توروزنان کله هېرېږي
دا لړی په هڅېدو ده نه درېږي
ځیني نن ځیني سبا هلته لېږدېږي
یادومه یو ښوونده ستر انسان
شپږم ستوری و ځلانده پر آسمان
د پوهانو د سرول دئ دا ښاغلی
دلته پروت په خپل اجل دئ دا پیاوړی
ده به تل مشکلي چاري په خپل علم ژر سهلې
د رڼا مشال په لاس کې توري لرې ورکولې
د وقار سره بې ملا خندا د ده وه
استغنٰی يې په مانا کې نهفته وه
فصاحت يې د کلام ښکلی انځور و
بلاغت يې د مضمون روښانه نور و
طامع نه و چې یو چا ته لاس ور اوږد کړي
نه غوښتونکی د دولت و چې ځان روږد کړي
پوهاندي يې وه د علم ځواک ګټلې
اویا کالې د دانش مزه څکلې
د مادي ګټو څه ګوره لاس پر سر و
هر پېژاند او ناپېژاند د ده پسر و
ښو تې ښه او بد يې بدو ته ویله
بې ریا يې حقیقت تر خوله ختله
سر يې ټیټ نه کړ جابرو ځواکمنانو
نه يې اېل کړ په دولت ها زورواکانو
چې مدام يې و ارشاد دغه رشاد و
ورکوونکی د فساد دغه رشاد و
څوک چې یاد کړي د وطن وتلي خلک
نو به دوی سي د هیواد ښاغلي خلک

دا پیاوړی ستر استاد به مې هېر نه سي
بل لاربښود د قافلې به مې مېر نه سي
نن راپاته ستا د هیلو یو ارمان دئ
هر دېوان دئ سمندر غوندي عیان دئ
ډېوه تا وه ښه په زغرده لګولې
توره شپه دي په سپېدو کي وه چاودلې
د ظلمت تیاره ګوټونه دي روښان کړه
څه د پاسه سل لمرونه دي تابان کړه
ته مایه د اخوت او د وحدت وې
هم مین د خپل هیواد پر حریت وې
دغه یون دي د سمون راسره مل دئ
ستا پر لاره مې هوډ کړی دا تکل دئ
نن چې څوک ایږدي ګلونه ستا پر قبر
خدای دي ورکړي په دارینو کې ښه اجر
رفیقي يې په قلم انځوروم دا مې بیان دئ
په ژړا يې یادوم ډېر مې ارمان دئ



عبدالصمد ستري

## غزل

چې د عشقه مې زړه نوی اثر واخیست
چې په بیه مې د سر دغه در واخیست

د فلک له ډېره ظلمه مې زړه ژاړي
اور لړوني کار يې زما د سر واخیست
دا دنیا نن راته بل رنګه ښکارېږي
چې په مینه کې مې زړه لر او بر واخیست
چې غلط مې پوهوي څه راته وايي
رقیب زما و مرګ ته نوی خنجر واخیست
بدخواهانو ته به څه نصیحت وکړم
چې پر سر يې د بدیو دفتر واخیست
چې يې سپینې شغلې ټولې جهان ونیو
چې بستر نن و اسمان ته قمر واخیست

چې اشنا مې سو غایب او زه اظهار سوم
نو مې ځان ته نن لقب د ستر واخیست

حاجي غلام نبي سعيد

## د ځواني خاطرې

په ځوانۍ کې مې درلودې ښه دوران
معشوقه به راسره وه په هر آن
آبرو مې درلوده لکه شبنم
په راتګ به مې تازه سو ګلستان
چې به ورغلم و کور ته په ډېر ناز
راته کښېښول شاته بالښتان
يو له بله مو کتل په محبت
خوند يې ډېر کاوه رشتيا و سره ګران
په وصال کې وم خندان لکه سحر
خبر نه وم چې شپه څه ده د هجران
زما کلا ته بېلتون هيڅ نه سو راتلای
په هر کونج کې يې ولاړ و يو پاسبان
نېکمرغي وه مېلمنه زموږ د کور
پر خپل بخت به چلېدی زما فرمان
ناببره تکه راغله پر دا سر
پر ګلشن مې باد راوالوت د خزان
محبوبا مې له دنيا وکې رحلت
زه سوم پاته په دې وير کې سرګردان
اوس مې سر سو پر ډبره برابر
تر دې مخکې پوست مړوند و د خپل ګران
پخپل ځان باندې غاښونه لګوم
و دې کار ته مې حيران دې لېونيان
پروت په ځای کې يم يوازې يکتنها
بېروي مې شپې په خوب کې پېرانيان
که هر څوني تسلا د ځان کوم
په هيڅ شي باندې مې نه کېږي توان
چې اورښت درباندې اورې په بار بار
زما له اوښکو څه جوړ سوی دئ باران
بيا به رانه سي پر تاسې وچکالي
د محبوبې پر مرګ ټل ژاړي اسمان
په پوهېږم دا فلک دئ کج رفتار
د هيڅ چا پکښې ونه ختې ارمان
ته شاعر کړلې سعيده دغه غم
نو انځور که په غزل کې خپل بيان

مېرمن کوکو رشاد بری

## د علامه رشاد بابا دوهمه تلينه

د استا په ياد به هميشه دغه دردونه ليکم
و سپېرو خاورو ته دې ناسته يم ګلونه ليکم

زه لا اوس هم ستا ښايستو سترګو کې مرادونه وينم
لا دي د زړه هغه خواږه خوږه يادونه ليکم
لا دي و څنګ ته ناسته يمه د پخوا په شاني
په مات قلم په ګونګۍ ژبه څه رازونه ليکم
د اميد سترګې مې تر اوسه لا کږې دي تا ته
هر دم مې زړه کې يې تل تا ته پيغامونه ليکم
زما ډېوه، زما مشال زما د ژوند طمعه يې
پر خپل زړګي دا ستا د ياد ښه تصويرونه ليکم
زما په غوږو کې آزانګې د محبت لا ستا دي
سوې سينه کې مې و تا ته ګلابونه ليکم
تا خو زه هېره کړم حوري ستا و څنګ ته ناستي
زه په ژړاندو لېمو اوس هم دا شعرونه ليکم
ما تولي شپې په دغه طمعه تېري کړلې ګوره
کله به وايې تا ته زه داسې ليکونه ليکم

دعوت نامه به رالېږې راته به ليکې پلاره !
ژر دې راغواړم زويه تا ته دا خطونه ليکم

پيرمحمد کاکړ

### غزل

ما له ياره سپينه خوله په خندا غوښته
دې له تازه د غوټۍ په دود ونغښته
حال د زړه به مې مدام ورته تحرير کړ
که دلبر نه وای خبر له دې خواهښته
محبوبا پر بستر واوښته له خوبه
که هوسۍ وه د بهار پر ګلو رغښته
کښت د عشق مې شو زرغون په خراب دل کې
په هيڅ وخت يې نه خلاصېږم له کاهښته
رب دې نه کړي چې جمال به يې زه هېر کړم
که تر سر لاندې مې کښېږدې د ګور خښته
سپين مړوند د دلربا که مې سر وېږد شي
سر به هسک نه کړم د وصل له بالښته
و هر چا ته چې حجاب خپله هستي شوه
پيدا مه وای "**پيرمحمد**" د چا له پښته

❁ عبدالنافع ثنا

# اختناف

لنډه کیسه

د ښوونځي له رخصتېدو څخه ښه ګړۍ تېر سوې و، مور یې د مشال او جمیلې له پاره د غرمې ډوډۍ چمتو ایښې وه. خو د هغوی د ځنډېدلو له امله په قار وه، خو اندېښنه یې ځکه نه درلوده چې هغوی پخوا هم څو ځله داسې ځنډېدلي وه. یې لامل به یې پر لاره د دوی شوخي او یا بل څه و. ساعت دوه تېر سول، خو د هغوی درک نه سو معلوم، دا وخت یې نو مور پلوشه دومره په غصه وه چې غصه یې په اندېښنه بدلېده، کله به کېښنسته او کله به ولاړه سوه. کله به یې خپله په وره کې د کوچنیانو د راتګ په هیله کتل او کله به یې د ګاونډ ماشومان د مشال او جمیلې په لټولو پسې استول.

پلوشه په کور کې یوازې وه، د هغې خاوند ناصر به سهار تر لمر راختلو وړاندې له کوره ښه لیرې خپلې هټۍ ته تلی او هلته به یې د هټۍ تر پاکولو او ترتیبولو وروسته تولو ورځ خپله خواري کښل. پلوشې او خاوند یې له خپلو دوو ماشومانو سره یو ساده خو خوشحاله ژوند تېراوه.

اوس نو مازیګر و خو کوچنیان لا کور ته نه وه رسېدلي. نور نو زغم د پلوشې تر واک ووت. خپله شنه هراتی چادري یې پر سر کړه او د ګاونډیانو کره ورغله او هغوی ته یې د کوچنیانو د نه راتګ خبره وکړه. د کور مېرمنې خپل زوی زلمي ته و ږغ کړه او ورته یې وویل چې خپل بایسکل له ځانه سره رهي کړي او د ماشومانو په ښوونځي کې د مشال او جمیلې معلومولو تر څنګ یې پلار ناصر ته هم خبر ورکړي.

زلمي همداسې وکړه او ښوونځي ته ولاړ، خو دا مهال د ښوونځي ور تړلی و، مګر زلمي باید له بشپړو معلوماتو سره کور ته تللی وای، نو یې د ښوونځي ور وټکاوه، خو د ور پرانیستلو ته څوک نه راغی، یو ځل یې بیا دروازه وټکول او بالآخره درېیم ځل یې په ټینګ ځواک وټکول څو یو سپین ږیری چې سترګې یې هم له خوبه موړلې، ور پرانیست او په قهرجنه لهجه یې زلمي ته وویل :-

_ "څوک دي په کار دی؟"

_ "وبخښه کاکا ! دلته دوه کوچنیان مشال او جمیل د زده کړې له پاره راځي".

_ "نو څه وکړم؟"

_ "بخښنه غواړم، تاسو پوه نه سواست، نن هغوی له ښوونځي څخه تر اوسه کور ته نه دي ستانه سوي. ما ویل که تاسو ته یې پته وي".

_ "ماته یې نو څه پته ده، ټول ماشومان سهار راځي او غرمه ستنېږي، زه په چا څه خبر یم".

_ "کاکا بخښنه غواړم".

د زلمي د دې خبرو تر اورېدو وروسته سپین ږیري دروازه وتړل او زلمي هم پر خپل بایسکل ښه راواړول او د کور پر لور ناهیلی را روان سو.

پر لاره بالدي که ګوري جمیله د یوې هټۍ مخې ته ناسته ده او له ډېري ژړا یې مخ تک سور دی. زلمي هم ور وګرځېد او دوکاندار ته یې د ځان له وریېژندلو وروسته پر جمیلې ږغ وکړ. هغې د زلمي په لیدلو لږ حوصله وموندله او ورته یې په ژړغوني ږغ وویل :-

_ "مشا ... مشال یې بوتی".
_ "چا بوتی؟"
_ "هغه سپیني سراچې والا، ما پسې وځغستل خو هغه موټر وځغلاوه".
_ "تا به خلکو ته نارې وهلي وای".
_ "ومې وهلې هغوی نه اورېدې".

هټي وال هم له نوري پېښې ځان ناخبره وښوده او ویې ویل چې دا نجلۍ یې دلته د ژړا په حالت کې وموندل. زلمي سمدلاسه جمیله پر بایسکل سپره کړه او کور ته راغی.

اوس نو د ماښام لمونځ پر قضا کېدو و. پلوشه د کور په وره کې د زلمي او ماشومانو په انتظار ولاړه وه. کله چې زلمي د کوڅې په سر کې رابښکاره سو نو د هغه و شا ته د یوه بل چا د پښو په لیدلو یې زړه له خوښیه ټوپ وواهه. کله چې زلمي راورسېد، پلوشې جمیله په غیږ کې ټینګه کړه او مچ یې کړه، خو ژر یې پام سو چې مشال ورسره نسته. له زلمي څخه یې د هغه پوښتنه وکړه، زلمي هم بشپړه کیسه ورته وکړه.

دا ګړی ناصر هم راورسېد. د پلوشې د ژړا په لیدلو هک هېښ سو او پوښتنه یې ځني وکړه. پلوشې د مشال د ورکېدو ورته وویل.

ناصر چې له وړاندې له هټي څخه سخت ستړی راغلی و، د دې خبر په اورېدلو ډېر اندېښمن سو او پر تندي یې خولې راماتې سوې. سمدلاسه یې زلمی له ځانه سره ملګری کړ او د پولیسو نژدې ماموریت ته یې خبر ورکړ. له دې سره جوخت د ټولو خپلوانو کور ته په دې ګمان چې په هغوی کې به چا بېولی وي، ولاړ او هلته یې د مشال پوښتنه وکړه، خو نه یې وموند. زلمي وویل چې راډیو ته به ولاړ سي او هلته به د مشال د ورکېدني اعلان خپور کړي څو که د چا تر سترګو کېږي، نو سمدستي به پولیسو ته خبر ورکړي، ناصر ورسره خوښه کړه.

تر نیمې شپې پورې ناصر او زلمي د مشال د موندني په هڅه وکړه خو ناهیلي یې په برخه سوه.

په دې ترڅ کې درې څلور ورځې تېرې سوې. پلوشې به ټوله ورځ ژړل او یا به یې د مشال دموندلو له پاره دعاوې کولې او نذرونه به یې منل. ناصر به تمامه ورځ په ښار کې د مشال له لټه ګرځېد او د پولیسو په ماموریتو کې به یې د مشال پوښتنه کول، بالآخره د ماموریت یوه ساتندوی په یوه کرکجنه لهجه ورته وویل :-

_ "ته څه هر ګړی را روان یې چې پیدا سو، مور به حال درکړو، نور دلته مه راځه".

د ناصر زړه کله کرارېدی.

څلرمه ورځ د ناصر پر ټلیفون چې شمېره یې دمشال د ښوونځي په کتابچه کې لیکلې وه له یوه ناڅرګند ټلیفون څخه زنګ ووهل سو، ناصر ټلیفون واخیست او ویې ویل :-

_ "بلې، بلې، اورم، خبري کوه، هو ناصر یم. مشال؟ مشال زما زوی دئ. هغه اوس چیري دئ؟ ته څوک خبري کوې؟ څه؟ مشال اختطاف سوی دئ. ښه غوږ مي دئ، څو؟ ګوره وروره ! زه غریب سړی یم، دا ته څه وایې؟ بلې ! ته زما خبره واوره. سمه ده ته چې هر څه وایې، زه هغسې کوم خو ګوره په مشال څه ونه کړې، هغه زما یوازینی زوی دئ، چیرې یې دروړم؟ څه وخت؟ سمه ده. زه به بشپړ کوښښ وکړم".

په دې باندې د ناصر اندېښنه زښته زیاته سوه. د مشال تښتوونکو ورڅخه د مشال د خوشي کېدلو په بدل کې د څو لکو افغانیو غوښتنه کړې وه. هغه دا ګواښ هم کړی و چې که تر ټاکلي مودې پوري یې پیسې برابري نه کړې، نو د مشال د بدن غړي به یو په بل پسې پرې کوي او ورته رالېږي به یې.

ناصر پلوشې ته دا خبره وکړه. هغې هم په ډېره بېړه او خوښي خپله د زرو ګوتمۍ، باهو، والي او آن د پزې ټیک ورته ورکړل څو خرڅ یې کړي او د مشال د تاوان پیسې په برابري کړي. ناصر زېور ښار ته یووړه خو زرګر یې بیه ډېره ټیټه ورته وویل، چې ده هم مجبوراً په همهغه بیه ورباندي خرڅ کړل. د دې سره سم یې له یو لوی هټي وال سره چې ده پېژندی، خبري وکړې څو د ده د هټي توکي ورڅخه رانیسي. د دې هر څه په خرڅولو بیا هم د مشال د تاوان پیسې نه سوې برابري.

ناصر بله څنډه د یوه سوداګر کورته چې په پټه یې د یوې قاچاقچي مافیا غړیتوب هم لاره او ده پېژندی، ورغی څو له هغه څخه پاته پیسې په پور واخلي، هغه ورته له جیبه د ډېرو لږو پیسو په را ایستلو وویل :-

_ "دا پیسې په خیرات کې واخله او په مخه دي ښه. نور مي مه په عذابوه".

ناصر نهیلی راووت او په دې چرت کې سو چې کوم بل چا ته د دې پیسو د تر لاسه کولو له پاره ورسي. د خپلو څو خپلوانو کور ته ولاړی خو ټولو نهیلی کړ.

بالآخره د خپل یوه پخوانی ملګري کور ته چې مزدورکاري یې کول ولاړ او له هغه څخه یې د پور د پیسو غوښتنه وکړه. هغه ورته وویل :-

_"ملګرې ! زه پوهېږم ته په ډېر سخت حالت کې راګیر یې، خو زه به هومره کومک ارومرو درسره کوم څومره چې زما په وس پوره وي، زما مېرمن څه اندازه زر لري او له ما سره څه نقدي پیسې پرتې دي، دا دواړه به ستا په وړاندي کښېږدم".

ناصر په خوله مننه نه سوای څني کولای او دا کار یې د څو ځاځکو اوښکو تویولو له لاري وکړ.

په دې ډول ناصر وتوانېد چې د تښتوونکو غوښتل سوي پیسې ورته برابري کړي. له دې سره سم یې پر ټاکلي وخت پیسې په هغه ځای کې کښېښودلې کوم چې تښتوونکو په تلیفون کې ورته ویلي و. ناصر دا خبره پولیسو ته هم وکړه او له هغوی څخه یې وغوښتل چې د پیسو اخیستلو پر مهال د مشال د تښتوونکي ونیسي. د پولیسو مشر چې خپله هم د نشې په حالت کې و، دوو تنو څملاستو پولیسو ته چې هغی هم نشه وه، رغ وکړ څو د دې کار له پاره ولاړ سي. تښتوونکي په خورا ګرندي ډول په خپل موټر کې راغله، لومړی یې یو تن ورو ورو راکښته سو او د پیسو بکس یې واخیست او کله چې بیرته موټر ته نژدې ورسېد، نورو ملګرو یې په بېله مشال له موټره راخوشي کړ، او د موټر دروازې یې وتړلې. دا ګړی پولیسو پر تښتوونکو باندي ډزې وکړې خو هغوی په تېښته بریالي سول.

مشال پر مځکه ولوېد او پلار یې د هغه پر لور ور وځغستل. کله چې یې راپورته کړ، د هغه ټول ځان په وینو کې لژند و. ناصر هغه په وارخطایي باندي سره واړاوه، څو آخر یې ولیدل چې د مشال په نس کې ګولی لګېدلې وه، روغتون ته یې لا نه و رسولی چې مشال د ژوند آخري سلګی ووهل.



عبدالهادي ریشا/کراچي

# قلم

که قلم په ونه خورا کوچنی، ضعیف، وچ کلک او ډنګر معلومېږي، رغ یې تر خوله نه راوزي، خوله یې پټه نیولې ده، مګر په دې پټه خوله په نړۍ کې د هر قوم سره د هغوی په ژبه خبري کولای سي. هر څه ویلای سي هر څوک پوهولای سي.

قلم په نروځکي بدن د لکو غوایانو زور لري او د هر چا د هر کار تمام دئ، و دې کوچنی ډنګري ونې ته یې مه ګورئ.

هو ! قلم وړوکی دئ، خو ډېر لوی لوی او درانه کارونه او بارونه تر مزله رسولای سي.

مثلاً په جهان کې د ټولو انکشافاتو، پېشرفت، تکنالوژۍ فارمولې او اساسات د قلم په نوک لیکل سوي دي، بیا یې درنې او لویې الوتکې په هوا کړي دي، دا دئ د ده یو زور.

په نړۍ کې د ټولو علومو د کتابو لومړۍ نسخې د قلم د نوک تر شونډانو وتلې دي. د زرو کالو تاریخي پېښې د قلم په واسطه تر دې زمانې و موږ او تاسي ته را رسېدلي دي. د بشر ټوله باسوادان د قلم له برکته باسواده سوي دي. د نړۍ د ټولو دولتو انتظام، دولتي چاري او سرښته د قلم په ذریعه سره تنظیم او تر اجراء لاندي نیول کېږي. دا یې بیا نور لوی کارونه دي.

د عالمانو افکار، د شاعرانو اشعار، مقالې او اخبار او نور هر څه د انسانانو خدمات، ضروریات او لاربښوونې قلم تر سره کوي، آیا دا کمه خبره ده؟

قلم د عالم، معلم، متعلم، محصل، ډاکټر، شاعر، لیکوال، تاجر، مامور، عوامو او هر چا سره ملګری او همکار دئ. دوی ټولو له دوستی څخه په څګر پوري ټینګ نیولی دئ، د زړه سره یې ځای ورکړی دئ، دا کوچنی مقام بولې؟

د قلم مقام دونه عالي او لوړ دئ چې د ډېرو لوړو اشخاصو سر لا هم ورته کښته دئ.

قلم هغه وخت له موږ او تاسو ټولو څخه راضي او خوشحاله دئ چې موږ او تاسي ټوله حقیقت په ولیکو.

او کله چې قلم و ناحقیو ته وګمارل سي نو خوارکی سي، تر خوله یې د خواشینی څخه تور ځګان راسي، خوار خورا خواپوته سي.

نو تاسي که د قلم دا بې پایانه خدمتونه منئ تل باید په قلم حقایق او رشتیا ولیکئ، ځکه چې دی راست دئ رشتیا غواړي.

که مو په قلم رشتیا ولیکل، قلم به هم د نړیوالو په وړاندي ستاسي پر حق بینی او رشتینوالي باندي شاهدي ادا کې.




ناول
پنځمه برخه
ژباړن
عبدالجبار
ترنګ
لیکوال : - مارک ټواین
شاه او گدا

۱۰- رنځېدلی شاهزاده

ټام کانټي په داسي حال کي پرېږدو چي رښتينی شهزاده آفال کرت سيمي ته بېول کيږي او وزګار وګړي ورپسې په منډو دي.

په دې حال کي يوازي يوه نفر د ده پر پلوی يو څه وويل، مګر د شهزاده شاوخوا دومره شر و شور نيولې وه چي هيچا يې ږغ نه واورېد.

شهزاده هم د ځان خلاصولو پرله پسې هڅي کولې او د وګړو له چلنده ډېر په تنګ او غوسه و. آخير د جان کانټي د زغم کاسه پر سر راغله او ورسره سوټې يې اوچت کړ چي شهزاده پر سر په ووهي. د شهزاده يوازنی مدافع راوړاندي سو او د هغه له سره د سوټي چپولو په نيت يې غوښتل د جان کانټي لاس ونيسي، خو سوټې يې د لاس پر بند ونښت او جان کانټي چيغه کړه:

- ته ګوابښ کوې؟ نو دا يې هم ستا مزدوري!

د جان کانټي سوټې پر ګوابښ کوونکي راپرېووت. چيغه پورته سوه او نيمژوانده جسد د خلکو په پښو کي راولوېد. شېبه وروسته تياري ټوله سيمه نيولې وه. دغي صحنې له هغه ځايه د تېرېدونکو لارويانو پر خوښی هيڅ اغېز نه کاوه.

شهزاده ځان د جان کانټي په جونګړه کي وموند دروازه د نورو پر مخ وتړل سوه. ده د يوه تش بوتل په خوله کي د ايښوول سوي شمي په رڼا کي د هغې جونګړې او د په کي اوسېدونکو وګړو غمجنه څېره وليده.

دوو خيرنو نجونو او يوې پخې ښځې په يوه ګوښه کي دېوال ته تکيه کړې وه. د هغوی څېرې له بېګاری سره د روږدو او چوپړ ته منتظرو حيوانانو په شان وې. په بل ګوټ کي يوه بوډۍ چي خيري جامې يې په تن او خر

پرېشان ېيکی يې پر ټنډه راخپور و له الوتي څېرې او شيطانو او چلبازو سترګو سره ناسته وه. جان کانټي هغې ته وويل:

- موري، پر ده غوږ ونيسه چي څومره خوندور ږغيږي، که يې خبري واورې ډېره مزه به درکړي. وروسته چي دي زړه غواړي هغومره يې ووهه ... ستا سره يم زويکه! يو څه شا ته سه او که دي له ياده نه دي وتلي بيا هم خپلي هغه پوچي خبري تکرارولای سې.

ښه، اوس راته ووايه نوم دي څه دی او څوک يې؟

شاهزاده ته پر دې سپکاوي ډېر سخت خښم ورغی او په غوسه د هغه سړي کرکجن مخ ته ځير سو او ويې ويل:

- دا ستا د بې ادبی نښه ده چي ما ته امر کوې او د ږغېدو راته وايې. زه لکه څنګه چي مې وړاندي هم درته وويل:

د انګلستان هيواد وليعهد اډوارډ يم نه بل څوک ....

بوډۍ پر دې خبرو دومره حيرانه سوه چي نژدې و بېهوښه ولوېږي او ساه يې بنده سي. بوډۍ په داسي پلټونکي او حيران نظر هلك ته ځير سوه چي جان کانټي يې پر ليدو خوند واخيست او له خندا شين واوښت. مګر دغې صحنې د ټام کانټي پر مور او خويندو بل ډول اغېز درلود. د هلك بدني ځورېدني هغوی غمجن کړل. ورمنډه يې کړه او په له غمه ډك انداز يې وويل:

- بېچاره ټامه ... خوارکی کوڅه ګښته!

بېچاره مور د شاهزاده په وړاندي پر ګونډو سوه، لاس يې د هغه پر اوږه کښېښود، له اوښکو په ډکو سترګو ورته ځير سوه او ويې ويل:

- آه ... زما خوارکی زويه ... ډېرو درسونو اخير لېوني کړې؟ څونه مي درته وويل

درس مه وایه، خو تا مي پر خبرو غوږ ونه نیوی او د مور زړه دي مات کړ.

شاهزاده د سپین سري ښځي مخ ته وکتل او په مهرباني یې وویل:

- ستا زوی روغ رمټ دی او هوښ یې هم بایللی نه دی.

مهرباني مېرمني تاسو خپه کېږئ مه او پرېږدئ زه بېرته ماڼۍ ته لاړ سم. ځکه ستاسو زوی همداوس هوري دی. کله چي زه لاړم، زما جلالتمآب پلار د انګلستان پاچا به ستاسو زوی درته راولېږي.

مور وویل:

- ستا پلار پاچا دی؟ خاوري مي پر سر سوې! زما خوارکی زویه نور داسي خبري مه کوه، ځکه کېدای سي د مرینې سبب دي وګرځي او شاوخوا ټول وګړي قتل عام سي.

زویه، دا خیال دي د سره وباسه. هڅه وکړه حافظه دي ترلاسه کړې، ما ته وګوره! زه دي مور نه یم او ته مي دنیا ته نه یې راوړئ؟ زه ستا مور یم، ته پر ما ډېر ګران یې.

شاهزاده سر وښوراوه او له ناچارۍ یې وویل:

- خدای پوهېږي چي زه هیڅکله نه غواړم ستاسو زړه مات کړم، مګر باور وکړئ تر اوسه مي ستاسو د زیارت ویاړ نه دی په برخه سوی.

ښځه پر شا لاړه او پر ځمکه کښېناسته. مخ یې په دواړو لاسونو وپوښه او په ژړا سوه. جان کانټي چیغه کړه:

- ښه، دغه ټوکه نور هم غځوه (نن)، (بت) بې تربیې فقیرو نجونو، تاسو نه وینئ چي د شاهزاده په حضور کي یاست، درښت یې وکړئ! ژر سئ. . . د شاهزاد په مخکي ګونډه ووهئ او ادب یې پر ځای کړئ.

جان کانټي تر دې خبرو وروسته خندا ته پښې ورکړي. نجونو د خپل ورور لپاره زارۍ پیل کړې او د هغه د بخښني غوښتنه یې وکړه. نن وویل:

- پلاره. . . هیله کوم تام ته اجازه ورکړئ چي بیده سي. شایي خوب یې بېرته پر سد کړي.

بت وویل:

- هو پلاره. . . تام ته د پرېوتو اجازه ورکړئ. هغه نن ډېر ستړی سوی دی. سبا سمېږي او بېرته به هماغه تام کانټي وي. دی به په ډېر ښه ډول فقر وکړي. هغه به سبا کور ته تش لاس راونه ګرځي.

دغو خبرو جان کانټي له ټوکو راوایست. په غوسه د شاهزاده لوري ته راوګرځېد او ویې ویل:

- سبا باید د کنډوالي څښتن ته دوه (پني) ورکړم، وپوهېدي؟! دوه پني. . . دا پیسې د شپږو میاشتو کرایه ده. که مي ورنه کړې ګودړي مو دباندي راغورځوي. اوس راوښیه چي نن دي څه ټول کړي؟

شاهزاده وویل:

- ښاغلي. . . زما وخت په دې بېځایه خبرو مه بربادوه. . . ومي ویل چي زه د پاچا زوی یم!

د جان کانټي سوك داسي لوړ سو او له هغې خوا د شاهزاد پر سر راپرېوت چي هغه یې د مهرباني ښځي لمنې ته وغورځاوه. سپین سري ښځي د پلار له درنو ګوزارونو د خوندي کولو په نیت پر بېچاره هلك غېږ راوګرځوله او خپل ځان یې ورته سپر کړ. نجوني له ډاره یوه ګوټ ته وتښتېدې. مګر نیا د جان کانټي مرستې ته راودانګل، شاهزاده د ښځي له غېږې وغورځېد او ویې ویل:

- مېرمني. . . تاسو باید زما له امله ونه رنځېږئ. پرېږده چي دغه احمقان هره ټکه یوازي زما پر سر را ایله کړي.

دغو خبرو جان کانتي دومره وپاراوه چې خپل کار يې له سره پيل کړ او شاهزاده يې بيا تر سوټيو لاندې کړ. وروسته يې هم پر مور او خويندو-چې د هغه ملاتړ يې کړی و او زړه يې پر سوی و- راواچول او هغوی يې هم پرله پسې ووډبولې. په پای کې جان کانتي وويل:

- اوس د خوب وخت دی. دې لوبې نور ستړی کړم.

شپه وروسته څراغ ګل سو او د کور ټول غړي په خوب کښېوتل. کله چې د کورنۍ د رييس او بوډۍ د خرهاري رږغ پورته سو او دوی ډاډه سول چې ويده دي، کوچنۍ نجونې د بيده شاهزاده د ځای خوا ته ورغلې او د هغه پر مخ يې بوريا او کمپله راکش کړه چې ساړه يې ونه وهي.

مور يې هم د شاهزاده خوا ته ورغله او د ناز لاس يې د هغه پر سر او وېښتانو کش کړ او ورو يې وژړل. وروسته يې هم څو مينه ناکې خبرې د هغه په غوږ کې زمزمه کړې. هغې آن د شاهزاده لپاره يوه ټوټه ډوډۍ هم ساتلې وه او ورېې کړه. خو هلك د ډېرو وهلو له لاسه اشتها له لاسه ورکړې وه او هغه بدخونده ډوډۍ يې خوړلای نه سوای.

د ښځې د دفاع، مينې او زړه سوي له امله د شاهزاده زړه نرم سو او په يوه ښله او له مهربانۍ ډکه ژبه يې مننه ځنې وکړه او ترې ويې غوښتل چې خپل ځای ته لاړه سي او د غمونو د هېرولو هڅه وکړي.

شاهزاده زياته کړه:

- زما پلار به ستاسو دا بې شانه مينه بې ځوابه پرې نږدي.

خوارکۍ ښځه له دې فکره چې زوی يې لېونی سوی، ډېره نارامه وه. څو ځله يې په سينه پوري ونيو او په اوښلنو سترګو د بستر پر لوري ستنه سوه.

د ښځې فکر ته-چې غځېدلې پرته وه، ژړل يې او په سوچونو کې ډوبه وه- نابېره ورتېره سوه چې:

- دغه هلك لېونی وي که نه وي ... يو داسې پټ شی په کې سته چې په ټام کانتي کې نه سته ....

خو سپين سرې ښځه له هر څومره هڅې سره-سره د هغه پټ شي پر موندلو او پېژندلو ونه توانېده. مګر د مورنۍ غريزې له مخې يې يو څه حس کړل، که څه هم په بشپړه توګه يې نه پېژندی.

رښتيا که دا هلك د دې زوی نه وي نو څه به پېښ سي؟ څومره پوچ فکر! خوارکۍ سپين سرې، د غمونو له درانه پېټي سره-سره بيا هم پر خپل دې فکر خندا ورغله. نومړې انديښنې يې ذهن ته لار وکړه او تل يې ځوروله. دغې انديښنې يې لمن نه خوشې کوله او هېرولای يې نه سوای.

اخير دې پايلې ته ورسېده چې تر څو د دغه کوخه ګښته هلك اصليت ورته ثابت نه سي هيڅکله به د آرامۍ ساه وانخلي. غوره او عاقلانه لار هم همدا د قضيې ازموينه او زبات و او بس. دغې موخې ته د رسېدو لپاره يې په ټول ځواك بېلابېلې لارې په ذهن کې سره واړولې راواړولې. پر هره لار چې به تله د ځينو دلايلو له امله به يې ېېرته پر نيمايي پرېښوده، ځکه چندانې به ډاډمنه نه برېښېده او نيمګړې ازمويني هم نه قانع کوله.

خوارکۍ ښځې خپل ذهن ډېر ستړی کاوه. ځکه پر آرامه کښېنستلای نه سوای. دا په همدې خيالاتو کې ورکه وه چې د هلك د پرله پسې ساه ايستلو ښکالو يې تر غوږ سوه. پوه سوه چې په درانه خوب بيده دی. د پرله پسې ساګانو په منځ کې به کله-کله دانه مانه زګېروی هم تر غوږو کېدی. دغه منظم زګيروي

يې تنفس ور خراباوه. داسې ښكارېده چې زګېروي يې د پرېشانو خوبونو د ليدلو له امله دي. سپين سرې نارامه سوه. دغې پېښې د دې پلمه په لاس وركړه چې خپله جوړه كړې نقشه عملي كړي. ناڅاپه پاڅېده او په چوپه توګه بوختـه سوه. شـمه يې ښېرتـه روښـانه كـړه. پـه زمزمه يې له ځان سره وويل:

- كـه مـې د زګـېروي پـر مهـال لـيدلای خامخا مې پېژندی! هغه له كوچنيتوبه د وېروونكو خوبونو د ليدلو پر وخت له ځايه راغورځېد او په غيرارادي توګه يې پر سترګو لاس نيوی. مګر نه د نورو په شان چې ورغوی د سترګو خوا ته كوي، بلكې كښته لوري ته به يې نيوی. ما په څو ځله ليدلی چې سترګو ته يې په همدې ښه لاس نيولی او هيڅكله مې بل ډول نه دی ليدلی. نو همدا اوس يې ازمايم.

هغه په څكېدو د شاهزاده خوا ته ورغله. لګېدلې شمه يې په داسې ډول په يوه لاس كې نيولې وه چې دويم لاس يې د رڼا د مخنيوی لـه امله پر نيولی و. په همدې ښه د هلك پر بستر وركړه سوه او د هغه څېرې ته ځير سوه. نفس يې د درنې نارامۍ له كبله ډېر نامنظم سوی و. نابېره يې د هغه پر مخ د شمې رڼا واچوله او له غـوږ سـره نـژدې ځمكـه يـې څـو ځلـه پـه لاس وډبوله.

د خوبولي هلك سترګې خلاصې سوې او په حيران ډول يې خپلې شاوخوا ته وكتل، مګر پـه لاس يـې هغـه چـل ونـه كـړ چې ښـځې يـې انتظار درلود.

ښځه نابېره غمجنه سوه او نه پوهېده څه وكړي. خو هڅه يې وكړه خپله نارامي پټه كړي. پـه آمرانـه لهجـه يـې هلـك تـه د بېرتـه بيدېدو وويل، خپل ځای ته وڅكېده او له يوې نرۍ غم سره پر بستر ولوېده.

هغې كوښښ كاوه ځان ته ډاډ وركړي چې د ټام دغه خوی د لېونتوب له امله بدل سوی دی. ليكن دا تلاښ يې هم بې پايلې و. له ځان سره يې وويل:

- نـه... نـه... د هغـه لاس خـو نـه دی لېونی سوی. دا امكان نه لري چې په دومره لنډ وخت كې دې يې خپل عادت هم بايللی وي. اُف خدايه!

اوس د دوه زړې پر ځای هيله منه سوه او پام يې سو چې په يو ځل ازمايلو ځان نه سي ډاډمنولای. دا چې نوموړې ښځې ته خپله كړې ازموينه يوازې د يوې پېښې ارزښت درلود، نو يو وار بيا د امتحان په نيت پاڅېده.

هغې څو ځله پـه بېلابېلو ډولونو هلك راويښ كړ او هماغه امتحان يې تكرار كړ، مګر پايله يې هره پلا د پخوا په شان وه.

په پای كې له ناچاريه بستر ته ستنه سوه او له يوې دنيا غمونو سره وغځېده او له ځان سره يې وويل:

- له دې هر څه سره-سره زه نه سم كولای له خپله زويه لاس پر سر سم. نه، نه سم كولای... نه سي كېدای... هغه بايد زما زوی وي.

د بېچـاره مـور د مزاحمتونـو لـړۍ نـوره غوڅه سوه د شاهزاده درد او ځورونو له هغې ښځه خپلـه نـارامي دومـره پـردې كـړه چې نـور دغو دردونو كوم اغېز نه پر كاوه. له يوې نرۍ ستړياوو سره يې سترګې پټې سوې او په يوه داسې ژور خوب كې ډوبه سوه چې له مرګ سره يې چنداني توپير نه درلود.

شاهزاده په ساعتونو بيده و. څلور پنځه ساعته تېر سول او ورو-ورو د بې هوښۍ له حالتـه راووت او ناڅاپـه يـې پـه نـيم ويښ حـال كې په زمزمې ته ورته ښه وويل:

- حضرت ويليام....

شېبه وروسته يې بيا تكرار كړه:

- هـو، جلالتمـآب ويليـام هربـرټ، تاسـو

چيري ياست؟ راسه واوره ځومره عجيب خوب مي وليد چي هيڅکله ... پام مو دی ښاغلی ويليام ...؟ په خوب کي مي وليدل چي زه په يوه فقير او کوڅه ګښته هلك بدل سوی يم او ...
... ها ... هلته څوك دی؟ اوه ساتونکی! ښاغلی ويليام ... څنګه! آيا په خونه کي مي يو نوکر هم نه سته؟ آهای ... زه به داسي بلا درباندي راولم چي ....

دغه مهال يې يو څوك پر غوږ ورپرېوت:

- ها ... څه شی غواړې؟ چا ته ناري وهې؟

شاهزاده وويل:

- ما ښاغلی ويليام هربرټ غوښتی. ته څوك يې؟

- زه څوك يم؟ څوك بايد يم؟ زه ستا خور (نن) يم. اوه تامه ... هېر مې و چي ته لېونی سوی يې ... خوارکی ... رښتيا لېونی يې؟ کاشکي هيڅ نه وينښېدای او ستا لېونتوب ته مي نه پام کېدای. چوپ اوسه او ږغ و زوغ مه لره ... که نې مور تول به په وهلو کي ووژني.

شاهزاده په وېره نيم پاڅېد او بيا پسې کښېناست، وهل او ډبول ورياد سول. د ټولو حقيقتونو وريادولو دومره بد اغېز پر وکړ چي په خواشيني سره يې ځان پر ځواره بوريا ايله کړ او ويې ويل:

- افسوس ... په خوب کي دومره بدمرغه نه وم.

په يوه شېبه کي يې ټولي هېري سوي نارامی وريادي سوې او پام يې سو چي نور هغه شاهزاده نه دی چي ملت يې په اړه خواشيني دی. بلکي هغه بدمرغه سوالګر دی چي په يوه تبيلي ته ورته ځای کي بندي دی او له سوالګرو او غلو پرته بل ملګری او خواخوږی نه لري.

دی هماغسي په فکرونو کي ډوب و چي ناببره له يوه کوره د چيغو او ژړاګانو ږغونه اوچت سول. څو شېبې وروسته د خوني دروازه وټکېده. د جان کانټي د خرهاري ږغ غوخ سو. له خوبه راپاڅېد او ويې ويل:

- ها ... څوك يې، څه غواړې؟

ږغ سو:

- هيڅ ... آيا خبر يې چي تا پرون څوك پر سر وواهه؟

جان کانټي وويل:

- نه، نه يم خبر، مهمه هم نه ده.

- مګر که خبر سې خپله خبره بېرته اخلې. يوازي دي تېښته له ځړېدو څخه ژغورلای سي ژر سه! سړی پر مرګ پروت دی. هغه بدبخته د مشهور کشيش انډريو پلار دی.

جان کانټي چيغه کړه او ويې ويل:

- خدايه مرسته راسره وکړې!

وروسته يې مېرمنه راوينښه کړه او نورو ته يې امر وکړ چي:

- ژر سئ پاڅئ، او زما سره وتښتئ که نې له منځه به لاړ سئ.

پنځه دقيقې وروسته د جان کانټي د کورنۍ ټول غړي په کوڅه کي وو او د ځان ژغورني په تمه يې منډي وهلې. جان کانټي شاهزاد تر لاس نيولی و او په تنګو تيارو کوڅو کي يې په ځان پسي ځغلاوه، ورو يې ورته وويل:

- زوی جانه، پر ځان پام کوه، ته لېونی نه يې. هسي نه زموږ نوم واخلې ... زه غواړم کورنۍ او نوم مي بدل کړم چي د عدالت له منګولو خلاص سم او څوك مي ونه څاري. په هر حال پام دي وي. ژبه دي بايد کنټرول کړې. هېر دي نه سي.

جان کانټي همدا خبره د کورنۍ نورو غړو ته هم وکړه او زياته يې کړه

دی هماغسي په فکرونو کي ډوب و چي ... که فرضاً سره بېل سوو ... د لندن ...

پله سره غواړو. هر څوك چي له پله سره نژدې ورو ستي پـرزه پلـورنځي تـه ورسـېدد نـورو انتظار دي وکړي، له هغه ځايه بيا ټول ساوت وارك(South Wark) ته ننبتو.

فراريان له تياري څخه روښانه چاپېريال تـه ورسـېدل. هغـه ځـاى نـه يـوازي روښـانه و، بلکي ډېر کسان هم د سيند پر غاړه په چيغو او نارو سر وو، سندري يې ويلې او نڅېدل.

ټايمز سيند مشالونو او څراغونو پـر سر اخيستي و. لنـدن پـل پـه رڼـا كـي ډوب و. د ساوت وارك پـل هم پـه مشالونو او څراغونو ځلېدى. ټول سيند د رنگارنگ څراغونو په رڼا روښـانه و. رنگينـو پټـاكيو پرلـه پسـې فضـا څيرله، په هوا كي چاودلې او د وګړو په ښاديو او چيغو كي د رڼا د دستوپه شان له آسمانه پر ځمکه رااورېدې. سپينه ورځ جوړه وه. هر ځـاى د خوښي چيغي او نارې پورتـه كېدې. داسي ايسېده لکه لندن چي پر نڅا راغلى وي.

جان كـانټي ځـان تـه پـه ځښـم سـو، ورسره ملگرو كسانو ته يې د پر شا تگ امر وکړ. مگر وخت تېر و. دى او د كـورنى غـړي يې پـه گڼـه گوڼه كي چاپېر سول او پـه يـوه شـېبه كي سره وپاشل سول.

موږ شاهزاده د جان كانټي د كورنى غړى نه شمېرو. خو جان كانټي لا تر اوسه هغه ټينگ تـر لاس نيـولى و. د شـاهزاده زړه د يـوې شـېبې لپـاره خوښ سـو، ځکـه فکـر يـې كـاوه ښـايي د تېښتي وخت په لاس ورسي.

كله چي جان كانټي غوښتل پـه گڼـه گوڼـه كي ځـان تـه لار پرانيزي يـو مسـت كښـتي وان چي ډېر . . . يـې ځښلـي وو، ورسره وجنگېـد. كښتي وان(ېېرى چلوونكى) د كـانټي پـر اوږه لاس كښېښود او ويې ويل:

- اې . . . ملگرې چيري دې تلوار دى . . . ؟ ټولو كسانو خپل كارونه شاته پرې ايښي، تـه په څه شي پسي روان يې؟

جان كانټي په غوسه وويل:

- زما كار په ما پوري اړه لري، ستا په كي كار نه شته . . . لاس دې زما له اوږې ايسته كړه زه ځم.

مسـت او ځـواكمن كښـتى وان يـې مخـه ونيوله او ويې ويل:

- اوه . . . څـومره بداخلاقـه . . . تـر څـو د انگلسـتان د شـاهزاده وليعهـد پـه سـلامتى شراب ونه څښې ولاكه ښور هم راځني وخورې.

جان كانټي په آرامى وويل:

- ښه . . . ژر كوه يو جام راكړه.

دغه مهال څو . . . نور هم متوجه سول او چيغه يې كړه:

- لـوى جـام راوړئ . . . لـوى جـام . . . كوښښ وكړئ چي په دغه بداخلاقه سړي لوى جام . . . وڅښئ، كه يې داسې ونه كړل د كبانو گوله به ځني جوړه كړو.

لـه خپلـي دې خبري سره جوخت يـې يـوه لويه كاسه راوړه. كښتى وان په يوه لاس كاسه تر يوه لاستي ونيوله او داسي يې وښوولـه چي غـواړي جـان كـانټي تـه يـې پـه لرغـوني دود ونيسي.

جـان كـانټي هـم پـه لرغـوني دود كاسـه ونيولـه. يعنـي پـه يـوه لاس يـې د كاسـې دويـم لاستي ونيـو او پـه بـل لاس يـې د كاسـې خولـه لوړه ونيوله. دغه مهال يې د يوې شېبې لپاره د شاهزاده لاس له لاسه خوشي سو.

شاهزاده ژر له دې موقـع څخه گټـه پورتـه كـړه او د وگـړو تـر پښـو يـې ځـان وايسـت او د يـوې شـېبې لـه مخـي لـه سـترگو ورك سـو. پـه دومـره گڼـه گوڼـه كـي د هغـه موندنـه نـور پـه اقيانوس سمندر كي د يوې شپږ پني سكې تر لټولو هم گرانه وه.

د شـاهزاده لپـاره دغـي تېښـتي ځـانگړى

خونـد درلـود. وروسـتـه ببلـه دي چـي د جـان کانتي په کيسه کي سي د ځان په فکر کي سو. د ده دا هم په پام کي وه چي هغه مهال لندن ښار د دروغجـن شـاهزاده لپـاره جشـن نيـاوه. پـه ده کي دا فکر ځواکمن سو چي ناځوانه او کوځه گښته سوالگر تام کانتي يې له ميني ناوړه گټه اوچته کړې او مقام يې ځني لاندي کړی دی.

له دې امله شاهزاده يوازي يوه لار درلوده او هغـه دا چـي لـه ځنـډ پرتـه د گيلـډ هـال (Guldhall) لار پـه خولـه وركـړي، ځـان درباريـانو تـه وروپېژني او هغـه غاصب رسوا کړي.

ده له ځان سره فکر وکړ چي تام ته به د دې وخت وركوي چي تر هر څه لومړی د خپلي اروا د بخښـني لپـاره دوعـا وكـړي. وروسـتـه د واکمنو قوانينو پر بنسټ د خيانت د ډېر لوی جرم له امله پـه دار ځوړند سي، يا ډوب كړل سي او يا هم پر څلورو خواوو مېخ کړل سي.

## ۱۱- په گيلډ هال کي

سـلطنتي ببـړی پـه داسـي حـال كـي چـي نوري سينگار سوي کښتۍ په پسې وې، خپله لار د تايمز سيند په اوږدو وغځوله او تر مخ ته روانو کښتيو تېره سوه. فضا د موسيقۍ ږغ پر سر اخيستې وه. د سيند پر غاړه ځراغونه بل او اورلـوبي روانــي وې. لـه ليـري ښـار د رڼـا او روښنايۍ په څپو کي غوټې وهلې. له ښاره هوا ته د اورلوبي توغندي توغېدل او په آسمان کي تر چاودېدو وروسته د جواهراتو په څېر پر ښار رااورېدل.

كلـه چـي سـلطنتي ببـړی وخوځېـدي، د سيند دواړي غاړي د خوښۍ چيغو، نارو او د توپونو درنو ږغونو نيولي وې. دغـه ږغونـه او شـانداره منظـرې تـام كـانتي تـه-چـي پـر يـوه وريښـمين بالښـت يـې ډډه وهلــې وه-

حيرانوونکي او په زړه پوري برېښېدې. مگر د ده دوو مجلسـيانو شـاهزادگۍ اليزابـت او شـاهزادگۍ جـين گـري تـه يـې چـي اړخ تـه يـې ناستي وې، كوم نوی والی نه درلود.

ببړۍ چي کله داوگيت ته ورسېدې د وال بروك[1] د آرام سيند پر اوږدو وړاندي لاړې. بيا باكلرسبوري تـه راغلې او وروسـته د سـيند پـه امتـداد د تـنگ پـر مهـال تـر ببلابېلـو پلونـو لاندي-چي په ځراغونو سينگار سوي او زيات خلك پر ولاړ وو- تېـري سـوې. آخيـر د لنـدن د لرغوني ښار په منځ کي په يوه دريـاب کـي چـي اوسمهال يې بـارگ يـارډ (Barg Yard) بولي، ودرېدې.

تـام لـه ببړۍ پلی سو او لـه خپلو ملگرو سره تـر چيـپ سايډ تېـر سو څو گامـه پـه اولـډ جيوري (Old Jewery) او بيزينگ هال (Basing hall) واټونو کي لاړ او د ښاروالۍ مانۍ گيلډ هال ته ورسېد.

تـام كـانتي او دوې ښـكلي ملگـري يـې د لندن د ښـاروالۍ د لـړډ او مشـر پـلاوي لـه ډېـر گـرم هرکلـي سـره مـخ سـوې. هغـه يـو طلايـي ځنځير په غاړه کړی او سري او ارغوايي جامې يې اغوستې وې. وروسته يې دوی د لوی تـالار پـه لوړه برخـه كـي پرتـو شـاندارو څوكيـو تـه لارښوونه كړل. دغـه مهـال يـوه خطابـه ولوسـتل سوه. څو لكـري او د ښـار ځـانگړې تـوره ورتـه وړاندي سوه. ستر لـړډان او د هغـوی مېرمنـي-چي بايد د تام او د ورسره دوو پې مخو ملگرو تر شا ولاړې وای- راننوتې او پر خپلو ځايونو ودرېدې.

د هغه مېز تـر شـا چـي د تـام تـر څوكۍ لـږ

---

[1]- وال بروك چي د تايمز سيند يو ښاخ دی هغه مهال يې تر دوو پېړيو زيات عمر درلود. نومـوړی سـيند د شاوخوا جوړو سوو اوچتو مانيو له امله له سترگو پټ و او د هغوی تر شا پټېده.

کوچني و، درباريان، نجيب زاده مېلمانه او د ښار اشراف ناست وو. نور عادي وګړي د تالار په کښتنۍ برخه کي د پرتو مېزونو شا ته کښېنستل.

د ګوګ او ماګوګ-چي د ښار ساتونکي بلل کېدل- دوو سترو مجسمو له خپلو ځايونو غاړي راايستلي وې تر څو دغه منظره چي له نسلونو راهيسي يې ليدله، په خپلو سترګو ننداره کړي.

د شېپور ږغ اوچت سو او يوه خطابه وړاندي سوه. يو ځواکمن او پنځه نوکر راننووت او په هغه پسي څو تنه فراشان په داسي حال کي داخل سول چي تازه کباب سوى غويى يې نقلاوه.

ټام تر دوعا وروسته-چي تر دې وړاندي وربښوول سوي و- پاڅېد او نور هم ورسره ولاړ سول. ټام له يوه ستر جامه چي له ځانګړو طلاوو ډك و له شاهزادګۍ اليزابت سره يو ځاى ... وڅښل، وروسته شاهزادګۍ جين ګري ... وڅښل او وروسته لوى جام لاس په لاس پر نورو اشرافو وګرځېد او په دې ډول جشن پيل سو.

د شپې په نيمايي کي-چي جشن او خوښي اوج ته رسېدلې وه- د هغه مهال تر ټولو مشهوره لوبه پيل سوه. يو تاريخ ليکوال چي خپله د همدغي لوبي نندارچي و د هغې پېښي کيسه په دې ډول ليکلې او خوندي کړې ده:

«کله چي ځاى په کافي اندازه خلاص سو، دوه تنه شريفان بارون او دوك چي د ترکانو غوندي جامي يې اغوستي وې راننوتل. هغوى اوږده لباسونه چي طلاوي پر ګنډل سوي وې اغوستي وو. جګې بخملي خولۍ يې پر سر وې او پر طلايي کمربند يې يوه توره ځړېده. د دوى تر شا يو بل بارون او دوك راننوتل چي هغوى هم اوږدې جامې لرلې. د روسانو په دود يې له پوسته جوړي سوي، مګر خړ رنګه خولۍ پر سر کړې وې او د هر يوه په لاس کي يو تبر ليدل کېدى. داسي بوټونه يې په پښو وو چي نوکونه يې شك ولاړ وو. په هغوى پسي، يو نجيب زاده پهلوان داخل سو. وروسته يو لوى سمندري افسر له پنځو نجيب زاده ګانو سره-چي سره بخملي نيم تنه يي کميسونه او لنډ بالاپوښونه يې اغوستي وو- راننووت. هغوى د هغه مهال د نڅاګرو په شان په قرقول ښکلو ښايسته سوي خولۍ پر سر کړي وې. دوى د پروسانو غوندي ځانونه سينګار کړي وو.

په دوى پسي نژدې سل تنه مشال لرونکي راننوتل. هغوى خپل لباسونه له شنو او سرو اونو په جوړو سوو نقشونو ښکلي کړي وو. هغوى خپل مخونه د عربو په شان تېز تور کړي وو. په دوى پسي ټوکيان داخل سول. وروسته هم موسيقي ږغوونکو او نڅاګرو چي جامې يې بدلي کړي وې ورو-ورو نڅا پيل کړه. بيا لرډان او مېرمني يې په ډېره مينه په رقص سوې. په رښتيا چي يوه په زړه پوري ننداره وه.»

په داسي حال کي چي ټام د خپلي ځانګړي او لوړي څوکۍ له پاسه دغو لبونيو او په عجيبو او بېلابېلو ښو کېدونکو رقصونو، څرخونو او کړنو ته په خوښۍ او حيرانتيا کي ډوب و، د انګلستان اصلي وليعهد او شاهزاده په شکېدلو جامو کي د ښاروالۍ د تالار د لويي دروازې مخي ته چيغي وهلې او له خلکو يې تالار ته د ننوتو اجازه غوښته چي غاصب ته د خپل ناوړه کار سزا ورکړي.

وګړي له دې حيرانوونکي پېښي خوښ وو او د هلك پر لېونيو ويناوو يې خوند اخيست او له هر لوري يې د دغه کوچني غدار

د لیدو لپاره سرونه راایسته کړي وو.

لږ وروسته، هر چا له هري خوا هڅاوه چي خپلي مخالفي خبري تکرار کړي او ځینو هم د دې لپاره چي غوسه یې راوپاروي توکي پر کولې.

د شاهزاده سترګي د حسرت له اوښکو ډکي وې. مګر په شاهزادګي آرامي یې وګړو ته کتل. د نورو له خوا هم پر ده د توکو او مسخرو لړۍ روانه وه او دی یې هڅاوه. آخیر یې د زغم کاسه ډکه سوه او چیغه یې کړه:

- اې وحشي او بې ادبو خلکو، تاسو ته خبرداری درکوم چي زه د انګلستان شاهزاده ویلز یم. دا چي له تاسو څخه یو هم زما خبره نه اوري او نه هم زړه رابانديې سوځي، نو زه به هم له دې ځایه نور ونه خورم.

په همدغه شېبه کي یو ږغ پورته سو.

- ته که شاهزاده یې که نه، بې توپیره ده. مګر یو زړور هلك یې. نور د ملګري او دوست د نه لرلو اندېښنه مه کوه. زه د دې خبري د زبات لپاره ستا تر څنګ ولاړ یم. که د یوه ملګري په تلاښ یې تر مایلز هندن به غوره ملګری ونه مومې. نو ته هم ځان دومره مه ځوروه، درېږه مه، زنه ډېره مه ښوروه او چیغي مه وهه. زه د دې ناپوه قوم په ژبه تر تا ښه پوهېږم. زه د دوی له منځه پورته سوی یم.

ویناوال هغه ځوان و چي د دون سزار دو بازان (Don Caesar de Bazan) په شان جامې یې اغوستي وې او هغه ته ورته یو څوك و. لوړه ونه، ښکلی اندام، غوره جامې پرمختللې وسله مګر زړه او له کاره لوېدلې. د جامو درزونه یې په زرینو تارونو ګنډل سوي اما زاړه، د لباس پاتي برخه یې هم ګونځې، زړه او شرېدلې وه. د خولۍ ښکه یې لړغونې او پر ملا ماته سوې وه.

دغې ښې له هغه یو ماجراجو او کوڅه ګښته کس جوړ کړی و. د دغه ځواکمن او جګ سړي خبري د وګړو د خندا لامل وګرځېدې او شاوخوا ولاړ کسان نابېره له خندا شنه سول. هر چا یې په ځواب کي یو څه وویل. یوه وویل:

- دا هم یو بل شاهزاده دی چي جامې یې بدلي کړي دي.

یوه بل تن وویل:

- خبري په پام کوه چي دا شاهزاده ډېر خطرناکه دی.

یوه بل وویل:

- اې سپېڅلي مریمې! دا دوه څومره سره ورته دي، سترګو ته یې وګورئ!

بل وویل:

- هلك یې له منګولو وباسئ او دی اوبو ته وغورځوئ.

د شاهزاده اوږې ته لاس اوږد سو، مګر ناآشنا خپله توره له پوښه وکښه او د هغې په پراخه ژبه یې پرغلګر پر ځمکه راوپرځاوه.

ناڅاپه شورماشور سو. یو چا ږغ کړ:

- هغه ووژنئ. هغه ووژنئ.

پر هغه یې نابېره برید وسو. ځوان ځان دېوال ته ورساوه او د لېونیو په دود یې توره پر خپل سر په څرخ کړه. څو تنه زخمي سول او شاوخوا وتښتېدل. مګر یو شمېر کسانو په ډېره غوسه بیا برید پر وکړ. څرګنده وه چي لږ شېبه وروسته به هلك پر ځمکه راپرځېدلی او وژل کېدلی به. خو ناڅاپه د شپېلو ږغ پورته سو او امر وسو:

- لار پرانیزئ! د پاچا قاصد را روان دی لار پرانیزئ!

یوه ډله سپاره د وګړو له منځه په تاخته تېر سول. خلك د اسونو تر پښو د لاندي کېدو له وېري شاوخوا خپاره سول. ناشناس لاس ور وړاندي کړ، شاهزاده یې په بغل کي ونیو او په تېزۍ له وګړو او خطرناك ځایه لیري سو.

* * *

اوس ګیلډ هال تالار ته راګرځو.

د خوښیو په منځ کې ناڅاپه د شپېلۍ ږغ اوچت سو. پر هره خوا چوپتیا سیوری وغوړاوه. د پاچا د قاصد ږغ واورېدل سو چې په لوړ آواز یې یوه خطابه لوستله او ټولو برخه والو په ولاړې اورېده. پیغام دا و:

- اعلیحضرت پاچا له ژوند سره خدای پاماني وکړه!

ټولو حاضرانو سرونه ځوړند کړل. د ځو شېبو لپاره همداسې پاته سول. وروسته پر ګونډو سول، لاسونه یې د تام پر لوري اوږده کړل او په ډېر لوړ غبرګ ږغ یې وویل:

- ژوندی دې وي پاچا!

تام ټول برخه وال په یوه تېز او حیران نظر وڅارل او وروسته خپلو دواړو اړخونو ته پر ګونډو دوو شاهزادګیو ته ځیر سو. بیا یې په لرډ هارټفورډ پورې سترګې وګنډلې.

د شاهزاده مغز ته یوه داسې فکر لار وکړه چې اغېز یې ځېره ور غمجنه کړه. د لرډ هارټفورډ پر غوږ یې خوله کښېښوده او ویې ویل:

- ته او خپل شرافت که به رښتیا نه راته وایې. که زه همدا اوس داسې یو امر وکړم چې له پاچا پرته یې بل هیڅوك واك نه لري، آیا ترسره به یې کړې؟ او آیا زما مخه به څوك ونه نیسي؟

لرډ هارټفورډ په درنښت ځواب ورکړ:

- نه قربان! هیڅوك مو له فرمانه سر نه سي غړولای. د انګلستان سلطنت د جلالتمآب په واك کې دی او تاسو د دې هیواد پاچا یاست او ستاسو خبره یو ازنی قانون دی.

تام په ډاډه زړه، کلك هوډ او پارېدلي انداز خبرې وغځولې او ویې ویل:

- نو، سر له همدې شېبې به د پاچا قانون د عدالت او مینې پر بنسټ ولاړ وي او ظالمانه قانون به نه وي. پاځه او لندن زندان ته لاړ سه او ورته ووایه چې دوك نور فالك به نور ونه وژل سي.

د پاچا دغه وینا په تېزۍ سره پر ژبو سوه او ټولو حاضرانو د یوه او بل په غوږونو کې زمزمه کړه. په داسې حال کې چې هارټفورډ د لندن زندان پر خوا اس په منډه کړ، د حاضرانو له منځه چیغه پورته سوه او یو چا وویل:

- د وینې تویوني او ظلم واك پای ته ورسېد. ژوندی دې وي د انګلستان پاچا اډوارډ!

*نور بیا*



عبدالهادي ریشا/کراچي

## رشوت خور ملعون دئ

رشوت خور خورا لعنتي شی دئ. د ټولو بې عدالتیو مورینه ده، پر رشوتخور، رشوت ورکوونکي او مابینې سړي درو سرو لعنت ویل سوی دئ.

د رشوت څخه ډېر فسادونه، خرابي، تباهي پیدا کېږي. چې رشوت وي هلته غله وي، غلاوې وي، چور، قاچاق، ظلم، حق تلفي، بې عدالتي، بدامني، ګډوډي، زور بالای زور وي. چې رشوت رسوایي ته ورسېږي نو (غوا لا هم لنګوته وخوري)؟

چې رشوت وي هلته خلک د ناحقې تکې څخه خورا په بېره کې وي، ظالمان نه بېرېږي، نه د چا څخه سترګه کوي. د قانون پروا څوک نه کوي، په داسې مملکت کې هر ناروا کار روا کېدلای سي او حق باطلېږي.

پاځه رشوت خواره هغه دي چې بیت المال ته پیسې راروانې وي دوی بیا په لار کې د وخته تکه پر اچولې وي، کنډو کړي یې وي.

په داسې ملک کې په دې حساب په لږ عمر کې د ملت خزانه تشه توره درېږي او د مفلسۍ کچکول یې در پر در وطن پر وطن ګرځي.

د خلکو حکومتونه داسې مضر او موش صفته عناصر باید و خپل سر ته ایله نه کړي، د عدالت تلکي ورته ودروي، که و خپل سر ته خوشې وه نو په لږ وخت کې به د بیت المال جوالونه د یوه مخه سري سومبري کې، چې بیا به تر ګنډلو او پینه کېدلو وتلي وي.




## اداره

❀ يکشنبه د لړم ۲۸ مه :-

د عامې روغتيا رئيس ډاکټر عبدالقيوم پخلا د فلج ناورغې د واکسيناسيون د کمپاين په پيل کې چې په سهېل لوېديځ سمت او اړوندو ولسواليو کې به تر سره سي د خلکو د همکارۍ غوښتنه وکړه.

❀ دوشنبه د لړم ۲۹ مه :-

د ولايت مقام د مرستيال ډاکټر غلام جيلاني همايون په مشرې د اړوندو ادارو د مسئولينو په ګډون د ولايت مقام د غونډو په تالار کې پرېکړه وسوه څو د ښاروالۍ رياست لخوا د هراړخيزه پاکولو د پروګرام په ښه ترا پلي کېدو کې اقدام وسي او د ټولو له لوري يې ملاتړ وسي.

❀ ۲ شنبه د لړم ۲۹ مه :-

د ښار د اوومې او اتمې ناحيې مشرانو او سپين ږيرو او مخورو د امنيه قومان مل پاسوال عصمت الله عليزي سره د امنيت د لا ټينګېدو په موخه وکتل. خلکو د دوی د ښه کار کولو څخه ستاينه وکړه او په مقابل کې ښاغلي عليزي هغوی ته د ښه امنيت د حاکمېدو ډاډ ورکړ.

❀ ۲ شنبه د لړم ۲۹ مه :-

د ولايتي شورا غونډه په نارنج مانۍ کې د دې شورا د رئيس احمدولي کرزي په مشرې جوړه سوه، په غونډه کې د ژړۍ ولسوالۍ د يو شمېر خلکو عرضپاڼه چې دلته يې د شفعي او حريم په نوم د څه مځکې غوښتنه کړې وه تر غور لاندې ونيول سوه. هغوی ګيله درلوده چې مځکې د دغې مځکې زياته برخه په ناقانونه توګه خرڅه سوې. تر غور وروسته پلاوی وټاکل سو څو د خرڅو سوو مځکو د عايد پوښتنه وسي، چې آيا د دولت اړوندو حسابونو ته سپارل سوي که يا.

په غونډه کې د ميرويس روغتون اړوند په شخصي کتنځايونو کې يو شمېر د ډاکټرانو او نرسانو د زياتې موضوع هم د يو شمېر نورو عريضو تر څنګ وڅېړل سوه.

❀ ۲ شنبه د **لړم ۲۹** مه :-

هغه دوه **تنه پوليس** چې په زلخان کې يې د تلاښې په **پلمه فضل الرحمن** نومی لوټ کړی و د پوليسو لخوا **ونيول** سوه.

❀ ۳ شنبه د **لړم ۳۰ مه** :-

د کوچنيانو **د حقوقو** نړيوالې ورځې ته په

پاملرنه سره د بشري حقونو د خپلواک کميسيون د سهيل لوېديځ سمت د سيمه ايز دفتر او کوچنيانو د حقونو د ملاتړ موسسې لخوا همدا ورځ د ښوونځيو د زده کړيانو او ښوونکو په پراخ ګډون سره ولمانځل سوه:

❁ ۳ شنبه د لړم ۳۰ مه :-

د ولايت مقام مرستيال ډاکتر غلام جيلاني همايون حاجيانو ته د آسانتياو د برابرېدو په موخه د حج او اوقافو رياست له کارکوونکو سره په داسي حال کي وکتل چي د دې ادارې رئيس عبدالصمد ساهو او د اطلاعاتو کلتور رئيس عبدالمجيد بابي هم شتون درلود. ښاغلي همايون حاجيانو ته د بشپړه آسانتياوو د برابرېدو لارښووني وکړې.

❁ ۳ شنبه د لړم ۳۰ مه :-

د ۵۲۱ تنو تنقيص سوو افسرانو څخه د کندهار د ميخانيکي لېسې په تالار کي د ملي دفاع وزارت د پلاوي لخوا ازموينه واخيستل سوه، څو بريالي افسرانو بيا د ملي اردو په چوکاټ کي په دندو وګمارل سي.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ اوله :-

د ولايتي شورا د غړي زرغونې کاکړي مېړه محمدناصر نن مازديګر په کابل بازار کي د ۲ تنو موټرسيکل سپرو لخوا وويشتل سو او شهيد يې کړ.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ اوله :-

تېره شپه پوليسو په شګه ولسوالۍ کي پنځه تنه مخالفين د يوې PK ماشينګن او کلاشينکوف او يوه پيک اپ موټر سره نيولي دي.

❁ ۵ شنبه د لېندۍ ۲ مه :-

د ولايت مقام د اداري مجلس غونډه د ولايت د غونډو په تالار کي د ولايت د مرستيال ډاکتر غلام جيلاني همايون په مشري جوړه سوه، چي پکښې د لوېديځ اړخ د وسايطو اډې ته د لېږدوني په اړه د مل پاسوال عصمت الله عليزي څرګندوني واورول سوې، چي وروسته يو پلاوی ورته وټاکل سو، څو ژر و نوي ځای ته د نمايندګانو د [illegible]وچېدني ته اقدام وکړي.

❁ شنبه د لېندۍ ۴ مه :-

د ښځو په وړاندي د تاوتريخوالي د له منځه وړلو نړيواله ورځ د بشري حقونو د خپلواک کمېسيون لخوا په ماشاءالله سالون کي د ګڼ شمېر خوندو او دولتي ادارو د مسئولينو په ګډون ولمانځل سوه. غونډي ته د بشري حقونو د خپلواک کمېسيون رئيس انجنير عبدالقادر نورزي، د ولايت مقام مرستيال ډاکتر غلام جيلاني همايون، امنيه قوماندان عصمت الله عليزي، د علماو د اصلاحي شورا رئيس مولوي سيدمحمد حنيفي، مرافعه څارنوالۍ څخه عبدالاحد خان، د بشري حقوقو د خپلواک کمېسيون څخه نجيبې هاشمي او شاهدې حسين د موضوع په اړه وېناوي واورولې.

❁ يکشنبه د لېندۍ ۵ مه :-

کندهار ته د پښتو د خوږژبي شاعر درويش دراني په رارسېدو سره د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست له لوري د يوې ادبي ناستي په لړ کي تود هرکلی ووېل سو. دا ناسته چي د دوی په وياړ د اطلاعاتو کلتور رياست د غونډو په لويه خونه کي رابلل سوې وه ګڼ شمېر فرهنګيانو، ليکوالانو، او شاعرانو برخه پکښې اخيستې او په يوې درنې مشاعرې سره د ورځې تر وروستيو وغځېده. وروسته برخوالو په هغه مازديګرنۍ کي برخه واخيسته چي د اطلاعاتو کلتور رياست لخوا د ښاغلي درويش په وياړ جوړه سوې وه.

❁ يکشنبه د لېندۍ ۵ مه :-

د ولايتي شورا په غونډه کي چي د نارنج په مانۍ کي د احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه، په دې غونډه کي د برېښنا د محصول د لوړوالي پر ستونزه او هم د پنجوايي ولسوالۍ د بلوڅانو، د سپين بولدک ولسوالۍ د اوسېدونکو او په ميرهزار جامع کي د مقتديانو پر عرضانه هم غور وسو.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ٦ مه :-

د ملي امنيت مؤظفينو د ۳ کوچنيانو د تښتوني مجرم کسان ونيول، دغه کسانو منلې چي د ملي سوداګر عبدالواجد مشهور په حاجي لمسی يې هم د زمري د مياشتي پر ۲۷ مه نېټه تښتولی و، چي د (۸۰۰) زرو پاکستانی کالدارو تر اخيستو وروسته مو بيرته ور ايله کړ.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ٦ مه :-

د امنيې قوماندانۍ پوليسو درې تنه د کوچنيانو د تښتوني په تور ونيول. امنيه قوماندان

مل پاسوال عصمت الله عليزي ويلي، شپږ ورځې دمخه د ډنډ په څلور لارې کې چې دوو تنو يو کوچنی عبدالله د نورالله زوی تښتولی و وينول سو.

❁ ۲ شنبه د لېندی۶ مه :-

د کندهار ښار د صرافانو استازو او مشرانو د امنيت د تامينېدو په لاره کې د امنيه قوماندان مل پاسوال عصمت الله عليزي څخه د دوی سره د يوې کتنې په ترځ کې مننه وکړه، په مقابل کې ښاغلي عليزي د هغوی د همکاريو غوښتنه وکړه.

❁ ۲ شنبه د لېندنی۶ مه :-

د ولايت مقام مرستيال ډاکټر غلام جيلاني همايون د خپل کار په کوټه کې د سپين بولدک ولسوالۍ د سپين ربرو او ملي سوداګرو سره د هغوی د ستونزو د اوارېدو په اړه وکتل.

همدارنګه ښاغلي همايون د کندهار پوهنتون د استادانو او محصلينو سره د هغوی د ستونزو د هواري په موخه په يوه بله جلا ناسته کې وليدل.

❁ ۳ شنبه د لېندنی۷ مه :-

کندهار والي اسدالله خالد د خپل کار په کوټه کې د سپين بولدک د ملي سوداګرو سره په هرات کې د هغوی د ستونزو د هواري په موخه وليدل، ښاغلي خالد په يوه بله جلا ناسته کې د پنجوايي ولسوالۍ د مشرانو سره هم د امنيتي حالت، بيا رغوني او بېځايه سوو کورنيو ته د مرستو د وېشلو په اړه وکتل.

❁ ۳ شنبه د لېندی۷ مه :-

بيت الله شريف ته د کندهار ولايت څخه د (۱۱۱) تنو حاجيانو لومړۍ الوتنه تر سره سوه، د حاجيانو دمخه ښې له پاره کندهار والي اسدالله خالد هم هوايي ډګر ته ورغلی و. دغه حاجيان د کام اېر شرکت او هم آريانا افغان هوايي شرکت د يوه ترون له مخې په کام اېر الوتکه کې ولېږدول سوه.

❁ ۳ شنبه د لېندی۷ مه :-

کندهار ښاروال زمري عثمان د هغې غونډې مشري وکړه چې د ښار د بېلابېلو اصنافو استازو ګډون پکښې کړی و. په غونډه کې د افغانستان بانک، څارنوالۍ او ولايتي شورا استازو هم ګډون درلود، او تينګار وسو چې د ټولو له لوري دې د راکړې ورکړې پر مهال افغانۍ وکارول سي.

❁ ۴ شنبه د لېندی۸ مه :-

د ناټو ځواکونو پر موټريز کاروان باندې د سپين بولدک په دوه لارې کې ځانمرګی برید تر سره سو. چې دوه تنه کاناډايي عسکر پکښې وژل سوي او د عامو خلکو څخه يو تن سخت ټپی سوی دئ. دا خبر د ناټو ځواکونو وياند جګړن چاک هم ومانه.

❁ ۴ شنبه د لېندی۸ مه :-

د پنجوايي ولسوالۍ د ناخوني په سيمه کې د ناټو ځواکونو کاروان ته نږدې په سراچه موټر کې ناست کس ځانمرګی برید وکړ، چې د ځانمرګي پر مرينه سربېره د ناټو ځواکونو يو عسکر هم ټپي سو.

❁ شنبه د لېندی۱۱ مه :-

علامه اکاډيميسن پوهاند رشاد بابا دوهم تلين د اطلاعاتو کلتور رياست او رشاد اکاډيمی په ګډو هڅو سره د اطلاعاتو کلتور رياست د غونډو په تالار کې د ګڼ شمېر شاعرانو، اديبانو، ليکوالانو او پوهانو په ګډون ولمانځل سو. غونډه د اطلاعاتو کلتور رياست د رئيس عبدالمجيد بابي پخپله وينا سره پيل کړه، هغوی د خپلې وينا په يوه برخه کې وويل :-

علامه بابا د هيواد او سيمې يو وتلی او منلی اديب، تاريخپوه، شاعر، ليکوال، څېړونکی او ژبپوه شخصيت و، هغوی خپل ټول عمر د هيواد د فرهنګ او پښتو د پياوړتيا له پاره په ځانګړې مينه کار وکړ.

انجنير شېرشاه رشاد د فاضل استاد فرهنګي او ادبي آثارو او د دوی د (۷۰) کلونو علمي هڅو له برکته د چاپي ليکنو د نوم ليک يادونه وکړه او د اطلاعاتو کلتور رياست څخه يې د همدې غونډې د جوړېدو له امله مننه وکړه.

وروسته عبدالمالک هم د علامه بابا د فرهنګي نوښتونو يادونه وکړه او تر دوی وروسته مشاعره پيل او تر ناوخته ماښامه پوري وغځېده.

❁ شنبه د لېندی۱۱ مه :-

د ايډز ناروغۍ د مخنيوي د لارو چارو موندلو نړيواله ورځ د عامې روغتيا رياست په نوښت او د يونيسف دفتر په همکارۍ د ګڼ شمېر ډاکترانو، روغتيايي کارکوونکو او نرسانو په ګډون د ښاري

پولي کلینیک کي د یوې غونډي په ترخ کي ولمانځل سوه، چي په اوږدو کي یې د عامي روغتیا رئیس ډاکتر عبدالقیوم پخلا، ډاکتر شاه ولي پوپل، ډاکتر عبدالجبار، ډاکتر پاینده محمد ارغنداوي، ډاکتر عبدالواحد، ډاکتر فدا محمد سحر، د موضوع په اړه همدارنګه شمس الرحمن د ملګرو ملتو د نړیوال روغتیایي سازمان د مشرقي مدیترانې د مسئول ډاکتر حسین الجزایري پیغام هم واوراوه.

❁ یکشنبه د لیندی ۱۲ مه :-

د دیني عالمانو د اصلاحي شورا ریاست په نوبت په ټولنه کي د دیني عالمانو د رول په اړه غونډه جوړه سوه. چي محوري مسایل یې د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت د اطاعت واجبوالی، د ملي اردو او ملي پولیسو په پیاوړتیا سره د دین او خاوري ساتنه او د ټولني اصلاح کېدنه وه.

غونډي ته پر اړوندو مسایلو مولوي خواجه محمد او د شورا مرستیال مولوي سید امام متولي خبري وکړې او په آخره کي یوه شپږ ماده ایزه پرېکړه لیک د ټولو حاضرینو لخوا ومنل سو.

❁ یکشنبه د لیندی ۱۲ مه :-

د ولایت شورا رئیس احمدولي کرزي وویل نن د همدې شورا غونډه د شورا د ځینو غړو د نه حاضرېدو له امله وځنډېده، هغوی وویل د خلکو استازي باید د خلکو د خدمت څخه اوږه خالي نه کړي.

❁ یکشنبه د لیندتی ۱۲ مه :-

د ناټو ځواکونو پر موټریز کاروان باندي د حضرت جي بابا په سیمه کي په ځانمرګی برید کي درې تنه عام وګړي شهیدان او ۱۸ تنه ټپیان سوه. همدارنګه د ناټو ځواکونو څخه چي د ښار لوېدیځ لور ته رهي وه درې تنه ټپیان سوي دي.

❁ ۳ شنبه د لیندی ۱۴ مه :-

د ناټو ځواکونو پر موټریز کاروان باندي د میرویس مېني په سیمه کي ځانمرګی برید وسو چي د همدې ځواکونو د ویاند هاندرېډ په وینا په برید کي دوه تنه عسکر ټپیان سوي دي، همدا ډول یې د دولتي چارواکو د ملکي کسانو څخه هم د شپږو تنو د ټپي کېدو یادونه وکړه. ټپیان په میرویس روغتون کي تر درملني لاندي نیول سوي دي.

❁ ۳ شنبه د لیندی ۱۴ مه :-

د ژړي ولسوالی امنیه قوماندان ویلي چي د ژړي ولسوالی کي د پلټونکو عملیاتو په ترخ کي د دښمن سره د نښتي په پایله کي درې تنه مخالفین مړه او اتنه تنه یې ټپیان سوي دي.

❁ ۴ شنبه د لیندی ۱۵ مه :-

د ولایتي شورا په غونډه کي د لویې ویالې اوسېدونکو ته د ښاروالی لخوا د دوی د استوګنځایونو د اسنادو د ورکړي چټکتیا غوښتنه وسوه. همدارنګه په استوګنو سیمو کي د لوړ پوړه ودانیو د جوړېدو پر مخنیوي، په ښوونځیو کي د ملي سرود د زده کړي، ځوانانو ته د بدني روزني د زمینو پر برابرېدو او یو لړ نورو مسایلو غور وسو.

❁ ۴ شنبه د لیندی ۱۵ مه :-

د ژړي او پنجوایي ولسوالیو اوسېدونکو هغه کمېسیونونه چي د خلکو ستونزي به څېړي او د مرستي د موادو په وېش کي به زیار باسي نن یې د ولایت مقام د غونډو په لویه خونه کي د کندهار والي اسدالله خالد سره وکتل او د کمېسیونونو په اړه چي ۲۳ تنه یې د ژړي او ۲۹ تنه یې د پنجوایي د ولسوالیو څخه دي.

❁ جمعه د لیندی ۱۷ مه :-

د سردار مدد خان پر څلور لاري باندي د ملي اردو او ناټو ځواکونو پر موټریز کاروان باندي په ځانمرګي برید کي چي د ځانمرګي برید کوونکی له منځه تللی او د سیمي د مارکېټونو او کورونو کړکیو، دروازو او ښیښو ته یې ډېر مالي زیان اړولی دئ. په داسي حال کي چي ناټو ځواکونو ته زیان نه دئ اوښتی، ولي یو تن مزدورکار شهید او شپږ تنه نور لارویان ټپیان سول.

❁ جمعه د لیندی ۱۷ مه :-

د سهېل لوېدیځي حوزې د ملي پولیسو د روزنیز مرکز څخه ۳۰۰ تنه پولیس فارغه او د مراسمو په ترخ کي سندونه په داسي حال کي ورکول سول چي د دې مرکز مشر مل پاسوال نصرالله ظریفي شتون درلود.

❁ ۵ شنبه د لیندی ۱۶ مه :-

د اداري مجلس غونډه د ولایت مقام د مرستیال ډاکتر غلام جیلاني همایون په مشري د

ټولو دولتي ادارو د مسئولينو او استازو په ګډون د ولايت د غونډو په تالار کې جوړه سوه. په غونډه کې د لوېديځ لوري د ترانسپورټي اډې د کوچېدو له پاره د چارو د انتظام کړنلاره د ترانسپورټ د رئيس احمدشاه اسد لخوا ولوستل سوه، د ښار په لوېديځه څنډه کې هم د موټرانو د پلورنځيو د لېږدوني په باب د ټاکل سوي پلاوي تر څېړنګړونو وروسته د هغه کار پر څټکتيا هم ټينګار وسو. د ښار څخه د موټرانو د مستريخانو د لېږدوني په اړه و نوي ځای ته د آسانتياوو د برابرېدو په اړه هم لارښوونه وسوه.

❀ ۵ شنبه د لېندۍ ۱٦ مه :-

د کندهار ښار د پنځمي ناحيې د مېوې د تصدۍ سره د USPI ادارې د دفتر مخي ته د ځانمرګي برید په پایله کي د دې دفتر سیمه ایز مشر جېک او يو بل باندنی کس چي امريکايي تابعيت يې درلود وژل سوي او پنځه تنه افغاني کارکوونکي په شهادت رسېدلي او درې نور ټپيان سوي دي.

❀ جمعه د لېندۍ ۱۷ مه :-

په سپين بولدک کي د افغان امنيتي ځواکونو او ناټو پوځونو په ګډو عملياتو کي ۱۳ تنه باندني وراناکاره کسان د مخابرو، ۳ عرادو پيک اپ موټرونو، ۲۰ ډبو ډېزلو، ۱۳ چرېکي بسترو او يوه اندازه چاودېدونکو موادو سره ونيول سوه.

❀ يکشنبه د لېندۍ ۱۹ مه :-

د ولايتي شورا غونډه د شورا د رئيس احمدوليخان کرزي په مشري په نارنج مانۍ کي جوړه سوه، غونډي د محمديونس د قانوني قاتلانو د نيوله له امله د امنيه قوماندان څخه مننه وکړه. په غونډه کي د لويي وياليې اوسېدونکو ته د ځايونو د قانوني سندونو د ورکړي او د حضرت جي بابا په سيمه کي د ښاروالۍ مارکېټ د دوکاندارانو د کرايې ستونزي او يو لړ نور مسايل تر غور لاندي ونيول سوه.

❀ يکشنبه د لېندۍ ۱۹ مه :-

په نهم سمت کي د لويي وياليې دپاسه جوړ سوی پل چي د امريکا د متحده ايالاتو په مرسته د ٦۰ زره امريکايي ډالرو په لګښت جوړ سوی و په سهېل لوېديځ سمت کي د ناټو ځواکونو د مرستيال کرنل ويلميس لخوا د پټي په پرې کولو سره پرانستل سو.

❀ يکشنبه د لېندۍ ۱۹ مه :-

د بشري حقونو د نړيوالي اتحاديې اته پنځوسمه کاليزه د بشر د حقونو د خپلواک کمېسيون او د يوناما د دفترونو په ګډه همکاري د بشري حقونو په سيمه ايز دفتر کي د ولايت مقام د مرستيال غلام جيلاني همايون او د بشري حقونو د خپلواک کمېسيون مشر انجنيري عبدالقادر نورزي په شتون سره د ولايتي شورا د مشر مولوي سيدمحمد د دې شورا د غړو، امنيه قوماندان مل پاسوال عصمت الله عليزي، او همدارنګه د دولتي او نادولتي اړوندو ادارو د مسئولينو په ګډون ولمانځل سوه.

❀ ۲ شنبه د لېندۍ ۲۰ مه :-

امنيه قوماندان مل پاسوال عصمت الله عليزي وويل د دوی پوليسو د تلي پر ۲۳ مه نېټه د ولايتي شورا د غړي محمديونس حسيني د وژلو درې تنه عاملين نيولي او پخپل جرم يې اقرار کړی دئ. د وژونکو مشر حاجي محمد ويلي د دې کار له پاره ورسره د (۲۰۰۰۰۰) دوه سوه زرو پاکستانۍ کالدارو ژمنه سوې وه، د ډلي نور دوه غړي زرګي او بل نورمحمد مشهوره په ګلالي سره دي.

❀ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۱ مه :-

د کندهار ښار د دوو ولسواليو د بيا جوړوني د اوږدمهاله پلان دوې ورځنۍ سيمينار د کليو د پراختيا او بيا رغوني د رياست او اړوندو دولتي او نادولتي ادارو او مؤسسو د مسئولينو په ګډون په ماشاء الله صالون کي جوړ سو، چي د کليو د پراختيا وزارت استازو هم ګډون پکښي درلود.

❀ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۱ مه :-

د پاليسی او عمل د کمېټې نوبتي غونډي د منديګک په مانۍ کي د ولسمشر حامد کرزي په مشري په داسي حال کي چي ستر وزير هدايت امين ارسلا، د ملي دفاع وزير ستر جنرال عبدالرحيم وردګ، د کورنيو چارو وزير ضرار احمد مقبل، د ماليې وزير ډاکټر انورالحق احدي، د پوهني وزير محمدحنيف اتمر، د کليو د بيا جوړولو او پراختيا وزير محمداحسان ضيا، د اطلاعاتو او کلتور وزير عبدالکريم خرم، د نشه ايي توکيو پر خلاف د مبارزې د چارو وزير حبيب الله قادري، د ملي

امنيت سلاکار ډاکټر زلمی رسول، ستر اقتصادي سلاکار پوهاند ډاکټر محمد اسحاق نادري، د ملي امنيت لوی رئيس امرالله صالح، د کندهار، ارزګان، زابل او هلمند واليانو، د امريکا، کاناډا او هالينډ هيوادونو سفيرانو، د ملګرو ملتونو د سازمان، د اروپا د ټولني استازي او د آيساف او ناټو قوماندانانو ګډون درلود جوړه سوه. د همدې زون د امنيت او بيا رغوني د پراختيا، د سيمه ايز امن د جرګو د جوړېدو او د ناټو په عملياتو کي د ملکي خلکو د سر د زيانونو د مخنيوي په باب غور وسو.

ولسمشر د امنيت تامينول په لومړيتوبونو کي وګڼل او د دې غونډې په پای کي يې په خبري ناسته کي هم ګډون وکړ.

❀ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۲ مه :-

د اطلاعاتو او کلتور وزير عبدالکريم خرم په داسي حال کي چي د کندهار د اطلاعاتو کلتور رئيس عبدالمجيد بابي او د راډيو تلويزيون آمر محمدداود احمدي ورسره ملګري وه د راډيو تلويزيون په شمول د دې رياست د بېلابېلو څانګو څخه ليدنه وکړه. هغوی ته اطلاعاتو کلتور رئيس عبدالمجيد بابي ښه راغلاست ووايه وروسته د چاپي او تصويري مطبوعاتو د ستونزو په اړه پر مسايلو غور وسو، او بيا د طلوع افغان، کندهار مجلې، عامه کتابتون، موزيم، رشاد نندارتون او مطبعې څخه کاته تر سره سوه.

❀ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۲ مه :-

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو د قوماندانۍ لخوا په دامان ولسوالۍ کي يې د دالې او بېبلې درې په کليو کي د دوو جوماتونو د جوړېدو د بنسټ ډبري کېښوول سوې. د هر جومات له پاره پنځه سوه متره مربع مځکه بېله سوې او د دواړو لګښت ۵ سوه زره افغانۍ اټکل سوی دئ.

❀ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۲ مه :-

ولسمشر حامد کرزي د کندهار ښار د احمدشاه بابا د عالي لېسې څخه ليدنه وکړه، او هلته يې د يوې عالمانه وينا په ترڅ کي زده کوونکو ته وويل چي د ترهګرو د ګواښونو سره سره ښوونځيو ته ولاړ سئ او علم زده کړئ.

۴ شنبه د لېندۍ ۲۲ مه :-

ولسمشر حامد کرزي د خرقې مبارکي زيارت وکړه او د دغه مبارک زيارت او جومات د ډېرو د لګولو کار يې پرانيست. ښاغلي کرزي د ماښام د لمانځه تر ادا کولو وروسته د لمونځ کوونکو سره وکتل.

❀ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۲ مه :-

ولسمشر حامد کرزي د معيوبينو د استازو او همدارنګه د ژړۍ او پنجوايي ولسواليو د مشرانو او سپين ږيرو سره د منډيګک په ماڼۍ کي وکتل او د هغوی پر ستونزو يې مفصل خبري ورسره وکړې.

❀ شنبه د لېندۍ ۲۵ مه :-

د نړۍ په ۳۶ هيوادونو کي د کوچنيانو د انځورګرۍ په سياليو کي د کندهار څخه د دوهم پرله پسې کال له پاره زده کوونکي لومړی مقام تر لاسه کوي. سږ کال د محمود طرزي او زرغونې انا د لېسو څخه زده کوونکو لومړي مقامونه بيا تر لاسه کړه او نن د WFP او د ښوونځيو د ادارو لخوا انعامونه ورکړه سوه.

❀ جمعه د لېندۍ ۲۴ مه :-

د پنجوايي ولسوالۍ کي د باز د خوکي په علمياتو کي چي د ناټو، ملي پوليسو او ملي اردو د ځواکونو لخوا تر سره سوه د دولت ۱۰ تنه مخالفين ووژل سوه، چي په دې اتو تنو کي د هغوی مشر ملا شېرمحمد اخوند هم شامل دئ.

❀ شنبه د لېندۍ ۲۵ مه :-

د شاه حسين هوتک افغان ترک لېسې د دوولسمو ټولګيو د دوهمي دورې شپاړس تنو ته د فراغت ليکونه د يوې پراخي غونډې په ترڅ کي چي کندهار والي اسدالله خالد، د ولايت مرستيال غلام جيلاني همايون، د ولايتي شورا رئيس احمدولي کرزي، د کندهار پوهنتون رئيس اسدالله ترين، د اطلاعاتو کلتور رئيس عبدالمجيد بابي، د پوهني د رياست او د لېسو او ښوونځيو مديرانو او د افغان ترک لېسې مدير اُرهان جوش ګډون درلود ورکړه سوه.

❀ يکشنبه د لېندۍ ۲۶ مه :-

کندهار والي اسدالله خالد د ښاري پراختيا د رئيس انجنير ننګيالي په ملتيا د خرقې مبارکي د پارک له کار څخه چي د ولايت مقام د پرمختيايي

بودجې څخه د (۱۱) میلیونو او دوه سوه زره افغانیو په لګښت جوړېږي لېدنه وکړه.

❁ یکشنبه د لېندۍ ۲٦ مه :-

د ولایتي شورا په غونډه کې چې د شورا د رئیس احمدولي کرزي په مشرۍ د نارنج په ماڼۍ کې جوړه سوه د سهېل لوېدیځ سمت د (۴۰۰) تنو د دوولسمو ټولګیو د فارغینو په اړه د کانکور آزموینې ته د نوم لیکنې او دې ازموینه کې د بشپړه ګډون په مخ کې پرتې ستونزې وڅېړل سوې.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ۲۸ مه :-

په کندهار کې د وسایطو ختیځه اډه چې د ښاروالۍ ریاست لخوا په (۳۰) جریبه مځکه کې د اتیا میلیونو افغانیو په لګښت د سل بابه دوکانونو، هوټلونو او نورو اسانتیاوو په لرلو سره جوړه سوه. د کندهار والي اسدالله خالد لخوا پرانیستل سوه.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ۲۸ مه :-

کندهار والي اسدالله خالد په داسې حال کې چې امنیه قوماندان برید جنرال عصمت الله علیزی د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو قوماندان تورن جنرال رحمت الله روفي او په سهېل لوېدیځ سمت کې د ناټو ځواکونو قوماندان جنرال ډان لون هم شتون درلود په مطبوعاتي ناسته کې وویل چې د باز د څوکې په پوځي عملیاتو کې چې د ژړۍ او پنجوایي ولسوالیو کې څو ورځې دمخه پیل سوي و، د طالبانو دوه مشهور کسان (۳) قوماندانان او (۳۰) تنه نور وژل سوي دي.

❁ ۲ شنبه د لېندۍ ۲۸ مه :-

د هوا له لارې په پنجوایي او ژړۍ ولسوالیو کې د سیمې څخه د مخالفینو د وتلو او پرېښوولو په موخه اخطار لیکونه وپاشل سول. په دې سیمو کې د باز د څوکې په نوم پوځي عملیات د ملي اردو، ملي پولیسو او ناټو ځواکونو په ګډ ملاتړ پیل سوي دي.

❁ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۹ مه :-

په کندهار کې د ناټو پوځونو ویاند کپټن هینډري وویل : د څوکې د باز په عملیاتو کې چې تېره جمعه پیل سوي دي نن شپه د یوه دقیق خبر له مخې د مخالفینو یو لوژستیکي مرکز، یو پیک اپ موټر او د هغه سپرلي له منځه تللي او د مهماتو دوې زېرمې هم مونډل سوي دي.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۹ مه :-

د بشر د حقوقو د خپلواک کمېسیون د غونډو په تالار کې د کوچنیانو په وړاندې د تاوتریخوالي د مخنیوي موخه د پوځي د کار او ټولنیزو چارو، روغتیا، ښځو چارو، علماو شورا د ریاستونو او هم د امنیه قومانداني د اړوندي څانګې او CHA مؤسسې د ۴۰ تنو نارینه او ښځینه استازو په ګډون یو ورکشاپ جوړ سو.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ ۳۰ مه :-

په سهېل لوېدیځ سمت کې د ملي پاسوالي نصرالله ظریفي په مشرۍ د پولیسو د روزنیز مرکز څخه ۷۷ تنه د یوې غونډې په لړ کې فارغه او د هیوادوالو د چوپړ دګر ته ور دننه سوه.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ ۳۰ مه :-

د ناټو ځواکونو د مطبوعاتي څانګې مسئول مېجر هینډري وویل د همدې ورځې تېر ماخستن د پنجوایي ولسوالي په مربوطاتو کې د دولت ۲۰ تنه وسله وال مخالفین د څوکې د باز عملیاتو په لړ کې ونیول سوه. هغه وویل په بله سیمه کې د جګړې په ترڅ کې د مخالفینو د سلو کسو څخه ۵۰ کسه وژل سوي او نورېږي په تېښته بریالي سوي دي.

هغه ویلي زموږ او دولتي ځواکونو ته زیان نه دئ اوښتی.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ ۳۰ مه :-

په ولایتي شورا کې تر غور وروسته څرګنده سوه چې ځیني کسان په مرکز کې غواړي د دې تاریخي سیمې راتلونکې د تاریکۍ سره مخ کړي. دا خبره هغه مهال راپورته سوه چې د دې سمت د دوولسمو ټولګیو د فارغینو له پاره په کندهار پوهنتون کې د کانکور آزموینې ته چې باید نن اخیستل سوې وای د نوم لیکنې کاروونه چې دمخه لا په کابل کې بشپړ سوي وه زیاته برخه یې نه ده رارسېدلې.

نو ځکه د ولایت مقام د مرستیال ډاکټر غلام جیلاني همایون په هڅو سره دا ورځ سبا ته وځنډېده.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ ۳۰ مه :-

د ولایتي شورا غونډه د دې شورا د مرستیال نعمت الله خان شېردلي په مشرۍ په نارنج ماڼۍ کې

جوړه او پر ور رسېدلو عرضېانو د حل و فصل له پاره غور وسو.

❀ ۴ شنبه د لېندۍ ۳۰ مه :-

امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي وویل په تېرو ورځو کې پنځه تنه چې په پولیسو کې یې دندې درلودې د غلا په جرم نیولي دي هغه وویل درې تنه د صالحان د امنیتي پوستې پولیس دي چې د خلکو څخه یې موټرسایکلونه او موبایل ټلیفونونه غلا کړي وه او بل کس چې کرولا موټر یې غلا کړی و د همدې میاشتي پر ۲۴ مه نېټه ونیول سو.

❀ جمعه د مرغومي اوله :-

د پنجوایي ولسوالۍ په مرکز کې یوه لویه غونډه جوړه سوه، په غونډه کې کندهار والي اسدالله خالد، د ولسي جرگې غړي ملا سیدمحمد، د سولې د ټینګښت د جرګه ګۍ مشر حاجي آغا لالي، د سیمو قومي او جهادي مشرانو، د ولسوالیو شوراګانو غړو، امنیه قوماندان جنرال عصمت الله علیزي برخه لرله.

اسدالله خالد، علیزي او حاجي آغا لالي دستګیري په خپلو خبرو کې په سیمه کې د مخالفینو وروستۍ شتون او ورانکارۍ وغندلې او د هغوی د ټکوني څخه یې خوښي څرګنده کړه او تر څنګ یې په سیمو کې بیرته د اوسېدونکو د میشت کېدو او د ورانکارو د لیکو څخه د ځوانانو او کښرانو د راګرځېدو او سیمې ته د هغو ننوتلو په وړاندې د درېدنې په اړه پراخې وییناوې وکړې.

❀ شنبه د مرغومي دوهمه :-

د ایساف ځواکونو مطبوعاتي مسئول ډیو مارش وویل په پنجوایي او ژړۍ ولسوالیو کې دښمن ځپل سوی او هلته امنیت ساتل سوی دئ.

هغه وویل تېره پنجشنبه په تلوکان کې د مشرانو سره تر غونډې وروسته پرېکړه وسوه چې په سیمه کې د افغاني ځواکونو له پاره د امنیتي پوستو د ځای پر ځای کېدو له پاره د ودانیو کار پیلېږي.

❀ شنبه د مرغومي دوهمه :-

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو د لومړۍ لوا د توپچي بطري پوځي تطبیقات د دې قوماندانۍ په مربوطاتو کې تر سره سوه.

❀ شنبه د مرغومي دوهمه :-

د فرهنګ او ځوانانو ریاست له لوري د میاشتنۍ ادبي ناستو په لړ کې د مرغومي د میاشتي ناسته د همدې ریاست په تالار کې د فرهنګ او ځوانانو د رئیس عبدالمجید بابي په وینا پیل سوه، بیا صدیق الله اجتماعي د ښاغلي بابي څخه د دغه ډول ناستو او د ځوانانو د ادبي روزنې له امله مننه وکړه، وروسته ګڼ شمېر شاعرانو خپل شعرونه او ادبي ټوټې ولوستلې.

❀ یکشنبه د مرغومي ۳ یمه :-

د میرویس روغتون د ۷۱ تنو نرسانو، ډاکټرانو او اداري کارکوونکو او فارمیساتو څخه د مرکز څخه د راغلي اداري اصلاحاتو د راغلي پلاوي له لوري د اداري اصلاحاتو ازموینه واخیستل سوه.

❀ یکشنبه د مرغومي ۳ یمه :-

کندهار والي اسدالله خالد په داسي حال کې چې امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزی هم ورسره ملګری و د سیمو د سپین ږیرو سره یو ځای د پنجوایي ولسوالۍ د سپېروان له کلي څخه چې په دې وروستیو کې د مخالفینو څخه پاک سوی دئ لیدنه وکړه.

په دې کتنه کې د حوض مدد یو شمېر اوسېدونکو هم شتون درلود. کندهار والي د هغوی څخه وغوښتل چې مخالفینو ته په خپلو سیمو کې ځای ورنکړي. همدارنګه یې د خلکو سره د امنیتي پوستو پر جوړېدو هم خبري وکړې.

❀ یکشنبه د مرغومي ۳ یمه :-

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو لخوا د درنو وسلو روزنیز کورس د یوې غونډې په ترڅ کې چې مشري یې د دې قول اردو مشر جنرال رحمت الله رووفي کوله پای ته ورسېد.

❀ ۳ شنبه د مرغومي ۵ مه :-

کندهار والي اسدالله خالد وویل چې :-

د سیمې د سپین ږیرو، خلکو د وکیلانو او چارواکو د هڅو په برکت به ۳۶ نوي ښوونځي په کندهار کې جوړ سي، د اوس څخه او په سپین بولدک کې د (۲،۱) میلیونه ډالرو په لګښت د اوو ښوونځیو کار پیل سوی دئ.

همدارنګه ښاغلي خالد وویل د بیا جوړوني په

برخه کي په ښار کي د ۱۰ کیلومترو سړکانو د ډامبرېدو کار پیل سوی او ډېر ژر به د کندهار ولایت د معروف ولسوالۍ به په یوه پاخه سړک سره د زابل د شینکۍ او اتغر ولسوالیو سره ومښلول سي.

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۵ مه :-

د ملي دفاع وزیر ستر جنرال عبدالرحیم وردګ په کندهار کي د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو د قرارګاه څخه لیدنه وکړه، هغوی وړ افسران په نقدي جایزو، سوغاتونو، فوق العاده ترفیعګانو، او ستاینلیکونو سره ونازول.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۱۴ مه :-

په ولسوالیو کي د کوکنارو د کښت د ماتولو له پاره د جوړو سوو کمېسیونونو غړو د کندهار والي اسدالله خالد سره وکتل.

ښاغلي خالد وویل سږکال د تېرو کلو په پرتله دغه کښت لږ سوی، وروسته د دغو کښتونو د ماتولو پر لارو چارو خبري وسوې، او پرېکړه وسوه چي دا چاري به ډېري ژر پیل سي.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۱۴ مه :-

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو قوماندان جنرال رحمت الله رووفي د پنجوایي ولسوالۍ د سپین ږیرو او مشرانو سره په سیمه کي د امنیت د ټینګښت په موخه د همدې ولسوالۍ د لال خان په کلي کي وکتل.

❁ یکشنبه د مرغومي ۱۷ مه :-

د کندهار والي اسدالله خالد په مشري په داسي حال کي چي مرستیال والي غلام جیلاني همایون هم شتون درلود د پوهني، بیا رغوني، کرهني او مالدارۍ د ادارو پر پرمختیایي بودجه او د لګښت پر لارو چارو یې خبري وکړې.

په دغه پروګرام کي چي د ۱۳۸٦ کال له پاره کندهار، پنجشېر او بلخ په ګوته کوي د کرهني ریاست ته ۳۵، ۲۵ بیلیونه د کلیو پراختیا ریاست ته ۷٦، ۱۷۴ بیلیونه او د پوهني ریاست ته ۵۰۰ بیلیونه افغانۍ د مالیې وزارت لخوا د پرمختیایي بودجې په توګه په پام کي نیول سوي دي.

❁ یکشنبه د مرغومي ۱۷ مه :-

د سپین بولدک ولسوالۍ د شورا غړو د خپلي شورا په دفتر کي د یوې ناستي په اوږدو کي چي د دې ولسوالۍ ولسوال حاجي عبدالخالق بالاکرزی هم ګډون پکښي درلود د کوکنارو کښت په کلکه وغانده او د هغه سره یې مخالفت څرګند کړ.

❁ ۲ شنبه د مرغومي ۱۸ مه :-

کندهار ته د کلیو د پراختیا او بیا رغوني، کرهني او مالدارۍ د وزیرانو په مشرتوب د راغلي پلاوي په راتلو سره د بیا رغوني د پروژو پیل د سروې او مشورو وروسته پیل سوه.

د کلیو د پراختیا وزیر انجنیر محمداحسان ضیاء د پنجوایي په ولسوالۍ کي د دې ولسوالۍ د خلکو سره وکتل. هغوی ته یې د پروژو د پیلېدو ډاډ ورکړ او وې ویل هري ولسوالۍ ته ۲۰۰ زره ډالره منظور سوي دي.

هغه وویل د دامان، بولدک، میوند او معروف ولسوالیو له پاره د کوکنارو د کښت د مخنیوي او بدیلو کښتونو له پاره ۵ میلیونه ډالره په پام کي دي.

هغه په ټولو ولسوالیو کي د ملي پیوستون د پروګرام د پیلېدو زېری هم ورکړ.

د کرهني وزیر عبیدالله رامین په ښار کي د وچي او لندې مېوې د سوداګرو، کرونده ګرو، باغ لرونکو او د کرهني او مالدارۍ په برخه کي د مشرانو او استازو سره وکتل.

هغه وویل د دهلې د بند تر څنګ به بل بند هم جوړ سي. راغلي پلاوی د کندهار والي په ملتیا د دهلې د بند څخه هم لیدنه وکړه. دا پلاوی به تر څو ورځو پوري په کندهار کي پاته سي.

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۱۸ مه :-

د ترانسپورټ رئیس احمدشاه اسد وویل د ترانسپورټ په عوایدو کي په سلو کي ۵، ۳۸ زیاتوالی راغلی دئ.

۳ شنبه د مرغومي ۱۸ مه :-

د هیواد د باندنیو چارو وزیر ډاکټر رنګین دادفر سپنتا د خپل کاناډایي سیال پیټرنیک په ملتیا په کندهار کي د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو د منسوبانو او د ولایتي بیا رغوني یا PRT له کارکوونکو او منسوبانو، په سیمه کي د امنیت او سرحدونو د ډاډمني دفاع په موخه وکتل.

هغوی ته د همدې قول اردو په قرارګاه کي

جنرال رحمت الله رووفي ښه راغلاست ووایه او د امنیت په اړه یې تر ځرګندونو وروسته د داړ او سربښندنې تیاري وښود.

❁ ۴ شنبه د مرغومي ۲۰ مه :-

د بیات بنیاد له لوري د شهید عبدالاحد کرزي د روزنتون د ۴۰۰ تنو یتیمو او بېوزلو زده کوونکو سره د بوټونو، خوراکي توکیو او جامو مرسته وسوه.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۲۱ مه :-

د کلیو د پراختیا وزیر انجنیر محمد احسان ضیاء په داسې حال کې چې کندهار والي اسدالله خالد ورسره ملتیا درلوده، د سپین بولدک د بېلابېلو کلیو د مشرانو او سپین ږیرو سره وکتل، د سپین ږیرو لخوا د ستونزو تر اورولو وروسته ښاغلي ضیاء وویل ژر به د ملي پیوستون پروژې ستاسې په خوښه پیل سي.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۲۱ مه :-

د مطبوعاتو په قانون کې د بدلون راوستلو او نظر غوښتلو غونډه د همدې سمت د ژورنالیستانو په ګډون د ژورنالیستانو د خپلواکې ټولنې له خوا د بشر د حقوقو په سیمه ایز دفتر کې جوړه سوه.

❁ شنبه د مرغومي ۲۳ مه :-

د لوی کندهار د درمل پلورونکو اتحادیې د عامې روغتیا ریاست سره د ۵۵۰ زره افغانیو په ارزښت د درملو مرسته وکړه او د دې اتحادیې د مشر حاجي رحیم الدین لخوا د عامې روغتیا رئیس ډاکټر عبدالقیوم پخلا ته وسپارل سوه.

❁ یکشنبه د مرغومي ۲۴ مه :-

په همدې سمت کې د فلج ناروغۍ پر خلاف د واکسین درې ورځنۍ کمپاین پیل سو.

د عامې روغتیا رئیس ډاکټر عبدالقیوم پخلا په یوه پیغام کې ځرګند هکړه چې ټوله هغه کوچنیان چې تر پنځه کاله لږ عمر ولري د کورنیو او مشرانو لخوا دې د پروګرام ګمارل سوو کسانو ته ور وستل سي تر څو واکسین کړه سي.

❁ ۲ شنبه د مرغومي ۲۵ مه :-

په کندهار کې د کلیو د پراختیا او بیا رغونې وزیر انجنیر محمداحسان ضیاء د اوو دېرشو پروژو قراردادونه د شخصي شرکتونو سره لاسلیک کړه.

دغه پروژې د هلمند او کندهار له پاره دي او د ۱۸ میلیونه ډالر په ورباندي ولګېږي.

د کندهار ونده به یې ۱۳ میلیونه څلور شپېته زره اته سوه درویشت ډالره وي.

د یادونې وړ ده چې د نوموړې وزارت له لوري به نوري پروژې هم تر لاس لاندې ونیول سي.

❁ ۲ شنبه د مرغومي ۲۵ مه :-

د کورنیو چارو وزارت امنیتي مرستیال، د ملي دفاع وزارت لوی درستیز او اوپراسیون مرستیال په ۲۰۵ نمبر قول اردو کې د ګڼ شمېر سپین ږیرو، ولایتي شورا د غړو او دولتي ادارو د مسئولینو سره د کال په اوږدو کې پر پرمختیایي پلانونو وږغېدل.

په غونډه کې چې زابل والي دلبر ارمان هم شتون درلود ورته د ۲۰۵ نمبر قول اردو قوماندان جنرال رحمت الله رووفي ښه راغلاست ووایه او د امنیت د پیاوړتیا او په هغه کې د مشرانو پر مسئولیتونو او د ځوانانو پر ملاتړ هم خبري وسوې.

❁ ۲ شنبه د مرغومي ۲۵ مه :-

د سهېل لوېدیځ سمت د پولیسو د روزنیز مرکز څخه ۴۷ تنه پولیس فارغ او نن د یوې غونډې په لړ کې چې مشرتوب یې مل پاسوال نصرالله ظریفي کاوه د یو لړ مراسمو په جوړېدو سره د ټولنې د خدمت له پاره وګمارل سوه.

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۲۶ مه :-

د پنجوایي او ژړۍ ولسوالیو کې د شهیدانو د ۱۹ تنو وارثینو او ټپیانو سره د ولسمشر لخوا نقدي مرستې د جنرال محمداسلم مسعود په لاس په داسې حال کې چې د ولایت مقام مرستیال غلام جیلاني همایون او د سولې او ملي پخلاینې د کمېسیون رئیس حاجي اغا لالي دستګیري هم شتون درلود د هر شهید له پاره ۲۰۰ زره او د پنځو ټپیانو هر یوه ته پنځوس زره افغانۍ ووېشل سوې.

❁ ۴ شنبه د مرغومي ۲۷ مه :-

د ۲۰۵ نمبر قول اردو قوماندان تورنجنرال رحمت الله رووفي په ژړۍ او پنجوایي ولسوالیو کې د دې قول اردو د مېشتو ټولیو څخه لیدنه وکړه او وړ کسان یې په ستاینلیکونو او سوغاتونو ونازول.

❁ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۷ مه :-

د کندهار د طبي ډاکټرانو د ټولنې د جوړېدو د دوهم کال د بشپړېدو څخه د یوې غونډې په ترځ

کي د عامي روغتيا د غونډو په تالار کي په داسي حال کي چي اداري رئيس غلام فاروق فرهمند هم شتون درلود يادونه وسوه. چي په سلګونو ډاکټرانو پکښې برخه اخيستې وه، پر تشکيلاتي، مالي، علمي او فرهنګي مسايلو هم غور وسو او ور پرېکړي وسوې.

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۲٦ مه :-

د سنځري په سيمه کي د سړک پر غاړه ښخ سوی ماين د ناټو ځواکونو دوه تنه سرتېري ټپيان کړه، دا ماين هغه مهال وچاودېد چي د ناټو ځواکونو موټريز کاروان يې له څنګه تېرېده.

❁ ۴ شنبه د مرغومي ۲۷ مه:-

د کورنيو چارو د وزارت امنيتي مرستيال تورنجنرال عبدالهادي خالد په داسي حال کي چي امنيه قوماندان بريد جنرال عصمت الله عليزی هم ورسره ملګری و د ملي پوليسو د روزنيز مرکز څخه ليدنه وکړه او پوليس يې په نقدي سوغاتونو ونازول.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۲۸ مه :-

د اداري مجلس په غونډه کي چي د ولايت مقام د مرستيال غلام جيلاني همايون په مشري د ولايت مقام د غونډو په تالار کي جوړه سوه، د لوېديځو ترانسپورتي وسايطو د اډې د فرعي سړکانو د ډامبرېدو او برېښنا د بهير سره يو ځای د تشنابو او نورو نيمګړتياوو د ليري کېدو له پاره ښاروالۍ رياست ته دنده وسپارل سوه همدارنګه د مامورينو او اجيرانو د سرپناه له پاره د مځکو پر وېش غور وسو.

چي د مځکي د يوه متر بيه يې ۲۵ افغانۍ وټاکل سوه، همدارنګه د اوبو د نلونو، د محصول او د ځينو رياستونو له پاره د ودانيو د جوړېدو له پاره د مځکو د بېلېدو او همدارنګه د اطلاعاتو کلتور رياست پر وړانديز چي د علامه رشاد د قبر تر څنګ دي څه مځکه د رشاد اکاډمۍ له پاره بېله سي غور وسو او لازمي پرېکړي وسوې.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۲۸ مه :-

کندهار والي اسدالله خالد وويل د ملي امنيت کارکوونکو ۲۰ تنه شر اچوونکي او وسله وال طالبان ژوندي نيولي دي او د دوی سره مل د پنجوايي او ژړۍ ولسواليو په عملياتو کي دخيل ملا محمدامين د طالبانو سيمه ايز قوماندان د خپل عمل په سزا رسېدلی دئ.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۲۸ مه :-

په کندهار پوهنتون کي د علامه حبيبي رحمه‌الله عليه په نوم کتابتون د يوې غونډې په ترڅ کي د پوهنتون د سرپرست رئيس ډاکټر اسدالله ترين او د اطلاعاتو کلتور رئيس عبدالمجيد بابي لخوا په داسي حال کي چي د پوهنځيو رئيسانو او ګڼ شمېر محصلينو او استادانو شتون درلود پرانستل سو.

په غونډه کي د کتابتون د سمبالوونکي ARLDF مؤسسې له مسئولينو څخه قدرداني وسوه چي په دې برخه کي يې ۱۸۰۰۰ زره امريکايي ډالره لګولي وريې د اطلاعاتو کلتور او ځوانانو رئيس ښاغلي بابي، د طب پوهنځي رئيس ډاکټر وثيق، د ښوونې او روزنې رئيس عبدالرحمن بابي، د انجنيري پوهنځي رئيس عبداللطيف اشنا هم د کتابتون د ارزښت او سالمي ګټې اخيستني پر اړتيا خبري وکړې.

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۲۸ مه :-

د ملي امنيت رئيس عبدالقيوم کټوازي وويل د يوې اوونۍ په اوږدو کي هغوی نهه تنه ترهګر د مستندو سندونو پر بنسټ چي په ځانمرګو بريدونو کي يې هم لاس درلود د چاودېدونکو توکيو، واسکټونو او پنځو عرادو موټرانو سره يو ځای نيولي دي او تر پوښتنو لاندي دي.

❁ يکشنبه د سلواغې اوله :-

د ولايت مقام مرستيال غلام جيلاني همايون د خپل کار په دفتر کي د اېران د سرقنسلګرۍ د مرستيال رزاق قاسمي سره وکتل، ښاغلي قاسمي د هغه د هيواد د سرې مياشتي لخوا د روغتيايي کلينيک د جوړېدو ژمنه وکړه، په مقابل کي ښاغلی همايون د دوی څخه مننه وکړه.

❁ يکشنبه د سلواغې اوله :-

د اطلاعاتو کلتور رياست مياشتنۍ ادبي ناسته د دې رياست د غونډو په تالار کي د اطلاعاتو کلتور د رئيس عبدالمجيد بابي په پرانيستونکې وينا سره پيل سوه. هغوی دغه ډول غونډي د ځوانانو د استعدادونو د غوړېدني له پاره ګټوري وبللې، وروسته مشاعره پيل او زياتو ځوانو شاعرانو خپل شعرونه او ادبي پارچې واورولې.

❁ یکشنبه د سلواغې اوله :-

د کارېز بازار درې کیلومتره سړک د ولایت مقام د هدایت سره سم د ډامبر کېدو وروسته نن ګټې اخیستنې ته پرانستل سو.

❁ یکشنبه د سلواغې اوله :-

د پنجوایي ولسوالۍ د سپېروان د کلي ښوونځي چې د امنیت د خرابۍ له امله تړل سوی و نن بیرته د ولایت مقام د مرستیال غلام جیلاني همایون لخوا د سپین ږیرو، مشرانو او مخورو په وړاندې چې دولایتي بیا رغوني د ټیم غړي هم ورسره وه پرانستل سو.

❁ یکشنبه د سلواغې اوله :-

کندهار امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي وویل د خلکو د شکایت پر بنسټ هغه درې تنه پولیس چې د جمعې په ورځ د نامعلومه کسانو لخوا د دوی پر امنیتي حوزه باندې تر ډزو وروسته هغوی په بې مسئولیتۍ سره د بېځایه ډزو په کولو خلک آزار سوي وه نیولي او تر پوښتني لاندې دي.

❁ یکشنبه د سلواغې اوله :-

د ولایتي شورا په غونډه کي چې د احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه د ختیځ لین د وسایطو د ټرانسپورټي چارو د ښه والي د سردار مدد خان ښوونځي مخامخ د لوړ پوړه ودانۍ د جوړېدو، د امن جرګې د جوړېدو له پاره د عامه پوهاوي په پراخه غونډه غور وسو او د شورا د غړي شهید محمدیونس حسیني له پاره د هغه مېرمني ته د ولسمشر لخوا د ۵۰۰ زرو افغانیو او یوې نمرې ځمکي د ورکړي له امله شورا د خوښۍ څرګندونه وکړه او هغه مرحوم ته یې د مغفرت دوعا وکړه.

❁ دوشنبه د سلواغې دوهمه :-

د کندهار ولایت د ډنډ، دامان، پنجوایي او میوند ولسوالیو کي په داسې حال کي چې د ولایت د مرستیال غلام جیلاني همایون، د ملګرو ملتونو د اړوندو ادارو استازو، د نشه یي توکیو سره د مبارزې د ادارې مسئولینو، ولسوالانو او امنیه قوماندانانو شتون درلود د کوکنارو د اړولو کمپاین پیل سو او دا بهیر به دوام ولري.

❁ دوشنبه د سلواغې دوهمه :-

د پولیسو د روزنیز مرکز څخه چې مشرتوب یې مل پاسوال نصرالله ظریفي کوي ۱۷۰ تنه نور مرستندویه پولیس فارغ او د ټولني د خدمت او امنیت د ساتني له پاره خدمت ته وګمارل سوه.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۳ یمه :-

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو قوماندانۍ لخوا د دامان ولسوالۍ د نوده او لندي په کلیو کي دوه ژور څاهان د دې قول اردو د ګارنېزیون د قوماندان تورن جنرال حاجي ګلالي لخوا ګټې اخیستني ته وړاندې سوه.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۳ یمه :-

په پنجوایي ولسوالۍ کي د ملي پیوستون پروګرام په داسې حال کي چې د ولایتي شورا غړې حاجي اغا لالی د پروګرام مسئولین سردار محمد سنګر او د ولسوالۍ ګڼ شمېر سپین ږیرو شتون درلود پیل سو. دغه پروژې د څښاک پاکي اوبه برابروي چې یوه یې د ۳۲۹ زرو افغانیو او بله یې ۳۵۰ زرو افغانیو په لګښت سر ته رسېږي.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۳ یمه :-

د لیک لوست زده کړې مدیریت د نهه میاشتنیو کورسونو څخه ۲۴۰۰ تنو فارغینو ته د دې مدیریت د مسئول عبدالباقي لخوا د پوهني د ریاست د سرپرست سلطان محمد عزیزي د شتون په صورت کي فراغت لیکونه ورکړه سوه، د مسئولینو په وینا دا لړۍ به دوام ولري.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۴ مه :-

د امن جرګې د پوهاوي له پاره د لویې غونډې د جوړېدو پر لارو چارو د مرکز څخه د پارلماني چارو سلاکار مومند د ولایت شورا غونډې ته په داسې حال کي چې د ولایت مقام مرستیال غلام جیلاني همایون، د اطلاعاتو کلتور رئیس عبدالمجید بابی، د قبایلو رئیس عبدالباقي رغبت، او ښاروال زمری عثمان هم شتون درلود معلومات واورول او د شورا او د ولایت مقام همکاري یې وغوښته.

د شورا او ولایت مقام لخوا په منډیګک مانۍ کي په دې اړه د پراخې غونډې د جوړېدني په لاره کي د همکارۍ ډاډ ورکړه سو، وروسته ولایتي شورا پر رسېدلو عرضیانو غور وکړ.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۴ مه :-

امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي وویل تېره اونۍ د یوه میل توپنچې لېږدوونکی عبدالباري د یوې عرادې موټرسایکل او غل پیرمحمد د شاه محمد زوی نیول سوي دي، او همدارنګه سیداکبر، د محمداکبر زوی، سلام د محمدشاه زوی او شاه ولي د عبدالولي زوی چې د پولیسو د جامو څخه په ګټه اخیستنه سره یې پخپلو منځو کي جګړه کوله د وسلو سره نیول سوي او همدارنګه د جعل کارۍ د برېښنا د مزو غله، ۴۰ پارسله چرس او څه نور غله او د ناقانونه چارو مجرمین نیول سوي دي.

❁ جمعه د سلواغې ۵ مه :-

د کندهار امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي وویل د کندهار د دوهم سمت اوسېدونکی خالد د فیض محمد زوی چې د انجنیر نظر محمد کور ته یې د طالبانو په نوم د ۳۰ زرو ډالرو د ورکړي له پاره لیک لېږلی و، د پیسو پر ځای په ټاکلي ځای کي د کاغذو د پاکټ د ایښوولو په تاکتیک سره لاس په لاس ونیول سو.

❁ جمعه د سلواغې ۵ مه :-

د کرکټ د لوبو مسئول عبدالولي امین وویل د دې لوبو ټورنمنټ د نوي عیدګاه په ساحه کي پیل سو او هره جمعه به دوې لوبې تر سره کېږي او تر یوې میاشتي پوري به وغځېږي.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۵ مه :-

د کاریز بازار سیمي مشرانو د امنیه قماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي سره د دوی د ښه کار او فعالیت د ستاینې او منني په موخه وکتل، چې د سیمي د مشرانو سره د ولایتي شورا مرستیال نعمت الله خان شېردلی او د دې شوار منشي بسم الله افغانمل هم ملتیا درلوده.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۵ مه :-

د امریکا د نړیوالي مرستندویه اداري USID لخوا په کندهار کي د هبیتات مؤسسې د ځوانانو چارو څانګې سره د مرستو څخه د دې څانګې مشر عبدالقدیم پتیال اطلاعاتو کلتور ریاست ته هم څلور دفتري مېزونه، اته یو نفري چوکۍ او دوې الماری وسپارلې چې د اطلاعاتو کلتور او ځوانانو د رئیس عبدالمجید بابي لخوا د کوروداني په ویلو سره ومنل سوه.

❁ جمعه د سلواغې ٦ مه :-

د امنیتي قوماندانۍ د مؤسساتو د ساتنې د کنډک قوماندان احمد د ناخرګندو وسله والو په ډزو په ښکارپر بازار کي د پوپل مارکېټ مخ ته په شهادت ورسېد. امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي وویل په ډزو کي د قوماندان احمد سره یو تن ملګری هم شهید سوی او یو بل ملکی تن ټپي سوی دئ.

❁ شنبه د سلواغې ۷ مه :-

د ایران د اسلامي جمهوریت سرقنسل شیخ زین الدین د عبدالاحد خان کرزي د روزنتون د یتیمو زده کوونکو سره د پنځو سوو تختو شړیو، لوښو، ګازي او تیلي بخاریو، او همدارنګه د ښوونکو او زده کوونکو سره د نقدي پیسو مرسته وکړه چې د ټولنیزو چارو د رئیس دوست محمد ارغساني لخوا ورڅخه مننه وسوه.

❁ شنبه د سلواغې ۷ مه :-

د امن جرګې د پوهاوي پراخه غونډه د ښار او ولسوالیو د مشرانو، ولایتي شورا د غړو، دیني عالمانو او مدني ټولنو د استازو په ګډون په منډیګک ماني کي جوړه سوه، غونډي ته کندهار والي اسدالله خالد پرانستونکې وینا وکړه همدارنګه د امن جرګې د جوړېدو د کمېسیون په استازیتوب مومند، د ولایتي جرګې منشي بسم الله افغانمل، د ولسي جرګې غړي عبدالقیوم کرزي د موضوع په اړه خبري وکړې، غونډي ته د سید عبدالظاهر اغا لخوا د شعر تر لوستلو وروسته انجنیر عبداللطیف آشنا، حاجي فدامحمد معلم محمداکبر او ملا نقیب الله اخوند پوښتني درلودې چې ورته قانع کوونکي جوابونه وویل سوه او د امن د جرګې جوړېدل ومنل سوه.

❁ ۲ شنبه د سلواغې ۹ مه :-

د حضرت امام حسین او د ده د یارانو د پاڅون او د کربلا په پېښه کي د هغوی د شهادت ورځ د کندهار په امام باره کي ولمانځل سوه. په غونډه کي کندهار والي اسدالله خالد، د کلیو پراختیا وزیر محمداحسان ضیاء، امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي، د ولایتي شورا رئیس احمدولي کرزي، د ۲۰۵ نمبر قول اردو مرستیال او یو شمېر

دولتي مسئولينو هم ګډون درلود.
ويناوالو لکه شيخ کندهار والي، حسيني، د کليو د پراختيا او بيا رغوني وزير او نورو د امام حسين د مېړاني او د ظلم په وړاندې د درېدني څخه يادونه وکړه.
۞ ۳ شنبه د سلواغې ۱۰ مه :-
کندهار والي اسدالله خالد د دامان ولسوالۍ په مربوطاتو کې د ملي پيوستون د پيل سوي پروګرام او کوکنارو د کښت د اړولو څخه د کليو د پراختيا او بيا رغوني د وزير محمداحسان ضياء په ملتيا ليدنه وکړه. د دامان ولسوالۍ کې ۲۵ کانالونه د پاکېدو او د ترنک د پاسه د يوه نوي پل جوړېدنه سل سوې چې د هغه کار به هم ژر پيل سي.
۞ ۳ شنبه د سلواغې ۱۰ مه :-
د سپين بولدک مشرانو، عالمانو او مخورو د امن د جرګې د جوړېدو څخه په هغه غونډه کې چې د ولسوال حاجي عبدالخالق بالاکرزي په مشرۍ جوړه سوې وه څپل بشپړه ملاتړ څرګند کړ.
۞ ۴ شنبه د سلواغې ۱۱ مه :-
د ولايتي شورا غونډه د احمدولي کرزي په مشرۍ جوړه سوه او په ښار کې يې د لوړ پوړو ودانيو او لوړو مارکېټونو د جوړېدو پر مخنيوي غور وکړ او غوره وبلل سوه چې څلور اصلي بازارونه خوندي پاته سي او هر دوکان د اړتيا پر مهال پر سابقه ډول جوړ سي.
۞ ۴ شنبه د سلواغې ۱۱ مه :-
د اطلاعاتو فرهنګ او ځوانانو رياست او په کندهار کې د شيخ محمدطاهر فرهنګي ټولني لخوا د اطلاعاتو فرهنګ رياست د غونډو په تالار کې د رسامۍ او خطاطۍ يو په زړه پوري ننداړتون په داسې حال کې چې د ولايت مقام مرستيال غلام جيلاني همايون، د اطلاعاتو فرهنګ او ځوانانو رئيس عبدالمجيد بابي، د پوهني رئيس حيات الله رفيقي، د ولايتي شورا منشي بسم الله افغانمل، ډاکټر عبدالرازق پالوال او ګڼ شمېر فرهنګيانو او د ليک او رساميو مينه والو برخه لرله پرانستل سو.
د ننداړتون پرانستونکې وينا عبدالمجيد بابي واوروله، وروسته د موضوع په اړه د ولايت مقام مرستيال غلام جيلاني همايون هم وينا وکړه، بيا دغه د مختاراحمد راضي او درخشان د (٦٠) څخه د زياتو هنري تونو ننداړتون ښاغلو همايون او بابي پرانيست.
۞ شنبه د سلواغې ۱۴ مه :-
په کندهار او ارزوګان کې د ۷۱ ټولګټو پروژو د عملي کولو تړونونه د کليو د پراختيا او بيا رغوني د وزير انجنير احسان ضياء او د قراردادیانو او ولسواليو د شوراګانو تر منځ د ښوونځيو، استنادي دېوالونو، بندونو، برېښنايي دستګاو، کارېزو پاکوني، ويالو پاکېدني او پلچکونو د جوړېدو په برخه کې د نهه ميلونو ډالرو په ارزښت لاسليک سوه. دمخه تر دې په کندهار کې د ۶۴ دغه ډول پروژو کار پيل سوی و.
۞ شنبه د سلواغې ۱۴ مه :-
د عامې روغتيا رئيس ډاکټر عبدالقيوم پخلا وويل د عامې روغتيا د وزارت د تصميم له مخې به د ټوله هيواد په شان په کندهار محبس کې هم د بنديانو د معاينې او درملنې عمومي کمپاين پيل کړه سي.
۞ شنبه د سلواغې ۱۴ مه :-
د کندهار د امنيتي قوماندانۍ د اړوندې ادارې مؤظفينو د کندهار د ديني عالمانو د شورا د غړي مولوي عبدالمالک د ژوني په تور ۳ تنه قاتلان هر يو فضل احمد مشهور په خان د ګل محمد زوی، محمدشفيق د محمدحنيف زوی او خان محمد د حاجي ګل محمد اغا زوی نيولي او پر خپل جرم يې اعتراف کړی دئ. امنيه قوماندان مل پاسوال عصمت الله عليزي وويل :-
عبدالمالک د تېرې مياشتې پر ۲۸ مه نېټه د کوبې په سيمه کې په شهادت رسېدلی و، ښاغلي عليزي وويل قاتلينو په لومړيو تحقيقاتو کې څرګنده کړه چې عالم يې په کور کې بېهوښه بيا يې په رسۍ وتړی او بيا يې په چاقو او چړو وواهه او د کوبې په سيمه کې يې وغورځاوه.
۞ شنبه د سلواغې ۱۴ مه :-
امنيه قوماندان مل پاسوال عصمت الله عليزي وويل د دوی پوليسو ۱۳۰ کيلوګرامه ترياک د ارغسان ولسوالۍ په مربوطاتو کې تر لاسه کړي دي.
۞ شنبه د سلواغې ۱۴ مه :-
د ملي امنيت مسئولينو څرګنده کړه چې په

دې وروستیو کې یې ٦ تنه ببره اچوونکي نیولي چې دوه تنه یې پاکستاني اتباع دي، دغه کسان د سپین بولدک اوسېدونکي ملا محبوب الله، ملا عبدالخالق او ملا اسدالله او د ښار اوسېدونکی ملا محمدقاسم دي. چې د بولدک د لارې ښار ته د داخلېدو پر مهال د ځلورو ځانمرګو واسکټونو سره یو ځای نیول سوي دي. چې اته پاکستاني ماینونه او ځلور ریموټ کنټرولونه هم ورسره وه دوی د چمن ښار په هاشمیه مدرسیه کې زده کړه کړې، په اعتراف کې یې ویلي چې شمس الله او رحمت الله چې پاکستاني اتباع دي هم د دوی ملګري او دمخه د ځان مرګو بریدو له پاره راغلي چې د همدې تحقیقاتو په مرسته د ارغنداو په مصرآباد کې هغوی هم ونیول سوه.

❁ یکشنبه د سلواغې ۱۵ مه :-

د امنیې قوماندانۍ پولیسو ځلور تنه غله د غلا سوي موټر سره د پولیسو په جامو کې د سرپوزې په سیمه کې نیولي دي. هغوی ځانونه د ګرشک ولسوالۍ د لویې لارې د قطعې سرتېري معرفي کړي دي. هغوی د غلا سوي سراچه موټر، درې کلاشینکوفونو، درو حلقو لاسي بمونو او نقدو پیسو سره نیول سوي دي.

❁ یکشنبه د سلواغې ۱۵ مه :-

د ولایتي بیا رغونې د ټیم په مرسته د ښځو چارو د ریاست له لوري د شهید عبدالاحد خان کرزي د روزنتون پر ببوزلو او یتیمو کوچنیانو باندي ورېني جامې او ژمني جاکټونه ووېشل سوه.

❁ یکشنبه د سلواغې ۱۵ مه :-

د کندهار د عالمانو د اصلاحي ټولني مرستیال مولوي سید امام متولي د ارواښاد مولوي محمدنبي اخوندزاده زوی او د خرقې مبارکې متولي ملا عبدالمنیر اخوندازه د شاه بازار د بامیزو کوڅې په خوله کې د ناځرګندو وسله والو لخوا په شهادت ورسېده.

د کندهار ولایت مقام، ولایتي شورا او د دیني عالمانو د اصلاحي ټولني مشرتابه د دغو عالمانو شهادت یوه لویه ضایعه بولي دوی ته د جنت فردوس او دوستانو ته یې د جمیل صبر غوښتنه کوي.

❁ ۲ شنبه د سلواغې ۱٦ مه :-

د امنیې قوماندانۍ د امنیت آمر سمونوال عبدالحکیم انګار ووېل د ملا محمدحسن په نوم یو کس د شاولیکوټ په مربوطاتو کې د ترینکوټ د لویې لارې پر سر د ماینونو د ښخولو پر مهال لاس په لاس ونیول سو.

❁ ۲ شنبه د سلواغې ۱٦ مه :-

د هیواد د تکړه لیکوال او هنرمند لطیف جان بابې درې نوي کتابونه د چاپه راوتلي او د پښتو یون لخوا یې نن (۵)، (۵) ټوکه د اطلاعاتو فرهنګ رئیس عبدالمجید بابې ته د عامه کتابتون له پاره وسپارل سوه. دغه درې سرلیکه کتابونه د موسیقۍ په اړه په پښتو ژبه لیکل سوي چې هر یو تبله، ساز او آرمونیه ده. لطیف جان بابې د هیواد څخه لیري کډوال دئ او موسیقي او ادب له پاره یې ډېر کار کړی دئ او د پورته سرلیکونو سربېره د سندار، شپېلۍ او شانۍ په نومو یې هم کتابونه چاپ سوي دي او رباب، سرګمپدنیاني، دلربا، ډُهل، سیتار، ګیتار او نور کتابونه یې د چاپ له پاره تیار دي.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۱۷ مه :-

د ملي امنیت مسئولینو د دامان ولسوالۍ کې د وسایطو د تلاشۍ پر مهال ٦ نیم کیلوګرامه هیروئین ونیول.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۱۷ مه :-

د دولتي تصدیو د خصوصي کېدو پر لارو چارو د پیدا کېدو په موخه د مالیې وزارت د خصوصي سکتور د مسئول ډاکټر نجیب الله په شتون سره په خوشبخت سالون کې د سوداګرو پراخه غونډه وسوه.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۱۷ مه :-

په هوایي ډګر کې د پولیسو د کورنیو سره د بیات بنیات لخوا د ۱۰۰ بوجیو اوړو او ۱۰۰ ډبو غوړو مرسته وسوه.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۱۷ مه :-

د سپین بولدک په ولسوالۍ کې د ولایت مقام د مرستیال غلام جیلاني همایون لخوا په داسي حال کې چې د ولسوالۍ د شورا غړي د کلیو د پراختیا او هبیتات موسسي استازو هم شتون درلود د پتې په پرې کېدو سره د ملي پیوستون پروګرام

پیل سو.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۱۷ مه :-

د کندهار په ګمرک ریاست کې د ولایت د مرستیال ښاغلي غلام جیلاني همایون، څارنوال، امنیه قوماندان یوناما او مخدره توکیو سره د مبارزې د ادارې مسئولینو په وړاندې په زرګونو کیلوګرامه نشه ایي توکي وسوځل سوه.

امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي وویل دغه مواد د امنیې قوماندانۍ لخوا په ۸۴ او ۱۳۸۵ کلونو کې نیول سوي وه.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۱۸ مه :-

ولسمشر د سلواغې د ۱۵ مې نېټې په ماښام په کندهار کې د دښمن لخوا د مولوي سید امام او د ده د یوه تن ملګري مولوي منیر اخوندازه په شهادت رسول ځان ته لویه خواشیني وښل هغه وویل سید امام د هیواد یو تن جید عالم و. هغه وویل دښمنان غواړي د عالمانو په شهادت سره د افغانانو اصلي رغ غلی کړي. ولسمشر شهیدانو ته د فردوس جنت او قاتلانو ته د دردوونکي عذاب غوښتنه وکړه.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۱۸ مه :-

د ولایتي شورا په غونډه چې چې د احمدولي کرزي په مشري په نارنج ماڼۍ کې جوړه سوې وه د مشورتي شورا پر جوړولو او همدارنګه د کانتینري موټرانو د راوستلو او میرویس روغتون پر ستونزو غور وسو.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۱۸ مه :-

د عالمانو سرتاسري شورا د سلواغې پر ۱۵ مه په کندهار کې د دې شورا د غړي او د کندهار د علماو شورا د مرستیال سید امام متولي او د ده د ملګري مولوي منیر اخوندزاده په شهادت باندي ژوره خواشیني څرګنده کړه.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۱۹ مه :-

د کندهار د امنیتي، سیاسي او پرمختیایي حالت د څېړلو په موخه د ولایت مقام د مرستیال غلام جیلاني همایون په مشري د ولایت مقام د غونډو په خونه کې غونډه وسوه. چې په هغه کې د ولایتي شورا رئیس احمدولي کرزي، امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي، د افغانستان له پاره د ملګرو ملتونو د سیاسي څانګې د سیاسي چارو رئیس اراسیلابلیکس، د اروپایي ټولني استازي مارکتېن وي بیلت، د یوناما سیاسي سلاکار ماروین فمترمن، د ملګرو ملتو پوځي سلاکار بي جیو قوي جینس د افغانستان له پاره د UNDP مرستیال این هولینټ برخه لرله او پر اړونده حالاتو غور وسو.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۱۹ مه :-

د سهېل لوېدیځ سمت د ملي پولیسو د روزنیز مرکز څخه د مراسمو په ترڅ کې چې د دې مرکز مشر مل پاسوال نصرالله ظریفي هم شتون درلود ۲۵۸ تنه مرستندویه پولیس فارغ سول او هغوی ته د هیواد د ساتني د توصیو تر څنګ د فراغت سندونه ورکړه سوه.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۱۹ مه :-

د ایران د اسلامي جمهوریت د انقلاب اته ویشتمه کلیزه په کندهار کې د دې هیواد د قنسلګرۍ له خوا په خوشبخت سالون کې په داسي حال کې چې د ولایت مقام مرستیال غلام جیلاني همایون د دولتي ادارو چارواکو، د ولایتي شورا غړو او د ښار ګڼ شمېر مشرانو، سوداګرو او ډیپلوماټانو هم ګډون پکښې کړی و، ولمانځل سوه.

❁ جمعه د سلواغې ۲۰ مه :-

د کندهار امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي د پاکستان د سرحدي پولیسو د مشر قوماندان مسعود سره د ناملي پولې په دواړو خواوو کې د امنیتي ستونزو په اړه د چمن په ښار کې مفصلي خبري وکړې.

❁ شنبه د سلواغې ۲۱ مه :-

کندهار والي اسدالله خالد وویل :-

د ملي امنیت مؤظفینو د مولوي سید امام، مولوي عبدالمنیر اخوندازه، د لومړي سمت د پولیسو د آمر ډګروال محمدداؤد، د زرغوني کاکړي د څښتن ډګروال محمدنادر او د مؤسساتو د کنډک د قوماندان ډګروال احمددین قاتلان نیولي او په خپل جرم یې اعتراف کړی دئ.

❁ یکشنبه د سلواغې ۲۲ مه :-

په ۲۰۵ نمبر قول اردو کې په داسي حال کې چې د دې قول اردو قوماندان تورن جنرال رحمت الله رووفي، افسرانو او سرتېرو شتون درلود د زیاتو

نیالګیو د ایښوولو مراسم د هیواد د سمسورتیا په موخه تر سره سوه.

❁ یکشنبه د سلواغې ۲۲ مه :-

د ۲۰۵ نمبر قول اردو قوماندان تورن جنرال رحمت الله رووفي په پنجوایي او ژړۍ ولسوالیو کې د بېلابېلو امنیتي پوستو څخه په داسي حال کې لیدنه وکړه چې د سولې د ټینګښت د کمسیون مسئول او د ولایتي شورا غړي حاجي اغا لالی هم ورسره ملګری و، هغوی د دې سیمو د مشرانو سره غونډه هم درلوده هغوی د امنیتي پوستو د شتون څخه مننه وکړه.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۲۴ مه :-

د پوهني ریاست له لوري د زده کوونکو تر منځ د ذهني آزموینې پروګرام په زرنګار سالون کې په داسي حال کې جوړ سو چې د پوهني رئیس حیات الله رفیقي سرپره د اطلاعاتو کلتور او ځوانانو رئیس عبدالمجید بابي هم شتون درلود، د آزموینې په بهیر کې ور زده کوونکو ته سوغاتونه هم ووېشل سوه.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۲۴ مه :-

د ولایتي شورا غونډه د شورا د رئیس احمدولي کرزي په مشري د نارنج په ماڼۍ کې جوړه سوه.په غونډه کې د ولسوالیو د خوراکي توکیو د نړیوال سازمان WFP لخوا د سلګونو ټنو خوراکي توکیو د وېشني له امله د خلکو د ګیلو د څېړني له پاره پلاوی وټاکل سو. همدارنګه د عبدالمجید بابي پر عرضپاڼه چې د میوند ولسوالۍ کي د هغه مځکه قبضه سوې او د ولسوالۍ ولسوال د ځینو ملحوظاتو په اساس د قانوني اسنادو او دخیلو مراجعو د تصدیق او تائید سره سره اجراآت نه کوي غور وسو. ښاغلي بابي د قانوني اسنادو له مخي معلومات واورول او ورته یو کاري پلاوی وټاکل سو، څو د موضوع د جانبینو په وړاندي وڅېړي.

غونډې پر یو شمېر نورو عرایضو هم غور وکړ او د کلیو د پراختیا د وزیر اجراآت او پاملرنه یې وستایل او د اوبو او برېښنا د وزیر پر ناسمو کړنو یې انتقاد وکړ، ورسره د کندهار د تاریخي ښار د لرغونتوب پر ساتنه او په دې ښار کي د خرقې شریفې و تاریخي او مذهبي حیثیت ته پر درنو کتلو هم ټینګار وسو.

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۲۴ مه :-

د ښار او ولسوالیو د سپین ږیرو دیني عالمانو، او مخورو په ګډون د ولایتي شورا لخوا په نارنج ماڼۍ کې یوه پراخه غونډه جوړه سوه. د ولایتي شورا رئیس احمدولي کرزي غونډې ته وویل :-

زموږ د بېګناه خلکو، دیني عالمانو، او دولتي کارکوونکو د شهیدانولو مجرمین دي همدلته محاکمه سي څکه د اعتراف سره سره مجرمین په کابل کې بیرته ایله کېږي. وروسته څو تنو برخوالو هم ورته وېناوي وکړې او کندهار والي اسدالله خالد د وېناوالو څرګندوني تائید کړې، وروسته یو پلاوی وټاکل سو څو د ولسمشر سره په کندهار کي د یوې ځانګړي محکمې د جوړېدو په موخه وګوري.

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۲۵ مه :-

امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي په تېره اوونۍ کي په ښار او ولسوالیو کي څلور میله وسلې، دوې حلقې ماینونه، یوه اندازه هیروئین او چرس د هغو د عاملینو سره یو ځای لاس په لاس نیولي دي.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۲۷ مه :-

کندهار والي اسدالله خالد په داسي حال کي چي د ولسي جرګې غړې شکیبا او د ولایتي شورا غړې زرغونه کاکړه هم ورسره مل وې د کندهار پوهنتون د استادانو او محصلینو سره د ولایت مقام د غونډو په خونه کي وکتل. محصلینو او استادانو د لیلیې، تدریسي او اداري چارو، برېښنا او د پاکو اوبو ستونزې واورولې. ښاغلي خالد د محصلینو د اعاشې له پاره د ۷۵٦ زرو افغانیو مرسته وکړه. د پوهنتون د احاطې د دېوال او استادانو د امتیازي معاشونو په اړه په راتلونکي کي هلي ځلي وسي.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۲۷ مه :-

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو د ټولیو د قوماندانانو د مسلکي روزنیز کورس برخوالو ته د فراغت سندونه په داسي حال کي چې په لړ کي یې د دې قول اردو قوماندانان تورن جنرال رحمت الله رووفي ټول قوماندان راتلونکي دندو ته متوجه کړه.

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۲۷ مه :-

د عالمانو د اصلاحي ټولني د رئیس مولوي سیدمحمد حنیفي په مشري د دیني عالمانو او د دې ریاست د منسوبینو غونډه جوړه سوه په هغه کي د سید امام متولي او مولوي عبدالمنیر اخوندزاده نورو دیني ښوونکو او علماو مسلمانانو وژنه په کلکه وغندل سوه او ښاغلي حنیفي د دې غندنې تر څنګ دا هم وویل پر

مور ته لولو لازمه ده خپل مسئولیت و پېژنو او د نبي کریم ﷺ امت ته صادق خدمت وکړو.

د غونډې برخوالو ژمنه وکړه چې خپله اسلامي او بشري فریضه به نه پرېږدي او د دین هیواد او خلکو خدمت به کوي.

❀ ۵ شنبه د سلواغې ۲۷ مه :-

د داړمن امنیت د راتلو په موخه د امنیتي قوماندانۍ لخوا په اووم او اتم سمت کې پلټونکي عملیات پیل سوه، د امنیي قوماندان سمونوال عصمت الله علیزي دا عملیات مهم وبلل او ویې ویل شکمن کورونه به د ټاکلي پلاوي په وړاندي وپلټل سي.

❀ یکشنبه د سلواغې ۲۹ مه :-

د پولیو واکسین کمپاین د کندهار ولایت د مرستیال ډاکټر غلام جیلاني همایون لخوا په داسي حال کي چي روحاني شخصیت سید مرچ آغا او د عامي روغتیا رئیس ډاکټر عبدالقیوم پخلا هم شتون درلود دیوه کوچني په خوله کي د واکسین په څڅولو سره پیل سو. دا کمپاین د دې سمت په یوویشتو ولسوالیو او په نېش کي به د ټیټانوس او شري پر خلاف واکسین هم تر سره سي.

❀ ۲ شنبه د سلواغې ۳۰ مه :-

کندهار والي اسدالله خالد د سپېروان سیمي د خلکو سره د ولایت مقام د غونډو په خونه کي وکتل. د پنجوایي ولسوالۍ د امنیتي حالت څخه د داړ څرګندولو تر څنګ مشرانو د اوسېدونکو په استازیتوب خپلي سیمه ایزي ستونزي واورولې او ښاغلي خالد یې د هواري ژمنه وکړه.

❀ ۴ شنبه د کب دوهمه :-

د اطلاعاتو کلتور او ځوانانو ریاست له لوري د میاشتي د لومړۍ نېټې ادبي ناسته د همدې ریاست د غونډو په تالار او رشاد یادتون کي جوړه سوه. په غونډه کي چي د کوټې، ختیځو ولایاتو او کندهار په سمت کي د پښتو نړیوالي مرکې د مشرتابه جرګه ګۍ غړو هر یوه محمدصادق ژړک، محمدآصف صمیم، ډاکټر طارق رشاد او ورسره ملګرو قاري عبدالله کامه وال، نصیب الله سېماب او نورانشاه هم شتون درلود. د اطلاعاتو کلتور او ځوانانو رئیس عبدالمجید بابي په پرانستونکې وینا پیل سوه. بیا د همدې مرکې په اړه ډاکټر طارق رشاد، صادق ژړک، سېماب او محمدآصف صمیم ویناوي واورولې او بیا میاشتنۍ مشاعره پیل سوه او ګڼ شمېر شاعرانو پکښې خپل شعرونه واورول او غونډه ډاکټر عبدالرازق پالوال ارزیابي کړه.

❀ ۵ شنبه د کب ۳ یمه :-

د ولایت مقام اداري غونډه د ولایت د مرستیال ډاکټر غلام جیلاني همایون په مشري د ولایت د غونډو په تالار کي جوړه سوه. په غونډه کي د پنجوایي ولسوالۍ کي د کډوالو د ښارګوټي نوم چي د ولایتي شورا لخوا په دستګیري مېنه سره منل سوی و ومنل سو. همدارنګه د کاډسټر، کرهنې، کډوالو، اقتصاد، ښاروالۍ او صنعتي پارکونو د ادارو مسئولینو ته دنده ورکړه سوه چي د ژړۍ ولسوالۍ د اوسني مېشتو کډوالو د سیمي څخه د کډوالو د ښارګوټي له پاره لیدنه وکړي.

غونډې د شرقي اډې د هوټلونو د قرارداد د توپیرونو، د میانجوی پر ویاله د خودسره ودانیو او په احمدشاهي ښار کي د لوړو پوړو او نوو ودانیو د مخنیوي په اړه هم غور وسو.

❀ جمعه د کب ۴ مه :-

د شنوګنبدو سره نژدې په یوه کور کي د باروتو د پلورونکي په کور کي د باروتو په چاودنه کي د دې کورنۍ دوه تنه شهیدان او څلور تنه یې ټپیان سوه. امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي وویل :-

د دغسي توکیو د زیانونو له امله یې د هغه خرڅول غیرقانوني ګرځولي وه خو دغه کس په پټه په کور کي ساتلي او دغه پایله یې په برخه سوه.

❀ جمعه د کب ۴ مه :-

په ورزشي لوبغالي کي د غېږ نیونې د فدراسیون له لوري د غېږې نیونې سیالۍ چي د کندهار او ژړۍ ولسوالۍ د غېږ نیوونکو لخوا تر سره سوه، د ښار څخه محمدحسن، حمیدالله بلوڅ او امیرجان لومړي ځایونه او د ژړۍ ولسوالۍ څخه خدای رحیم، عبدالهادي، باچا آغا او برات لومړي ځایونه وګټل.

❀ یکشنبه د کب ٦ مه :-

په ښوونځیو کي د دیني زده کړو د ښه تدریس په موخه د پوهني رئیس حیات الله رفیقي او د دیني عالمانو د اصلاحي ټولني مشر مولوي سیدمحمد حنیفي په جوړه سوې غونډه کي چي د پوهني ریاست منسوبین او د دیني علماو د شورا غړي یې برخه وال وه ژمنه وکړه چي د دې چارو له پاره به وړ

عالمان د پوهني رياست ته ور وپېژني.

❀ دوشنبه د کب ۷ مه :-

د ځوانانو د پياوړتيا د پروګرام د پيل سره سم د ځوانانو د ذهني پياوړتيا درې ورځنۍ ورکشاپ هم د اطلاعاتو کلتور رياست د غونډو په تالار کې پيل سو.

د مراسمو په پيل کې د قرآن مجيد د مبارکو آيتونو تر لوستلو وروسته د اطلاعاتو کلتور او ځوانانو رئيس عبدالمجيد بابي پرانستونکي خبري وکړې او د هبيبتات مؤسسې په مرسته د اطلاعاتو کلتور او ځوانانو رياست سره په همغاړيتوب يې دا پروګرام د اړتيا له مخې ګټور وباله، وروسته د هبيتات مؤسسې مسئول حاجي محمد حميدي د دې پروګرام په اړه خبري وکړې او وې ويل :-

په ښېرو ولايتونو کي دا پروګرام په پام کي نيول سوى دئ، چي هيله لرو مثبته پايله به ولري.

❀ يکشنبه د کب ٦ مه :-

ولسمشر د کندهار د بېلابېلو ولسواليو د مشرانو، عالمانو او مخورو سره د جمهوري رياست په ودانۍ کي وکتل. په کتنه کي مولوي جنابي او حاجي نعمت الله شېردلي د نورو په استازيتوب خبري وکړې. د امنيت او سولي په ټينګښت کي يې د ملاتړ تياري وښود او په بېلابېلو برخو کي يې خپلي ستونزي څرګندي کړې.

هغوى د نيول سوو ترورېستانو د سختو مجازاتو غوښتنه وکړه چي ولسمشر د شرعي اصولو او نافذه قوانينو په رڼا کي هغوى ته د اجزا ورکولو ژمنه وکړه.

❀ ۳ شنبه د کب ۸ مه :-

د يخ کارېز پر امنيتي پوسته باندي په هغه بريد کي چي د طالبانو لخوا د شپې پر ۱۱ بجو تر سره سو تر مقاومت وروسته دښمن تښتېدلی او دوه تنه يې امنيتي کسانو نيولي او تر پوښتني لاندي دي.

❀ ۳ شنبه د کب ۸ مه :-

د امنيتي قوماندانۍ د جنايي جرمونو د مخنيوي مدير سمونوال رحمت الله صديقي وويل دوه تنه لوټماران تورجان د عبدالباري زوی او عبيدالله د حاجي محمد زوی چي د ملا خان محمد د کور څخه يې ۳۵ زره افغانۍ او څه ترياک غلا کړي وه نيولي دي.

❀ ۳ شنبه د کب ۸ مه :-

د ۳۰۳ مي قطعې پوليسو د ميوند ولسوالۍ په مربوطاتو کي د تلاشۍ پر مهال په يوه کرولا موټر کي سل کيلوګرامه اپين ونيول.

❀ ۳ شنبه د کب ۸ مه :-

امنيه قوماندان مل پاسوال عصمت الله عليزي وويل هغه ځانمرګی چي د عمومي لوبغالي سره نژدې يې پر ناټو ځواکونو بريد وکړ خپله له منځه تللی او ناټو ځواکونو ته زيان نه دئ رسېدلی.

ناټو ځواکونو د دغه بريد تر مخه پر هغه کرولا موټر چي دوی ته نژدې سوی و په اشتباه سره ډزي وکړې چي موټر چلوونکی يې شهيد کړه سو، د ناټو ځواکونو وياند کپټان ويسن وويل هغه زموږ له لوري د نه رانژدې کېدو اشارو ته پاملرنه ونه کړه.

❀ ۳ شنبه د کب ۸ مه :-

د مرغانو د والګي ناروغۍ د مخنيوي په لاړو چارو دوه ورځنۍ غونډه چي د عامي روغتيا د رياست او WHO او يونيسف ادارو په همغاړيتوب جوړه سوې وه پر هغه څه خبري وسوې چي په دې برخه کي په وقايوي توګه يې بايد د عامي روغتيا رياست تر لاس لاندي ونيسي.

❀ ۴ شنبه د کب ۹ مه :-

د سهېل لوېديځ سمت د دوولسمو ټولګو د ۳۰۰ تنو فارغينو څخه د کانکور متفرقه ازموينه د لوړو زده کړو وزارت څخه د راغلي پلاوي په شتون سره په داسي حال کي چي د ولايت مرستيال ډاکټر غلام جيلاني همايون، د پوهني رئيس حيات الله رفيقي، د اطلاعاتو کلتور رئيس عبدالمجيد بابی او د پوهنتون رئيس ډاکټر اسدالله ترين هم شتون درلود په نوي عيدګاه کي واخيستل سوه.

❀ ۵ شنبه د کب ۱۰ مه :-

د فټبال هغه ژمنۍ لوبي چي د الف ديارلسو لوبډلو تر منځ پيل سوي وې وروستۍ لوبه يې د پنالټيو په وهلو سره د اتفاق لوبډلي په ګټه پای ته ورسېده. پامير دوهم او احمدشاه بابا لېسې لوبډلي درېيم مقام تر لاسه کړ.

❀ شنبه د کب ۱۲ مه :-

د پنجوايي ولسوالۍ د صالحان په سيمه کي د محمدنبي راشد مرستندويه مؤسسې لخوا د معيوبينو له پاره شل جوړ سوي کورونه د يوې غونډې په لړ کي په

داسي حال کي چي د دې مؤسسې د دې زون مشر استاد محمد برات حسن خېل او د افغانستان په سطحه د دې مؤسسې مسئول استاد محمدبشير واصل هم شتون درلود ووېشل.

❀ يكشنبه د كب ۱۳ مه :-

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو قوماندان تورنجنرال رحمت الله رووفي وويل :-

د دوی د گزمې پر کسانو باندي په پنجوايي کي د لويي لاري پر سر د ماين په چاودنه سره ۹ تنه ټپيان سوي دي.

هغوی دا هم وويل: په ژړی ولسوالی کي هم د سنگ حسار په سيمه کي د لويي لاري دپاسه د ماينونو د ښخېدو پر مهال ماينونه چاودېدلي او ښخوونکی يې خپله له منځه تللی دئ.

❀ يكشنبه د كب ۱۳ مه :-

د ميوند ولسوالی د سنگ بر په سيمه کي د کوکنارو پر ماتوونکو باندي د طالبانو د لوري ناڅاپه بريد وسو او يو پوليس شهيد سوی او ۴ نور ټپيان سوي دي. امنيه قوماندان جنرال عصمت الله عليزي وويل چي دښمن ته هم د سر زيان اوښتی دئ.

عليزي وويل په ارغنداو، ميوند، ډنډ او دامان ولسواليو کي ملي پوليسو د مخکي څخه لا د کوکنارو په ماتېدو پيل کړی دئ.

❀ يكشنبه د كب ۱۳ مه :-

د ولايتي شورا په غونډه کي چي د شورا د رئيس احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه د يو لړ نورو موضوعاتو تر څنگ ښوونکو ته د کورونو د جوړېدو له پاره د ځمکو پر وېش غور وسو.

❀ ۳ شنبه د كب ۱۵ مه :-

د نيالگيو پر ايښودلو او پاللو باندي د ښاروالی رياست د غونډو په تالار کي د ښاروالی، کرهني، کادستر او پلان رياستونو او همدارنگه ولايتي بيا رغوني او زرغون کندهار ټولني استازو غونډه وکړه او په دې اړه يې ورپرېکړي وکړې.

❀ ۳ شنبه د كب ۱۵ مه :-

يو شمېر شړی، کمبلي او کالي چي د ملگرو ملتونو د کډوالو چارو د ادارې لخوا برابر سوي وه د مېرمنو ټولني لخوا په لوی محبس کي پر ۱۷ تنو بندي ښځو او روغتيايي ښځينه کارکوونکو باندي ووېشل سوه.

❀ ۳ شنبه د كب ۱۵ مه :-

د ديني عالمانو د اصلاحي ټولني لخوا د ټولو ولسواليو د ملا امامانو او ديني عالمانو په گډون يوه غونډه جوړه سوه چي د دې شورا رئيس مولوي سيدمحمد حنيفي او يو شمېر نورو علماوو وويل :-

عالمان د حقيقت ويلو مسئولين دي څو سوله راسي او مخالفين د جگړو لاس واخلي او په سوله کي د هيواد د پرمختگ له پاره د خپلو ورونو سره يو ځای سي.

❀ ۳ شنبه د كب ۱۵ مه :-

د کندهار په هوايي ډگر کي د يوې مطبوعاتي ناستي پر مهال د ايساف ځواکونو عمومي قوماندان وان لون وويل د اکليس په نوم ستر عمليات چي د ناټو ۴۵۰۰ او ۱۰۰۰ تنه افغاني پوځيان برخه پکښې لري د تېري شپې څخه د هلمند په شمالي سيمو کي د مخالفينو په وړاندي پيل سوي دي.

❀ ۴ شنبه د كب ۱٦ مه :-

د کندهار مرستيال والي غلام جيلاني همايون د خپل کار په دفتر کي د هندوستان د روغتيايي چارو د مسئول ډاکتر آر کي کواگ سره د خپل کار په کوټه کي په داسي حال کي وکتل چي په کندهار کي هندي سرقنسل عبدالغفور الگور هم شتون درلود. دواړو خواوو د کندهار د روغتيايي مرکزونو او روغتيايي چارو په اړه خبري وکړې او ښاغلي همايون غوښتنه وکړه چي د ډاکترانو د روزني په برخه کي هندوستان زموږ سره مرسته وکړي.

❀ ۴ شنبه د كب ۱٦ مه :-

په سپين بولدک ولسوالی کي د امن جرگې د دندو په اړه د مشرانو غونډه وسوه، چي په لړ کي يې ولسوال حاجي عبدالخالق بالاکرزی او د قبايلو رئيس عبدالباقي رغبت ملعومات واورول.

❀ ۴ شنبه د كب ۱٦ مه :-

د ناټو ځواکونو د سيمه ايز دفتر وياند وويل د پنجوايي ولسوالی په مربوطاتو کي يې يو تن ترهگر ملا محمود چي په چادري کي يې تلاش درلود چي ځانمرگی بريد وکړي د امنيتي پوستي لخوا تر پېژندني وروسته نيول سوی او تر پوښتنو لاندي دئ.

❀ ۴ شنبه د كب ۱٦ مه :-

د ولايتي شورا غونډه چي د نارنج په مانی کي د دې شورا د رئيس احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه د دولتي مرستندويه او بيا جوړوني د مؤسسو تر منځ د تفاهم پر خبره ټينگار وسو. غونډي ته د کليو د

پراختیا او بیا روغوني حوزوي مسئول انجنیر دادمحمد بهیر او د کندهار د ادارې مسئول انجنیر احمدشاه پیرعلي وربلل سوي او د چارو د ښه والي په اړه غور وسو.

❀ یکشنبه د کب ۲۰ مه :-

د ښځو د پیوستون نړیواله ورځ په امنیه قوماندانی کي د زیات شمېر ښځو، ښځینه پولیسو او دولتي ادارو د مسئولینو لخوا ولمانځل سوه.

❀ یکشنبه د کب ۲۰ مه :-

د ولایتي شورا غونډه د احمدولي کرزي په مشري جوړه او د بندیانو ستونزي تر غور لاندي ونیول سوې، مخکي چي پلاوی تاکل سوی و هغوی وویل ډېر بندیان بې برخلیکه پراته دي او ډېر مجرمین بیا په رشوت ایله سوي دي. همدارنګه معتادین د کوچنیانو په اړخ کي ورسره بندیان دي.

وروسته پرېکړه وسوه چي د څارنوالی د مسئولینو په ګډون دي د هر بندي څخه بېلابېله پوښتنه وسي. همدارنګه پر یو شمېر عرضپاڼو هم غور وسو.

❀ ۳ شنبه د کب ۲۲ مه :-

د کندهار د ځلرم نمبر سرحدي لوا قوماندان عبدالرازق وویل د غرمې وروسته د وېش په سیمه کي نامنلي پولي ته نږدې په ځانمرګي برید کي درې تنه بېګناه کسان وژل سوي او اته نور هم ټپیان سوه.

❀ ۳ شنبه د کب ۲۲ مه :-

امنیه قوماندان مل پاسوال عصمت الله علیزي وویل :-

د دوی پولیسو د موشان په کلي کي د لویې لارې پر سر د ۲ ښځو سوو ماینونو په پیدا کېدو سره د مرګ ژوبلې د رامنځته کېدو مخه ونیول.

❀ ۴ شنبه د کب ۲۳ مه :-

د ولایتي شورا غونډه د شورا د رئیس احمدولي کرزي په مشري په نارنج مانی کي جوړه سوه او د خلکو پر رسېدلو عرضپاڼو غور وسو. د پوهني ریاست د ستونزو او د ځینو بندیانو په اړه د څارنوالی ریاست ته د غوره سوي پلاوي د کړنو ګذارش واورول سو. همدارنګه شورا د انجنیري او طب پوهنځیو د فارغینو له پاره د په پام کي نیول

سوو مراسمو له پاره د خپلو تنخواوو څخه د ٦١٠٠٠ افغانیو مرسته هم وکړه.

❀ ۵ شنبه د کب ۲۴ مه :-

دوو تنو وژونکو د دوهم سمت د زرګرانو په کوڅه کي پر امنیتي ګزمه برید وکړ چي دواړو خواوو ته په مرګ ژوبله کي د دې حوزې امنیتي مسئول ملا عبدالجیمد هم شهید کړه سو. او ملګري یې ټپي سویدي. د ملا عبدالجیمد بل ساتونکي دواړه وژونکي کسان تر برید لاندي راوستل یو یې وژلی او بل یې د وسلو سره په ټپي حالت کي نیول سوی دئ.

❀ ۵ شنبه د کب ۲۴ مه :-

یو روغتیایي کتنځی چي چاري یې د ایران د سرې میاشتي په مرسته مخته ځي په داسي حال کي پرانستل سو چي په پرانستونکې غونډه کي یې کندهار والي اسدالله خالد په کابل کي د ایران سفیر محمدرضا بهرامي، د پارلمان غړی عبدالقیوم کرزی، د ولایتي شورا رئیس احمدولي کرزی، د کندهار د ادارې مسئولینو تر څنګ شتون درلود پرانستل سو. په روغتون کي به ایراني ډاکټران د رنځورانو کتنه کوي او د ارزاني بیي درمل به ورکوي.

❀ ۵ شنبه د کب ۲۴ مه :-

د ولایت اداري غونډه د کندهار والي اسدالله خالد په مشري د ولایت مقام د غونډو په لویه خونه کي د ولایتي شورا د رئیس احمدولي کرزي په شتون جوړه سوه.

غونډي ته ټاکل سوی پلاوي د ژړی دښت د قبضو په اړه په معلوماتو کي وویل :-

۳۰۰۰ نمرې مځکه وېشل سوې او له درکه یې ۱٦ میلیونه افغانۍ د اسنادو له مخي د دولت اړوندو حسابونو ته تحویل سوي دي.

د لا څېړني له پاره یې بل ځانګړی پلاوی وټاکل سو همدارنګه د کرهني ریاست لخوا د مېوو د ساتني د سړې خوني پر قرارداد په کوکران کي د میرویس نیکه او لومړي سمت کي د احمدشاه بابا د تاریخي کورونو د ساتني په اړه هم د یوه پلاوي پر ټاکلو او هم د نوي کال د لمانځلو له پاره د یوې جرګه ګۍ پر جوړېدو غور وسو.

❀ ❀ ❀

# د ملا امیر دېوان

## د خپروونکي یادښت

د پښتو ادب او ادبي تاریخ په باب لا ډېر داسي غمي موجود دي چې تر ایرو لا [illegible] دي، پښتني سیمي همېشه د تاړاکونو او غوبلونو مرکز وې، چې د دغه ډول تاړاکونو په نتیجه کي د دې اولس معنوي او ادبي زېرمي هم زیانمني سوي دي.

زموږ د پخوانیو لیکوالو او پوهانو دي ارواوي ښادي وي چې په دې برخه کي یې د پښتو د ادب، تاریخ او تذکره لیکني ډېري ارزښمتني نموني د خزان له سېلیو وژغورلې او په ډېر کړاو او خولو تویولو یې خپل اولس ته وړاندي کړي. د پټې خزانې له برکته چې د لوی استاد علامه حبیبي رحمه الله په همت د چاپ ډګر ته راووتله، مو ډېر تکړه شاعران او د پښتو ژبې په تاریخ کي د ډېرو تاریخونو نوموړنه واوښتل، او د ډېرو نویو حالاتو څخه یې خبرو کړو.

دا مهال زموږ تکړه لیکوال او محقق استاد محمدمعصوم هوتک یو د هغو استادانو څخه دئ، چې د نویو څېړنو تر څنګ زړو متونو ته هم زیاته توجه لري، چې د دغي توجه په برکت یې د کندهار د یو نوموړکي شاعر ملا امیر تر پېژند ګلوي، سربېره د هغه دېوان هم موندلی او تر زیات تحقیق، سپړني او څېړني وروسته یې دا دئ ترتیب کړی دئ، د کندهار مجلې اداره د ښاغلي هوتک د دغه زیار او زحمت په نمانځنه کي دوی ته په دې ساحه د زیاتو نورو بریاوو هیله کوي او د ارواښاد ملا امیر دېوان د هغه د ارواخوښوني په موخه تاسو درنو لوستونکو او مینه والو ته وړاندي کوي.

دا هم تاسي او د ملا امیر دېوان



استاد محمدمعصوم هوتک

د دېوان د سریزي او لمن لیکونو لیکوال

### کتاب پېژندنه


- د کتاب نوم: د ملا امیر دېوان
- شاعر: ملا امیر
- خپروونکی: د اطلاعاتو کلتور ریاست، د کندهار مجلې مدیریت
- کمپوز: مطیع الله روهیال
- چاپکال: ۱۳۸۵ ل - لومړی چاپ
- چاپ ځای: د کندهار دولتي مطبعه
- چاپ لړ: ۵

# ملا امیر او دېوان یې

د ملا امیر د دېوان دغه نسخه، چې ما د چاپ له پاره تیاره کړه، ما ته د ۱۳۲۵ ش کال په سر کې په کندهار کې لاس ته راغله او تر کتلو وروسته یې راته څرګنده سوه چې دا نسخه د ارواښاد حاجي دوست محمد برېښ له کتب خانې راوتلې وه[۱]. حاجي صاحب مرحوم پخپل قلم ځای ځای د شاعر نوم د نوموړي خطي نسخې پر څنډو کښلی و[۲].

د ملا امیر د دېوان د حجم له مخې وړوکی دېوان دئ او (۸۰) غزلې او نظمونه لري خو د الفبې دټولو پټیو غزلي پکښې سته. د پای پاڼې یې د (یاء) ردیف ته رسېدلې دي خو څو پاڼې یې کنډو دي. ما دا نسخه تر موندلو څو میاشتې وروسته د زېرې په جریده (د ۱۳۲۵ ش کال ۹ ـ ۱۰ ګڼه) کې معرفي کړه او د هغې لیکنې لنډیز دلته مکرر رانقلوم :-

ملا امیر د څورلسمې هجري قمري پېړۍ په سر کې په کندهار کې یو له هغو شاعرانو څخه و، چې مردف دېوان یې درلود او شعرونه یې د خلکو خولو ته لوېدلي وو. هسې خو په پښتنو شاعرانو کې موږ د (امیر) او (امیرمحمد) په نامه څو تنه پېژنو، خو پیاوړي محقق پوهاند عبدالشکور رشاد د پښتانه شعراء په درېم ټوک (۸۲۷ مخ) کې د امیر په نامه یو شاعر معرفي کړی دئ، چې زموږ تر بحث لاندې ملا امیر سره یې ځینې ګډ وجوهات سته. دی لیکي :-

"امیر په ختیه پوپلزی و، د کندهار د تلوکان[۳] په کلي اوسېده د ده د پښتو مردف دېوان شته او د پارسو او عربي دېوانونو د لرلو په باب یې هم خبري کیږي ... د ده ژوند د

[۱] حاجي دوست محمد برېښ د سراج الملة والدین امیر حبیب الله خان د پاچهۍ په دوهم کال (۱۲۸۲ش) په کندهار کې زېږېدلی او د ظاهرشاه د پاچهۍ په شپږدېرشم کال (۱۳۴۸ش) په کندهار کې وفات او پخپله پلرنۍ هدیره کې ښخ دئ. پلار یې قیام الدین خان او نیکه یې محمدیوسف اخوندزاده نومېدی. د حاجي دوست محمد برېښ پېشه سوداګري وه او د څورلسمې هجري شمسي پېړۍ په دېرشمو کلونو کې یې د کندهار د شاه بازار په ختیځه راسته کې د پوښلي چارسو شمال ته د خارجي بوټونوپلورنځی درلود. حاجي صاحب په پښتو ژبه د نثر په برخه کې قلم چلاوه او یوه غني کتابخانه یې درلوده، چې د پښتو و پارسي و عربي ژبو خطي نوادر یې پکښې خوندي کړي وو. د ده کتابتون په کندهارکې د ارواښادمحمدحلیم سلیمي (۱۳۸۴ ش مړ) تر کتابتون وروسته د خطي نسخو د کیفیت او کمیت له درکه مشهوره کتابخانه وه. د بای ... روښان نوې موندل سوې رساله، چې د علم د رسالې په نامه په ۱۳۲۴ ش کال د ارواښاد سرمحقق دوست شینواري په سریزه او سمون په کابل کې خپره سوه، د حاجي دوست محمد برېښ له کتابتون څخه راوتلې وه. د حاجي دوست محمد برېښ زوی نوراحمد برېښ هم د پښتو ژبې لیکوال او د طلوع افغان اخبار پرکاره قلمي همکار و. نوراحمد برېښ په ځواني کې مړسو (دی باید له ارواښاد پوهاند ډاکتر نوراحمد برېښ سره مغالطه نه سي).

[۲] زه (هوتک) د نوموړي لیک د ده دکتابتون د نورونسخو د کتلو له خاطره پېژنم. زما په کتابتون کې د حاجي دوست محمد برېښ په قلم د اخوند درویزه د مخزن الاسلام ځیني برخي سته چې د خپل کتابتون د یوې نسخې او د ارواښاد سلیمي د کتابتون د کومې نسخې تر مقابله کولو وروسته یې یادابنت کړي دي. د حاجي صاحب مرحوم لیک په نسبتاً ښکلو خطونو کې راتلای سي.

[۳] تلوکان د کندهار د پنجوایي ولسوالۍ مربوط کلی دئ، چې دکندهار ښار لویدیځ لور ته پروت دئ. شاوخوا یې د انګورو باغونه دي. د پښتو او فارسي ژبې شاعر او د تالیفاتو څښتن ساګزی ملا حسن اخوند (۱۱۷۷ ـ ۱۲۴۵ هـ ق) د همدغه تلوکان دئ. فارسي دېوان یې چاپ سوی دئ. زما (هوتک) سره یې یوه ښکلې قلمي نسخه سته، چې د هرات د نائب الحکومه سعدالدین خان د زوی عبدالعلي خان (خان آغا ؟) په پرمایښت د (محمد رحیم الکوزي قندهاری الاصل ساکن هرات) په قلم لیکل سوې ده.

۱۲۹۱ هـ ق کال[۴] په حدودو کي تاکلای شو او عمر يې تر ۹۵ کالو پوري رسېدلی دي. له دېوانه څخه يې معلومېږي، چي د ژوند وروستي کلونه يې په ګرش (هیلمند) کښني تېر کړي دي.

د دغي ليکني په استناد د "فرهنګ زبان و ادبيات پښتو" محترم مولف هم د ده يادونه کړې ده. په پښتانه شعراء کي د امير د کلام د (ي) رديف څلور پښتو بيتونه څوندي دي. زه په غوڅه توګه حکم نه سم کولای، چي (امير) او (ملا امير) به يو سړی وي. د (امير) په باب خو لوی محقق پوهاند رشاد ليکي، چي ظريفه او شوخه طبعه يې درلوده. د ملا امير په دېوان کي ما د ظرافت او شوخی صريحه نمونه ونه موندله. خو د عصر او وخت نزدېوالي او د اوږده عمر تېرول او د ملا امير په دېوان کي د (نهر سراج وياليې) يادونه[۵] بيا هغه وجوهات دي، چي د دوی تر منځ شريک دي. د اوسنيو ماخذونو، روايتو او دېوان څخه دا فيصله ګرانه ده، چي "مير" او "ملا امير" به يو شاعر وي. په هر صورت زه اوس دئ د "ملا امير" په نامه د موجوده دېوان له مخي تاسي ته درپېژنم او د ېوان يې درته معرفي کوم. نوره څېړنه به راتلونکي ته پرېږدو. ګوندي داسي مواد لاس ته راسي، چي د دې موضوع له سپينېدو سره مرسته وکړي.

---

(۴) دغه کال په پښتانه شعراء کي ۱۳۹۱ هـ ق راغلی دئ، چي چاپي غلطي ده. دغه غلطي زما په پورتني مقاله کي، چي په (زيري) جريده کي خپره سوې ده، بيا تکرار سوې ده. د مقالې تر چاپ وروسته ما او فاضل استاد په دې باب خبري هم وکړې او ما وعده ورکړه، چي دغه غلطي به يو وخت سموم. دا دئ اوس (اووه ويشتمه دمارچ ۲۰۰۲ ع) مي خپله ژمنه پوره کړه.

(۵) د نهر سراج د وياليې يادونه زه پر دې خبره دليل بولم، چي ملا امير په هيلمند کي هم استوګنه کړې ده او احتمالاً په (ګرش) کي.

زما د کتابتون په خطي نسخو کي د ملا امير ديوان سته، چي نوم يې (مخبر العشق جديدی) پر اېښی دئ. ديوان مردف او د پای له خوا نيمګړی دئ. د وروستی پاڼي رکاب يې (څما مقصود) ليکلی دئ. چي دا کلمات د راتلونکي مخ د لومړي بيت شروع ده. نسخه پر عادي کاغذ په توره سياهي ليکل سوې ده او د ډېر بې سليقې او بېسواده کاتب کار معلومېږي. څرنګه، چي د ېوان نيمګړی دئ، د کاتب نوم او د ليکلو کال يې نسته. د دېوان پر څنډو څو ځايه ۱۳۲۷ او يو ځای ۱۳۲۸ کښل سوي دي. نه پوهېږم، چي دا به د ليکلو کال يا کلونه وي که يا؟ د دېوان ټولي غزلي اتياوو ته رسېږي اود (ي) رديف هغه څلور بيته، چي د پښتانه شعراء په دريم ټوک (۸۲۷مخ) کي څوندي دي، دلته نسته. که (امير) او (ملاامير) يو شاعر وي، نو ښايي دغه بيتونه به په هغو پاڼوکي وي، چي ضايع سوي دي. د دېوان پيل داسي دئ :-

له بسم الله وروسته. هذا کتاب مخبرالعشق جديدی.

نن مشغول سه په الحمد و په ثنا
په دهان کښني دي چلېږي ژبه ستا
هر بنده له ره لازم ثناګويي ده
په قرآن کښني بيان کړی پاک مولا

له دېوان څخه يې ما د ده د ژوند په باب زيات مشخص ټکي ونه موندل. د اميرحبيب الله (۱۳۱۹ ـ ۱۳۳۷ هـ ق) يادونه يې څو ځايه کړې ده :-

د سراج الملة والدين به دبدبه ده
ملا امير د ده دوعاګوی[۶] نه د فرنګ يم

او يا :-

---

(۶) (دوعاګوی) بايد دوې څپې ولوستل سي.

ډېر دي عـــــــمر د امیرحبیب الله وي
تر ســــایه لاندي ناست امتیان ستا محــمده
تل مشغول د قندهار پــــــــه آبادي ده
اوس مشغول پـه نهرسراج نهر اعلی محـمده
نهر سراج به خدای معمور که وخت نژدې دی
ملا امیر فقیر دوعــاګوی ده هر صبا محمده

د نهر سـراج والـه (ویاله) پـه ۱۳۲۵ هـ ق کال د هیلمند له رود څخه افتتاح سوه[7].

د دېوان د (ب) ردیف د یوې غزلې مقطع داسې ده:-

دیارلس صدی هـــــــم شپږویشت کاله
وو تېر شوي ملا امیر بیان کوي له هره باب

دیــارلس ســوه شپږویشـت هــ ق کـال د امیرحبیب الله د پـاچهۍ اووم کـال دئ. لـه دې ټولو خبروڅخه څرګندېږي، چې د امیر حبیب الله د پـاچهۍ دوران د مـلا امیـر د شـاعرۍ د اوج زمانه ده. په دغه وخت کې دی سپین ږیری دئ ځکه وایي:-

ملا امیر په سپینه ږیره تل ژړا کړي
راشه زما پر غریبۍ وکړه پـوښتنه

اشعار یـې د ده پـر علـم او پـوهې بانـدي شـاهدي ورکـوي. د تصوف خـوا یـې درنـه ده. اخلاقي شعرونه هم لـري. لـه اشعارو څخه یې معلـومېږي، چې مـلا امیـر پـه سلوک کـې د نقشبندیه طریقې پیـرو دئ. د سلوک او سیر پړاوونه داسې بیانوي:-

د وحدت له باغه درخته راښکاره شوه
نه یې مثل پـــــه زمین لـکه نشتر و

د توحید تر سوزن ووزه که یکتا یې
که دوتا یې ځان یکـتا کړه یک بشر

محبت د خدای نـــــهال پر خپل زړګي کړه
اوبـــــــوه یې په چـ[illegible]ه د شــریعت

اســـــــم ذات د زړه صیقل د سالـکانو
تصـفیه د زړه راځي پـــــــــه طریقت
بیا به کشف و کـــرامات درته حاصل شي
پوشیده لـــــــره دا حـــــال د حقیـقت
معرفت مې شناخت د خدای پر خپل طاقت ده
"ملاامـــیر" تعریف کـــــوي دمعرفت

په دېوان کې یې یوه تقریبا بشپړه فارسي غزلـه اوڅو شیر وشکر بیتونـه سته. فارسي شعر یې د ټیټې سویې شعر دئ او خوندور نه دئ.



دا د هغې لیکنې لنډیز و، چې ما شل کاله وړاندې د کابل په زېړي جریده کې خپره کړې وه[8]. تر دې وروسته مې د دېوان قلمي نسخه د چاپ لـه پاره تیاره کړه او د تیار سوي متن یوه برخه مې (د "ق" تر ردیفه) پخپل خط په یوه جلا کتاب کې پاکنویسه کړه او نور کار لـه ګران هیواد څخه د راوتلو لـه اسیته نیمګړی پاته سو. دا متن او خطي اصل یې لـه هیواده راته زما مور کراچۍ ته راورساوه او ما بیا له ځانه سره کاناډا تـه راوړ (۱۹۹۲ ع). سږکال مې د کاغذو له منځه دا متن راوایست له سره مې وکوت او کمپیوټري چاري مې یې بشپړې کړې او د خپلو هغو لیکنو په تاخچه کې به یې کښېږدم، چې زما ناچاپ آثار د چاپ په انتظار پکښې پراته دي.

د نوي کتنې په ترخ مې لازمه وبلل دا خو ټکي نور هم پر خپله پخوانۍ لیکنـه باندي ور زیات کړم:-

ملا امیر د متوسطې درجې مـلا، د ټیټې سویې شـاعر، د لـوړ جوش و خروش مخلص سالک دئ او په سلوک کې د نقشبندیه طریقې

(7) حبیبي ـ عبدالحي پوهاند ـ د افغانستان تاریخي پېښلیک ـ ۲۲۲ مخ

(8) د نومـوړي مقـالې بشـپړ مـتن زمـا د ناچاپـه اثـر "کچکول" په لومړي ټوک ۲۲ مخ کې خوندي دئ.

لاروی دئ. دېوان یې لـه یو څو غزلو پرتـه نور ټول د سیر او سلوک مسئلو تـه وقف کړئ دئ او د تصوف غامض او پېچلي موضوعات یې په ډېر ساده شعر کي بیان کړي دي. د ده شعر له لویه سره هم فوق العاده ساده او له هنري مزیته خـــالي دئ او فنـــي کمـــزوری، قـــافیوي نیمگړتیـــاوي او د وزن ناهمـــاهنگی یـــې د لوستونکي مخي ته ډېري راځي. خو د تصوفي اړخ زیاتوب یې د شعري قابلیت د نه ورتیا لـه امله د شعر خوند و رنگ نور هم ور پیکه کړئ دئ. ده ته خپل شعر کله کله دومره لوړ ښکاره سوی دئ چي وایي "پخته کار سالک" بـه یې پـه بیان پوهېږي (د "ن" ردیف) خو حقیقت دا دئ چي د ده په شعر کي مفاهیم بیخي په ساده پیرایـه کي بیـان سـوي دي. شاعر تـه د سیر و سلوک او طریقت پر ورشوباندي ځان "بالغ" ښـکاري او د "دسـتار" ترلـو تمـه لـري (د "ع" ردیـف) خـو ځـای ځـای بیـا پخپلـه ورتـه ځـان "ناقابل" ایسي (د "ف" ردیف). شاعر د سلوک د لاري خطـرات هـم لـه پامـه نـه دي اچـولي او د آیـات و حـدیث پـه استشـهاد وایـي چـي پـه طریقت تر بل هر مسلک د "ملحدی" خطره ډېره ده (د "هـ" ردیـف). دی د خطر ځـای هـم د خپلـي تجربـې او پـوهي لـه مخـي نویـو سـالکانو تـه ورښیي (د "ن" ردیف).

شاعر غـواړي د ځینو کلمـاتو پـه راوړلـو سره ځپله تواضع او انکسار تمثیل کړي او د ځـان لـه پـاره د (کمینـه، دون همتـه ...) کلمـات کـاروي خو د دغـو کلمـاتو مروجي معنـاوي د عجز و انکسار ښکارندویي نـه کـوي. بلکـي استعمال یې د لاسـه لا د شخصیت د درنـاوي پله سپکوي.

د ملا امیر په دېوان کي د یو لړ تـاریخي پېښو یادونه سوې ده چي مـا یـې د لـومړي وار معرفـی پـه لیکنـه کـي مثالونـه راوړي دي او تاسي یې یوه برخه وړاندي ولوستل (د سراج الملـة والـدین امیرحبیـب الله خـان. د کنـدهار د نایـب الحکومـــه یادونـــه او د نهرســـراج د ویـــالي دکیندلوکار). د دې پر څنگ دی وطن تـه د روسانو د راتگ خبرداری او د هغـو پـه مقابـل کي د غـزا او جهـاد هڅونـه کـوي (د "و" ردیـف) چـي مـا د همـدې متن په (۲۱) مخ (۱) حاشیه کي تبصره پر کړې ده.

د مـلا امیـر شـعري ژبـه پـه عمومیـاتو کـي د لوېـــدیځي لهجـــې ځانگړتیـــاوي لـــري او پـــه خصوصیاتو کي بیا د هیلمند او روزگان د شاوخوا پښتنو ژبه تمثیلوي. دی ځای ځای د شعري اړتیـا له اسیته د کلمـاتو وروسـتي حرکتونـه غورځوي او "نعمتونه" د "نعمتون" پـه شکل کاروي.

دا وه هغه ټکي چي یادونه به یې د ملا امیر د شعر په پوهېدلو کي مرسته وکړي.

**محمدمعصوم هوتک**
**اوکویل ـ کاناډا**
**۲۷ مارچ ۲۰۰۶ع**



عـــــاشقان دي بیماران پـــــه زړه زخمي
ددیدن زکات غـــــــواړي پـــه مسکیني
هیڅ حـــــاجت یې ددنیا پـه چــــاره نه وي
نه پـــــــــه کارېږي وي جنت غـــلمان حوري
دخپل یاردیدن یې خــــــوښ تردوه جهان وي
قاسم کـــــــــړي ښـــــــه قسمت دئ ازلي
دتوحید دباغ مي هـــــــرعـــــــاشق بلبل ده
ودي باغ تــــــه بل مــــــــرغــه لاړنه لري
د گلانــــــــــوسیل بي بـــــــــــهاره نشته
دډیدارروغ لـــــــــوی بـــــــهارده کاملي
په تصیب دي ښه دیدارپه لـــــــوی بهارشه
(ملاامیره) جنت پرپرده ددیارشـــــه محبتي[1]

[1] تـردې غزلـي وروسـته دنسـخې پـه پـای کـي د (زمامقصود) رکاب راغلی دئ خونسخه پرهمدې ځای نیمگړې ده اوزه نـه پـوهېږم چي څوپاڼي بـه یې لوېدلي وي (م. هوتک).

بسم الله الرحمن الرحیم

(الف)

نن مشغول شه په الحمد و په ثنا
په دهان کښې دې چلېږي ژبه ستا
هر بنده لره لازم ثناګویي ده
په قرآن کښې بیان کړې پاک مولا
صد درود و صد سلامه دې انعام وي
له ما خواره امتي پر خپل پېشوا
هم پر آل هم پر اصحابو د ده باندې
هم پر واړه ګذشته وو انبیا
که ظاهر باطن الف شوې مردانه یې
په لباس د (ج) په پټ شې سر تپا[1]
که د (ز) نسبت دې وکړو خپل نفس ته
پر دغه تقصیر همېش کوه ژړا
ښه محکمه پیاله نوش د قناعت کړه
بې صبري ده بدبختي لویه بلا
شفقت د فقیر وعظ ونصیحت دی
زیاتي نه لري قدرت د ضرب پر چا
راشه ونیسه محکم دربار محکمه[2]
ځان ورګډ کړه په مجلس د اولیا
هر ګناه لره زنګ ونه پر زړګي دي
آئینه د زړه له زنګه کړه صفا
که صادق یې یک بیني یک جهتي کړه
د توحید پر لار تلای نه شي دوبین بیا
ګمراهان د زماني تر حساب تېر دي
(ملاامیره) کناره شه له هر چا

❀ ❀ ❀

که ساقي راکه جامونه د کوثر بیا
په کار نه لرم دنیا و سیم و زر بیا
هست مي ستا په هست موقوف ده فضل وکړې
پر خپل هست باندې دهست وکړه نظر بیا
په نظر د کاملانو مي منظور کړې
معتکف دي د دربار یم هم د در بیا
ممکنات چي رب پیدا کړه په قدرت خپل
دا همه دي نښاني د پیغمبر بیا

(۱) سرتپا= سر تر پا.
(۲) دا نیم بیتي کټ مټ ولیکل سو.

هیڅ د حسن سیال (یې) نشته په دنیا کښې
سیالي نه که ستا له رنګه شمس قمر بیا
چي پیدایې ستا له رویه کل اشیا کړه
پاک الله پر تاعاشق، تې[3] کړې اظهر بیا
و دیدن ته دي محتاج شاه و ګدای دي
که روزي مي ستا دیدن شي په محشر بیا
زه چي مست و رندانه د زماني یم
ډېر مستان رندانه دي ستا د در بیا
عشق دي هسي سرګردان کړم په عالم کښې
نه پوهېږم په خپل نفع و ضرر بیا
بې صبري مي شوه غالبه ستا په عشق کښې
قناعت پیاله که راکړې پقدر بیا
د هجران په اور مي مه سیځه صنمه
(ملاامیر) که مفرح کړې په نظر بیا



صدقه شه صدقه شه دل و جان زما
تر دیدن و تر دیدن د خپل جانان زما
یو دیدن و عاشقانو لره بس ده
همېشه دوی ثنا خوان دي د خوبان زما
منتظر ورته ولاړ دي بې اختیاره
که معمور شي په دیدن د ګل ریحان زما
نه له سترګو غائبېږي نه په سترګو برابر ده
لار د عقل نشته چي څرګند به شي سبحان زما[4]
هیڅ تعلیم و عاشقانو وته نه شي
دواړه کونه دي پرې اېښي پر جانان زما
شابس شابس د عاشق پر همت باندې
چي یک بین شو یک جهته پر میدان زما
(ملاامیر) غریب دوبین دئ تې[5] یکبین کړه
رب کریم ده هم رحیم ده هم رحمان زما



(ب)

چي طالب شوم د مطلوب
په کال سلب شوم مسلوب

(۳) تې = ته یې.
(۴) د دې بیت څپې د غزلي د نورو بیتو د څپو پر پرتله زیاتي دي.
(۵) تې = ته یې.

هسې رنځ رابانـدې راغـې
په مثال لکه ایوب
د عشق دا رنګ سخته زور ده
بې بصر کئ[1] عشق یعقوب
که معشوق هر څو جفا کړي
و عاشق ته وي مرغوب
عاشقان چې همېش ژاړي
بیماران دي په مقلوب
له دې رنځه به روغ نه شي
بې دیداره د محبوب
د عشق هسې غالب کار ده
خوار عاشق کاندي مغلوب
پخته کار عاشق هغه ده
چې خپل عشق کاندي محجوب
که مخلوق تې عشق ظاهر شي
ښه یې نه بولي کتُب
ربه عشق مې پوشیده کړې
هم پر شرق هم پر غروب
له نقصانه عشق نګاه کړه
نفس حاضره پر شمال هم پر جنوب[2]
ملا امیر غریب بیان کوي له عشقه
په مثال لکه مرغه اخلي حبوب[3]

❀❀❀

له کامله پیاله نوش که په شتاب
پرهېزي شه له ګنا که اجتناب

خپل باطن کړه پاکیزه له هره خُبثه
ځان لایق کړه چې منظور شې دا حباب
بعضې خلک په ظاهر ډېر آراسته وي
په باطن کې خباثت وي بې حساب
بعضې خلګ په باطن سم آراسته وي
په شریعت[4] وي هم ملامت هم په کتاب

دغه دواړه نقصاني په آخرت وي
چې حاضر شي په میدان د سوال جواب
بختور ده چې ظاهر باطن (یې) د واړه[5]
برابر د شریعت شوه د وهاب
راشه تینګ پر شریعت شه که دانا یې
په شریعت به مفتوح شي د جنت باب
که څراغ د شریعت خدای په لاس درکړ
وښه نور ته یې عاجز ماه و آفتاب
هغه څوک چې ردوي حکم د شرع
خلاص به نه شي د دوزخ د سخت عذاب
پټ پنهان له خپله خدایه مشغولا کړه
د صدیق د سینې بوی تئ[6] د کباب
کاملان مې غوصان د عشق دبحر دي
ځان جهان وځني هېر غرق په دریاب
پیروي د کامل وکړه که صادق یې
زموږ په لاس ده د قرآن محکم تناب

دیارلس صدې شپږویشت کاله وو تېر شوي
ملا امیر بیان کوي له هره باب



(ت)

که وصال د جانان غواړې په قیامت
په اخلاص و په تصدیق وکړه طاعت

په مجلس د دلبرانو به ورګډ شې
که دې ترک کړ د دنیا زېب وزینت
بې بقا ده دا دنیا هیڅ باور نشته
په مثال لکه تېز باد ځي په سرعت
په دنیا پسې هلاکه زمانه ده
ابلیس کاندي حرص غالب تر قناعت
دانایان مې دي مشغول د یار په مینه
پروانه که د دنیا په زیان کثرت
اولیاء خدای نازولي په دوه کونه
ښه دیدار به ورعطا کړي هم جنت

(1) کئ - کړئ.
(2) دا نیم بیتی څلور څپې زیات دئ.
(3) حبوب - دانې. جمع یې حبوبات دي.
(4) شریعت دلته د عوامو په شان دوه څپه بیز باید ولوستل سي.
(5) اصل: هغه بختور ده چې ظاهر باطن دواړه.
(6) تئ - تلئ.

توکل مو پر خپل خــــــــدای زموږ مومنانو
بې لـــــه خـــــــدایه تکیه نشته د راحت

ښه تـــــــــقوا و همت خوی د مسلمان ده
د شیطان تابــــــعان ډک پـــــــه خباثت
امان راکـــــــړې دابلیس دبده خـــــــویه
د ده خــــــوی ده ګـــــمراهي بل فضیحت
مقصود تینګ کـــــــــړه سوا پرېږده[1]
رضاجوی شه د ښه خــــــدای هم د حضرت
محبت د خدای نـــــــهال پر خپل زړګي کړه
اوبـــــوه یې پـــــــه چشمه د شـــریعت
اســـــم ذات د زړه صیقل د ســــــالکانو
تصفیه د زړه راځي پـــــه طــــــــریقت
بیا به کشف وکــــــرامات درته حاصل شي
پوشیده لـــــــره دا حـــــــال د حقیقت
تــــــــر عرش پـــــورته دي اویا زره حجابه
داخل کېږي عــــــارفـــــــان بلند همت
معرفت مي شناخت د خدای پـــر خپل طاقت ده
(ملاامیر) تعریف کـــــــــوي د معرفت



خوار عاشقه معشوق ګوره که لــــرې استقامت
نن دي وار دئ که پوهېږې د قـــــرآن په تلاوت
عوام خلق دي مجلس د علــــــماو فقراکړي[2]
له تاثیرې[3] پیدا کېږي تــــوانګري و قناعت
کـــــه راه رویې ســـــم پرلار د شریعــــت شه
رهروي بـــې شریعته دئ سالک له[4] قبـــاحت
ملحــــــدان په زمانه کـــي هســـــي ډېر دي
هیڅ خبـــر په شرع نه وي نه په تـــــرک د جماعت
موحدان مــــــي مستقیم همېش پـــر جماعت وي
له ښه خدایه وي ترسان هـــــم له عذابه د قیامت

په لبـــاس د حلـــــم پټ شه ســـر تر پایــــه
د حلـم لباس دئ هر مومن له مرتبه د شرافـــت

حـــلم خوی د انبیأ و اولیـــأ دئ کـــه خبر یې
قـهر غضب خوی د شیطان دئ نه دئ خوی د ولایت
غـافـــلان د یاره ذکره، نقصاني په دواړو کونو
عاشقان صفت ګویان د دلبرانو په دنیا هم آخرت
که تــــــر عرش و کرسي لـــویه دي سینه شوه
سواءالله به هسي غرق سې لکه فرعـون هم جاهت[5]
(ملا امیره) پر عمل هیڅ تکیه مه کړه فضل غواړه
دغه لوی فضل عظیم دئ چي یې درکړ هدایت

❀ ❀ ❀

د خوبانـــــو سردار تئ[6] پاس پر اسمان خوت
تېر تر عـــرش و تر کرسي پر څښتن ګران خوت
چي مشـــــغوله پـــــه صلوت طیبات شو
هر ګفتن یې در مرجــــــان تـــر ښه دهان خوت
د امت غـــــم یې زرغـــــون پر پاک زړګي و
هېر یې نه و چي دربار تـــــه د سبحان خوت
پـــــــر دربار د حق تعالی یې قـــدر ډېر دئ
وربخښلئ یې امت نــــــاز یې چـــــلان خوت
ګفتګوی د ګـــــوی مګوی یې سره وکــــــړ
ګـــــوی بیان د شریعت دین یې روښان خوت
د مګـــــــوی خبري پټي له هـــــــر چا دي
پاک حبیب رب منع کـــــړئ ډېر یې زیان خوت
طی شـــوه نه فلک اتلس کالــــــه یوه شپه وه
بې مثاله ښه مجلس د دوی تــــــر میان خوت
پنځه فرض لـــــــــمونځونه شب و روز شول
که چا ترک کـــــــړه آخرت لرې[7] تاوان خوت
پنځه فـــــرض[8] چي ادا پــــــه جماعت شي
خدای رسول به شي راضي دی پـــه نېکان خوت
مومنانو امـــــــر ونهی تول پـــــر ځای کړئ
نصیحت د (ملا امیر) پـــــــر دل و جان خوت



[1] دا نیم بیتی ځلور څپې کم دی: سوا = ماسوا. او ماسوا د خدای تعالی له ذات پرته نورو موجوداتو او مخلوقاتوته وایي (غیاث)
[2] اصل: عوام خلق دي مجلس دعلماوفقراکړي په هردم اوترلاندې بیاورته کښلي دي: دعالم مجلس کوه که ته دانایې
[3] له تاثیرې = له تاثیره یې
[4] سالک له = سالک لره

[5] جاهت:
[6] تئ = تلئ (دکندهارکړدود)
[7] لرې = لره یې، ته یې
[8] فرض کلمه دلته دوې څپې باید ولوستل سي

(ث)

زمونږ و تا ته دی سوالونه یا مغیث[9]
له تا غواړو ډک جامونه یا مغیث
حاجتمند درته ولاړ دي بې شماره
فریاد رس یې. له تا غواړي حاجتونه یا مغیث
حاجت زما ده ستا رضا په دواړو کونو
د رضا دي طلبګار یم په عمرونه یا مغیث
هیڅ مقصود مي په ظاهر باطن بل نشته
ستا رضا ما خلاصوي له هر غمونه یا مغیث
ربه قطع انتظار د خوار عاشق کړې
رحم وکړه دیدار وکړه ته پر وکړه کرمونه یا مغیث
هر عاشق چې وي صادق په محبت کښې
تر چشمانو یې خو ناب وهي موجونه یا مغیث
و خپل یار ته سل نظره د عاشق وي په هر دم
یو نظر یې ستا دوا دئ د زخمونه یا مغیث
رد، قبول دواړه موقوف ستا په رضا دي
و بنده ته څه معلوم دي ستا حکمونه یا مغیث
مومنان مي مقبولین په دوه جهان کښې
د تقوی توکل ډېر دي اجرتونه یا مغیث
ښه خلعت خدای د ایمان و مونږ (ته) راکړئ
مونږ پر دا خلعت همېش کړو شکرتونه یا مغیث
پاک قرآن دي راستولئ لوی انعام ده
پکښې ډېر د حل حرمت دي بیانونه یا مغیث
زمونږ ایمان پر پاک الله هم پر قرآن هم پر رسول ده
د (ملا امیر) پر زړه ډېر د عشق داغونه یا مغیث



(ج)

په کوڅه کې دي ولاړ دي رقیبان کج
همېشه راته قهرېږي غمازان کج
جنګ جدل مي له خپل نفسه شب و روز ده
بل پر څنګ راته ولاړ ابلیس شیطان کج
په خپل فضل دي اسباب د جهاد راکړ
په اسم ذات سره وهمه کافران کج
د مومن زړه مي تر عرش عظیم لوی ده
اته برجه پر ولاړ دښمن حیران کج
روح بادشاه عقل وزیر ده که یې ګورې
نفس شیطان ورته ولاړ دي پر میدان کج
ښه تقوی و همت وکړه مدت ورکړه
اته برجه کړه محکمه له نقصان کج
بیغمي هیڅ په کار نه ده د دښمن دار له[1]
د جرس په شان بیدار شه هم نالان کج
که غافل شوې له طاعته له اذکاره
وبېرېږه له دوزخه له نیران کج
محکمي دا اته برجه په طاعت وي
د غافل روح (مي) بندي ده د شیطان کج
سنګدلان چې ببدیني که سبب دا ده
د معصیت په رنګ یې رنګ ده دل و جان کج
هغه څوک چې توبه ګار شي زړه یې پاک شي
رب غفور ده هم رحیم ده پر عصیان کج
هر مومن چې توبه ګار د ما مضی[2] شي
له آینده و ځان ساتي له هر زیان کج
اول ځان ته نصیحت کړم بیا و بل ته
(ملا امیر) بیان وکئ د هر تاوان کج



(ح)

عاشقان سینه سوزان غواړي قدح
ودربارته دي ولاړ نالان ګریان غواړي قدح[3]
هر عاشق چې د هجران تر مقام تېر شي
ګویانوی شو پیدا، وایم نشرح[4]
بې صبری راځخه هېر صبر سکون کړ
اوس له ډېري تلوسې شوم سینه شرح
په باطن کې دریاب په جوش خروش ده
پټ پنهان[5] یم پکښې غرق زه یم فرح
خامکاران دي زیانکاران تر هغه وخته
چې تمیزو رمعلومېږي دنیکی هم داقبح

---

[9] مغیث (دمیم په پېښ) فریادرس، هغه ذات چې فریادورته کېږي.

[1] له = لره.
[2] مامضی: تېرسوی وخت.
[3] دا غزل ډېري قافیوي نیمګړتیاوي لري.
[4] نشرح یو راز نظم دئ، چې د هلک د زېږېدلو پر وخت د خوشالی په خاطر په ډله ییزه توګه ویل کېدئ.
[5] اصل: پټ پنهم؟

چي آهن رنگه جـــوش ونه که په اورکښي
یوه کیلي کله جوړېږي چي بـه قلف شي په افتح
که دعشق په اورکښي نفس سوخته پخته کړي
دزړه نوربه دي شي پورته کل زمین کاندي اوضح

شریعت درســـول باغ زه یې باغبان یـــم
(ملاامیر) یې ډنګوي هـــم په ضمني هم په صرح



(خ)

دفراق زهرمي نـــوش کـــړي زړه خوله تلخ
زمـــامزاج شـــوهفته یي لـــکه دبلخ[۲]
ستاوصال زمـــادوا د هـــــر مرض ده
پــــه کارنه لــــرم دوا دهنداوجلخ[۱]
دوصال کوځه دې کـــوځه دي خلاصه جانانه
رقیبان پـــــه مــــخه راغلل لکه ملخ
اوس حیران یـــم چي پـــرکمه به تېرېږم
لاربه خلاصه پــــه غره شي که پـــه سلخ[۲]
هسي ګـــــرم ده بازاردعـــاشقانو
ســـوربه نه شي دسیاه بندپه یخ کلخ[۳]
وعـــاشق ته یې ژړاپـــــه برخه ورکړه
تل بـــه ژاړي چي پـــه زړه یې خنجرځرخ
هـــرګیاه مي پـــه باران خوشحالي کاندي
(ملاامیر)ده ډېرخـــوشحال په برف پرخ[۴]



(ج)

مـــوروپلاروتـــه هیڅ مه ووایه پوچ
مــــرتبه بـــه دي کــمتره سي ترمچ

[۲] وايي دبلخ هوا یوه هفته سړه بدۀ نوده وي، دلته دغه ټکي ته ضمني اشاره ده.
[۱] په اصل کې (جلخ) ته کښلي دي: نام وطن است.
[۲] غره دمیاشتي لومړۍ ورځي ته اوسلخ دمیاشتي وروستۍ ورځي ته وايي.
[۳] په اصل کې (کلخ) ته کښلي دي: سردی سخت.
[۴] اصل: فرخ. خوځنګ ته یې بیاورته کښلي دي: فرخ شبنم راګویند. شبنم ته خوپه پښتوپرخه وايي اودلته یې دشعري ضرورت له امله (پرخ) لیکلی دئ.

پاک سبحان یې بیان کـــــړی په قرآن کښي
دوالدیـــــنودئ حق ډېروباســــه غچ
بیامي حق داســــتاذانـــوده بې شماره
ښـــه محکم یې ټینګــــوه لکه سپین ګچ
بیاحقونه پــــرهـــــرچادعلـــماوو
دنبي مـــــیراث یې وړی دئ پـــــه پچ
یومومن پــــربل مومن لــــري حقونه
ښه محبت سره کــــوئ شیطان که تچ[۵]
له کفاروبـــــه همېش منازعــــه کـــړو
له کفاروســـــره دئ زمـــوږددین غچ
که خپل شیخ که دبل شیخ ته دست بوسي کړې
تاله فیض وبرکت لاس یې کــــــړه مچ
ترکـــــوه خپلـــــه رضادبل دپاره
دمومن وزړه تـــه ګـــــوره نه یې لچ
(ملاامیر) فقیرکه هـــــرڅونصیحت کړي
دانایان خدای پـــوهولي دجاهلوده خوله وچ



(خ)

که مـــــرګی درلـــره راغی ژوندون هیڅ
که وصـــــال درلـــــره راغی بېلتون هیڅ
دانایان پــــه قیل وقال ډېرخـــوشحالېږي
وجاهل ته قیل وقـــــال مرګ ژوندون هیڅ
که طاعت دې پــــه مثال ریګ بیابان شي
په ریابــــه شي برهـــــم لکه ګلون هیڅ
ځان صدف رنګه صفاکړه پـــــه دریاب کښي
بې دریابه سنګ کلوخ هـــم سفالون[۶] هیڅ
درقیمت دئ پیداکــــړی پـــه خپل صبر
بې قیمته پیسې ډېـــــري دمیسون[۷] هیڅ
دمجــــنون دعــــشق خبري چي باقي دي
ځني ورک ځان وجــــهان وهم سکون هیڅ

[۵] تچ: دغوزارېدلو، لوېدلو آواز (پښتوپښتوتشریحي قاموس). دلته به دغوزراولوپه معنا راغلی وي
[۶] سفالون = سفال = کودري.
[۷] میسون: په معنایې پوه نه سوم. ښایي دمسیون = مسیو = ښاغلی اړول سوی شکل وي. دشاعرپه وخت کي ځیني اروپایي اصطلاحات (انګرېزي او فرانسوي) افغانستان ته رسېدلي وه.

که مجنون غوندي صادق يې نن دي وارده
دليلی دوصال غم خوره نورغمون هيڅ
هرعاشق په خپل معشوق پسي مجنون ده
که معشوق وفاونه کړه شواخون هيڅ
که عاشق يې پيروي دپاک قرآن کړه
بې له خدايه بې رسوله نورحبون هيڅ
(ملا امير)[۸] چي همېش ژاړي مرادېې ته يې
بې له تادي ټول باطل واړه سمون هيڅ



(د)

دمخلوق په صفت مه شه ارجمند
گمنامي کړه چي دي رب کاندي پسند
که هرڅولذيذطعام وخورې بې ياره
هيڅ به درنه کړي په خوله وزړه کښېي خوند
په مجلس کښېي داشراف وښه ادب کړه
خبردارشه چي اوازنه کړې بلند
حرکات وسکنات که کلمات وي
په ادب کښېي احتياط کړه که يې هوشمند
بندوبست دآخرت کړه که دانايې
په کارنه ده ددنياڼ پربست وبنډ
پردنيابه پاته نه شي هيڅ وګړی
که دمت حکم پروشي دخاوند
دطاعت دي خداى درکړي اسبابونه
نفس بندي کړه دطاعت په لوی کمند
ځان محکم کړه دخپل رب وبندگۍ ته
په عقبا به نيک وبدشي درڅرگند
بدبختۍ غلبه کړې پرهرچاده
(ملا اميره)ځان ساته له مکر وپند[۱]



ځوک بندمه شه ددنياپه زيان وسود
خپل دلبرله ورتگ تاله بهبود
پايمال کړي عاشقان جفادترکو
زه پايمال يم هم اسيريم هم مفقود

---

[۸] اصل: ملاامیرمحمد . مادوزن دوارنۍ له خاطره ونه کيښ

[۱] په دې نيم بيتي کي (پند) د نصيحت په معنا نه دئ راغلی، بلکي (مکروپند) دواړه اصطلاحاً د چل و فريب په معناراغلي دي.

محصل دمرگ که درشي سهل کارده
نه چي درومي تراسمانه دعشق دود
بې وصاله څه ژوندون بندگي نه ده
دوصال دپاره ږده سرپرسجود
که دعجربندگي کړه خداى قبوله
ستادرون به شي خوشبوى ترلونګ عود
په هرغم پسي ښادي ده آيات گوره
پاک خليل شوپه امان غرق شونمرود
سودله خدايه زيان له نفسه پيداکېږي
په سبب دنفس هلاک شوه عادثمود[۲]
سخته روڅ دآخرت زموږپه مخه
اوس بايده دي استغفارويل د درود
شب وروزده کوچ وباردېنونيازمنو
لکه کوچ کوي سحاب په بهارزود
دغج جهازراته جوړکړی خپل دلبرده
نه پوهېږم چي به ووزم که به غرق شم په کبود[۳]
وجودي وحدت[۴] مقام پرمنصوراغی
ځني ورک فرق دواجدهم دموجود
خواربنده ده درمانده په دوه جهانه
(ملا امير) بيان کوي خداى يې مقصود



ددلبرياري کړه ټينګه ترپولاد
ځان يې يارکړه په زاري و په فرياد
ترکوه خپله رضاديارله پاره
په يوه نظربه تاکاندي اوتاد[۵]
ودلبرته دي معلوم ظاهرباطن ده
که تاريک وي که صفاوي که کساد[۲]

---

[۲] اصل: په سبب د نفس هلاک شوه عاديان هم ثمود.
عاد و ثمود: عاد د سام بن نوح (ع) له نسله وه. د دوی له پاره خداى تعالى هود (ع) ورولېږه خو د نافرمانۍ له امله د باد په توپان هلاک سول او ثمود د حضرت صالح (ع) امتيان وه، وايي دوی د نافرمانۍ له امله ټول وسوځېدل.

[۳] دانيم بيتی دغزلي تربحرڅلورڅپې زيات دئ. کبودته يې په اصل کي کښلي دي: دريای کبود

[۴] اصل: دوحدت وجودي

[۵] اوتاد د خداى د دوستانو يوه ډله ده او د نړۍ په څلورو گوټوکي تصرف لري

هر سړی چي دپاکانو مجلس غواړي
ځان دي پاک کړي له هر خبثه له فساد
هره درخته چي شیرینه وي په باغ کښي
پرمالک یې قدر ډېر وي تر شمشاد
که ځوک وکاندي نظر وحقیقت ته
بې له خدایه نور مقصود همه برباد
غیرو باسه له میانه پرلار سم ځه
په وصال به یې معمور شې په خپل مراد
ددنیا په جاه دي هیڅوک غلط نه شي
ګاهي سپور وي پرسمند ګاهي افتاد
هغه تخت چي په هوا د سلیمان تئ[۷]
خو آخر زیر زمین شو بې بنیاد
ابراهیم بن ادهم چي خدای بادشاه کړ
بیایې ترکه کړه دنیا په دین شو ښاد
هر مومن دئ مبتلا په دوه مقصوده
یو ناقص ده بل کامل که لري یاد
داناقص مي دئ دنیا، کامل ایمان دئ
ته کامله ښېنګوه ناقص نامراد[۱]
کاملان چي جستجوی دآخرت کړي
نیک عمل یې دئ توښه دلاري زاد
اول ځان ته نصیحت کړه بیا وبل ته
(ملاامیرمحمده) ژاړه په فریاد[۲]



کلمه مي ده ویلې ماپر تا محمد
چي له رویه دي پیدا شوه دادنیا محمد
(وه) راغلي ډېر دینونه تر تا وړاندي
ستاددین محکمي تېره تر هر چا محمد
نه زمین وه نه اسمان نه عرش و کرسي
امکان نه لري چي بربه شي تر تا محمد
خدای درکړي بلندي په دواړو کونو
له اوله یې پیدا کړه لویي ستا محمد
ته سبب یې دهمه مسبباتو
رب سبب کړې دهمه واړو سوا محمد
ستاګرېوان به ټینګوم پاکه حبیبه
ستاګرېوان مي شریعت مصطفا محمد
دوحدت په زمانه کي توره شپه وه
تاریکه شوله زایله چي دي نور کړه تجلا محمد[۳]
چي پیدا کړ پاک سبحان نوردحبیب خپل
دمعشوق یې انعام درکړئ پاک مولا محمد
ته دغیبو خزانه وې په وحدت کښي
له وحدته رابیرون شوې پر دنیا محمد
ما بنده لره لازم چي تل شاکریم
چي مشغول یم په ثناوصفت ستا محمد
امیدوار د شفاعت دپاک رسول یم
که شفیع شو[۴] مابه خلاص کړي له ګناه محمد
په رحمت سره بللی پاک الله دئ
رب بادشاه کړئ دجملهوو انبیا محمد

یو لک څیرویشت زره دي لښکرو مقرر
ته دټولو هم سرداروې هم بادشاه محمد
ستاپه دین سرې[۵] منسوخه کل ادیان کړه
ستا رب مرحوم کړي په رشتیا محمد
ډک روی دزمین وله غفلته یا سروره
ستاددین روښنایي شوه ترعرش بالا محمد
عارفان چي رسېده که ولاهوت ته
دغه فیض وبرکت همه دئ ستا محمد
له عدمه چي وجود دهستی راغی
ستا له هسته راپیدا شوه کل اشیاء محمد
سرچشمه یې دجملهوو مخلوقاتو
ته آبخوریې داعلی و دادنا محمد
عالمان دي وارثان دین په روښانه
ترقیامته ستاددین دي خیرخواه محمد
کافران مي توروزاغان مخوني[۶] تورو
نه ښایېږي چي به ګډ شي په باغ ستا محمد
ربه روی دپاک نبي زه خوار عاصي یم
عفوه غواړم معتکف ستا درګاه محمد

---

[۲] کساد: هغه څه چي نا روا وي، یا رواج ونه لري یا یې خریدار نه وي (غیاث).
[۷] تئ = تلئ
[۳] دا نیم بیتی دغزل ترنورو بیتو څلور ځپې زیات دئ.
[۴] اصل: که دی شفیع شو...
[۵] سري = ...

خدای لوی کړی په لويي ترهـــــــرمخلوق يې
هـــــم ترعرش هم ترکرسي هـــم ترسمامحمد
زه فقيرخـــــــواريم دوعاګـــــوی دمسلمينو
هـــــم دوارو علماوفقراهـــــم اوليامحمد[7]
په توحيد کښي مي صادق کـــــړې ستاپه مينه
(ملاامير محمد)[8] دي غلام ده هم ګدامحمد
محمداســــــم محضه زمــــــــور دنبي ده
پـــــــه نګين کښې نـــــــوشته دانبيامحمد

دهــــــــرمومن پرژره مرقـــــــــومه کلمه ده
(ملاامير) غــــــــريب ده ولي وارخطامحمد

❁ ❁ ❁

تخت وبخت زمور دبادشاه دي برقـــــــــراروي
پـــــــه سراج الملة والدين ده مســـــمامحمد

ډېردي عـــــــمردااميرحبيب الله خـــــــان وي
ترســــــايه لاندي يې ناست امتيان ستامحمد
ربه ابادنائب صاحب لـــــــــري تـــــرډېره[1]
اخلاص کښ ده دپېشواهــــــم دبادشاه محمد
تل مشغول دکندهــــــــــــارپه ابادي ده
اوس مشغول په نهرســـــــراج نهراعلى محمد
نهرسراج به خدای معمــــــورکه وخت نژدې ده
(ملاامير) فقيردوعاګــــــوی ده هرسبامحمد

❁ ❁ ❁

(ذ)

که له ياره پـــــــــــريارراشي دوصال کاغذ
پرچشـــــــــمانو قبلوي دځان پايمال کاغذ
که عــــــاشق لـــــره يې خط دقتل راشي
وعاشق ته معلــــــــومېږي ډېرد خيال کاغذ
دمنصورچې عشق صادق وحــــــال يې ګوره
پاس پـــــــرسردارخندان ورک وجنجال کاغذ
پايبوسي دي سخته ګـــــــــــرانه ده صنمه
زه به نسمه[2] ومخ تــــــه ســـــتادفال کاغذ
ناديده پـــــــرتامين شـــــــــــومه جانانه
راستولى دي خـــپل دوست له[3] دجمال کاغذ
که مي سرومـــــــال برهـــــم شي ستاپه مينه
(ملاامير) مي نه غـــــــواړي دسرومال کاغذ

❁ ❁ ❁

(ر)

امتي يــــــــــم دنبي خـــــــيرالبشرسرور
ستادربارکښي تـــــــرهـــــرچاده معتبرسرور
له خپل نـــــــــوره پيدادحبيب نــــــورکړ
بياپيداده له نورشــــــــمس وقـــــــمرسرور
ناسوت پټ ودغفلت پـــــــــه تاريکه کښي
ستاپـــــــه نورسره روښان کـــوه وشجرسرور
تـــــــراول اولين ده ترآخـــــــرآخـــــــرين ده
په شفاعت سره مخصوص ده پـــه محشرسرور
ستاامت بــــــــه منتظردشـــــــفاعت وي
دبخښنې ناري بـــــــــه کاندي پراکبرسرور
ســـــــــــتاامت به وبخښي ته به راضي شې
بيادي بخښه دنيکانوپـــــــه قدرســــــرور
دمعصيت په رنځ رنځـــــــــوريم دواغـــواړم
د(ملاامير) دواستاشفاعت دهــــرضررسرور

❁ ❁ ❁

ډېرراغلي ستاغــــــــمونه زمــــــــاپرسر
زه خـــــــوشحال يم ياره مــــــــه شه مرور
پيداشــــــــوی زماصورت دغـــــــم دپاره
قبول کـــــړی مـــــــــابنده پـــرخپل بشر
په معناکښي لوی نعمت ده غمې[4] مه کـــړې
ډېرلـــــــذت لــــــري ترقندوتــــــــرشکر
دعشق اورچي پـــــــه صورت[5] ونه لګېږي
که تــــــه تــــــه وې ته به نه شې اې غريبه
که نـــــــه تـــــه وې نـــــه دي زه څه برابر
په مجلس دخـــــــــوبرويانوکه ورګډ شوې
پاکــــــــيزه بـــــــه ځني ځې لکه سپين زر

---

[7] دانيم بيتی هم دنورونيم بيتيوپه پرتله څلورڅپې زيات دئ.
[8] دلته بايد (اميرمحمد) ټول درې څپې ولوستل سي.
[1] لـه نائب څخـه يـې مـراد دکندهاردهغـه وخـت نائب الحکومه سردار محمدعثمان خان دئ.
[2] نسمه = نيسمه.
[3] له = لره.
[4] غمې = غم يې.
[5] (صورت) بايديوه څپه ولوستل سي.

تردوه نبهره شه[۶] ورتېرهلته مجلس ده[۷]
ته سامع شه دشين هي[۸] دزېروزور
ستامقصود به تاته تې وجيم[۹] انعام کړي
دامقام دهغه ده چي قبول کړي د(ده)در
دتوحيد ترسوزن ووزه که يکتاېې
که دوتاېې ځان يکتای کړه يک بشر

خدايه (ملاامير)عامل دخپل بيان کړي
چي تېرېږي ترتوحيد سم برابر

❁ ❁ ❁

جفادي اورلګوي صنمه ليري کړه نار
ودي سوم سرترپايه خودبه کومه ګفتار

شيرين ګفتاردجانانکه شنيده کړم ياره
ترسرومال يم ورتېرکه کښېنوست زماپرکنار
سيمين بدن ددلبرمثل بي[۱۰] نه وي هيڅوک
پتېږ په اورتل سوځي اوس پرماخوارراغی وار
ستادبهاربلبلان شيرين زبان دي ګويان
ليري دي ګرزي زاغانوګل تي[۱۱] نه وينم لار
رنځوريم زمامقصودهته يي همېش موجوده
دواله تاغوارمه پرددي پروت يم بيمار
غمازه مه کړه هی هی نه پېژنې خپل پردی
زه دي دښمن ګرندی مخ له درځم په تلوار
ستادهجران تلخګي پرمالازم شبخيزي
برمن مکن ستمی عاشقان هست ناقرار
ستادوصال په هواسرګردان يم ترآسيا
من چه کنم صنماپروت يم داورپرانګار
ربه په روی دحبيب ماکړي غالب پررقيب
تويی ګل من عندليب نيست مرابی توبکار

چند سوزم درآتش ترباشداين روش
من غلام خدمتش مران مارازديار
ملاامیرهست فقيرمريدشيخ کبير
مراتوبه برتقصيرعفوخواهم زغفار

❁ ❁ ❁

خم زلف توپيچ وتاب لکه مار
عاشقان هست تشنه لبه دديدار
مجروح شددل من زدست جان ای صنم
که ديداررا کړي ياره زما دوا دپرهار
موسم ګل ګل ، ګل ميشود شګوفه
غفلت مکن ای بلبل آمدبتونوبهار
چه ګناه کرده عاشق دل وجان برده معشوق
امانت کی ميدهی ، دلبره وکړه تلوار
هست خندان دلبرم نظربمن فګند
شب وروزم انتظارکه راښکاره شي نګار
سرګردان شوم دلبرا ستادديدن په هوا
ديداربمن کن عطاځای دکفاروده نار
(ملاامير)غلام ددلبرستاددرګاه خاکستر
ربه زاري کومه مران زکوڅۀ دار

❁ ❁ ❁

ستاپه عشق کښي قبلوم دځان پېغور
هيڅ باک نشته که برمنډ يم که سرتور
نام وننګ راڅخه ورک شوستاپه مينه
اوس دعشق پرآس همېش يم زرين سپور
ددنياکورکه خراب شي نقصان نه ده
خدای دي نه کاندي خراب دعقباکور
دنيکی په زراعت که ځان کړي ستړی
پاک الله به شي خوشحاله هم غمخور[۲]
خوی دترکودئ چپاودعاشقانو
عاشقان واړه مغموم په غم نسکور
رقيبان راته ولاړتوره په لاس دي
نه بېرېږم خدای راکړی دعشق اور
که يوزخم دخطاراباندي جوړشي
په يوه ګذارهزارکړم شل او کور
که محرم زه ددربار دخپل اشنای شوم
په کارنه لرم جنت حورغلمان نور

[۶] په اصل کې ورته ليکلي دي : ازشهردنياوآخرت ګذرکن.
[۷] په اصل کې ورته کښلي دي : مرادمجلس مشاهده ميباشد
[۸] په اصل کې ورته کښلي دي : سامع قرآن شاهاشوبمع عمل صدق
[۹] په اصل کې ورته ليکلي دي : تاج
[۱۰] بي = به يې
[۱۱] تي = ته يې

[۲] غمخورته يې په اصل کې کښلي دي : نبی عليه السلام

هغه څـــوک چي مستغرق فی الفيوضات شي
ځـــــان کـــــړي پټ دزمانې دشـــروشور
يوګـــوره، يوبوله، يووينه ، يوغـــــــواړه
(ملاامیره) يک بين شـــــه نه يې شب کور
❁ ❁ ❁
ستادعشق په شراب ګــــــرزم مست خمار
له ماورک ځـــــان وجــــــهان شوهم قرار
راشـــــــه ونيسه خبردعــــــــاشقانو
چي حيات دي که مـــــــمات دي که بيـمار
ستادعشق په رنګ مي ســـور درون بيرون ده
نه پـــــــوهېږم چي لاله شـــــوم که انار
ستاددرخــــــاوري به کړم په سترګوپوري
خپل چشـــــــمان روښانوم له ګردغبار
بې تکليفه مي ناري دي پـــــه هـــررګ کښي
دهــــــوهــــــواوازنغمه کــړي وارپه وار
دتـــــوبې ونه که هــــــرڅـومېوه داره
زمـــــــاديارپه رنګ بـــــه نه وي مېوه دار
که وفاکړې که جفاکړې مــــــراد(دي) خپل ده
ستاجفاده سخته ګـــــرانه دوفايم طمعدار
عـــــــاشقانوځــــــان سپارلی پرخپل يارده
(ملاامیره) ځـــــــان سپاره پــــــرحق ستار
❁ ❁ ❁
(ړ)
ځان ببغم کـــــــړه له دنياڅخه لکه مــــړ
ستادروح شــــــــهبازګذرکه ترعرش لوړ
داخلاص پـــــــرميدان باندي شـــه محکمه
بې اخـــــلاصه وشيطان ســــــريږي شوځوړ
ربه راکاندې تــــــوفيق پرطـــــاعت باندي
دحساب په روځ مامه کـــــــــړې په خط پړ
غريبي ددنيابنـــــــــه ده تېرېده کـــــــړي
دمحشرپه روځ مامه کـــــــــړې غريب اړ
ستادربارد عـــــــــاموخاصو ، منعه نشته
زه درتلـــــمه رقيب کـــــــــړم په بدککړ
تشنه لب يــــــــم دوصال جامـــــونه راکړه
ماسيراب کـــړه تردښمن مي کــــــړه ته لوړ
چي هـــــــجران دي دوصال له مــخه راغی
بې زحــــــــمته هنجه وړای نه شي کاکـــــړ
هـــــــرسړی چي کسب وکاندي هــلاک شي
په دهــان کښي يې هــــــــرشی وي لکه کوړ

ســـــــــتادربارده دپاکانـــــــودنيکانو
(ملاامیر) ده ګناهـــــــکارپــــــه ګناه خړ
❁ ❁ ❁
(ز)
راشـــــــــه زمادزړه همدمه وکـــــــړه ناز
لــــــــه رقيبه مي زړه تلـــــــخ ده لکه پياز
ستامحبت مي پټ پـــــــه زړه کښي وساتلی
په آخــــــــــراڅخه فاش شــــــو دزړه راز
ګـــــــوياني له خپله ســـــــوزه دهرچاده
څه به وايم زمـــــــــاهمت شــــــولکه باز
چي درون دچـــــــاپخته دعشق پــه اورشي
عاقبت تـــــــردهـــــــــان وزي درپه ناز
څه بنده څـــــــه بې همت څـــه يې طاقت ده
چي ستادرله بـــــه درشي عــــــاشق پايواز
داميدپه درياب غـــــــرق لکه غـواص يم
دربه کله پـــــه لاس راکـــــــــړي زمادمساز
جاهــــــــلان مي له طاعته غـــــافلان دي
غفلت وړي ګـــــــويامړه دي پـــــــه مجاز
(ملاامیره) ګــــــــمنامي وخاکساري کـــړه
خپل ځـــــــان بوله کم تــــــرملخ هم ترتاز[1]
❁ ❁ ❁
(س)
ستاوديدته زمــــــاډېرکېږي هـــــــوس
محروم مه کــــــړه ماغـــــــريب لکه مګس
دوصال دباغ دي سخته ګـــــــــــرانه لارده
ګرانه نه ده چي فــــــريادکـــــــړم دجرس
ستاددیدخيال به ونه وزي زمــــــــــاله سره
که رقيب راته غــــــونډې کـــړي خاروخس
سمندرنګه ســــــــــــاکن دعشق په اوريم
نه په مرم نه دوتـــــــولــــــــــــرمه وس
ديوسف په شــــــــان بندي دغم په څاه شوم
دوصــــــــــال کاروان مي شه ډېر و ډېرپس
هرمـــــــــرغه چي وي ايله په هـــــواګرزي
چي بندي شي ګالـــــــــوي بــــــند دقفس
که وصال غـــــــواړې خدمت په اخلاص وکړه
په هـــــــردم درته حاضرفــــــــــريادرس

---

[1] تــــاز : يورازحشــره ده ، چورچورکـــه (پښتـــو پښتـــو تشريحي قاموس)

ستا دستر گو کتو وایستم له حاله
پر دغه حال پېژنم کس وناکس
دا یقین ده چي د مرگ سپاره به راشي
(ملا امیره) تا له څه خندا هوس



ستا په فضل به خلاصېږم له خناس
تل جهاد ورسره کړم یم په هراس
زما په زړه کښي اچول د خطروکاندي
غواړي ما کړي مسوس[۲] په ډېر وسواس
که توفیق مي خدای رفیق کړ پرده باندي
پرې بې نه ږدم بې مرگیه په خپل لاس
چي دښمن د چا په کور شي حال بې[۳] څه وي
زما پر کور همېش ولاړ د دښمن آس
را داخل زما په خونه نفس شیطان شوه
بندگي مي په عذاب شوه وکړه قیاس
په تصدیق وپه اخلاص عبادت وکړه
ځان ساته قوي دښمن لري خناس
ښه صفا کړه روح و زړه په ذکر وفکر
خپل دلبر لره ورځه صاف تر الماس
هر عامل به جزا مومي د عمل خپل
(ملا امیره) نیک پر بد و کړه تل پاس



خدای در کړی ډېر دولت سنگ پاروس
ستا په زړه کښي مکان لکه پانوس
د دولت دي هوادار ډېر دښمنان دي
پسي گرزي کیقباد هم دقیانوس[۱]
ښه دولت لره زنانو ته نگاه کړه
پر پیره شه که سردي وي که تموس[۲]
ترسهاره بیداري کړه غفلت مه کړه
که غافل شوې پر تارېغ کوي خروس
که دي دا دولت نگاه کړ ته بادشاه یې
مقابل دي نه وینمه چین و روس
سنگ پاروس که داخل په لوی بازار کړې
خدای به در کړي خوشحالي تر نوعروس
تکلیفات د شرعي پنډ پر خپل سر کړه
(ملا امیره) بې تکلیفه لرگی نه کېږي ابنوس



(ش)

په صیقل سره گناه کړه دزړه تراش
د توحید په نور غایب کړه بد خفاش
که صادق یې امر ونهی کړه محکمه
په قرآن کي نقش کړی دئ نقاش
څو باطله مدعا د دښمن نه کړې
مدعا د دښمن دئ په شرعه پاش
ته آئینه د شرع نسه[۳] وخپل مخ ته
ستا عیبونه به ښکاره شي بې تلاش
هر بنده چي په اخلاص بندگي نه که
په قیامت به شرمنده وي مخ یې خراش
هر بادشاه چي پر سپاه دولت بسیار کړي
هر سپاهي وي تېر تر سر هم تر معاش
(ملا امیره) دون همته تر هر چایې
هسي کم یې د دنیا تر ادنی ماش



په حصول د مقصود تل گرزي درویش
پرې به نه زدي خپل مقصود په زړه دلرېش
ترک وهلې ده دنیا د خدای دوستانو
تر دنیا تېر شو محبت د خدای ورپېش
بې له جذبه دوه جهان کله هېرېږي
که مجذوب شوې له تا پاته گاو و مېش
طریقه وعشق ته جذب الهي ده
ته عاشق یې که رب جذب کئ[۴] درپېش
که عاشق شوې دغه لوی فضل د رب ده
د اسم ذات په تېغ زخمي زړه همېش
د خدای اسم ده ساکر تا به مسکور کړي
یک بیني ویک خواني به کړي ستاکېش

---

[۲] مسوس: هغه څوک چي وسوسه ورلوېدلې وي.
[۳] بې = به یې.
[۱] کیقباد: د ایران افسانوي پاچا چي وایي سل کاله یې په خورا عیاشۍ کي پاچهي کړې وه (غیاث)
دقیانوس: یو ظالم پاچا و چي وایي اصحاب کهف ده له ډېري له ښاره وتلي و او په غار کي پټ سوي وو (غیاث)
[۲] تموس: دگرمۍ موسم. دکندهار پښتانه تموښ ورته وایي.
[۳] نسه = نیسه
[۴] کئ = کړي

متنفر به له مخلوق ظاهر باطن شي
کع دي ياروي که اشناوي که دي خوېش
ښه بيان دجذب عشق ده مومنانو
(ملاامير) يې بيان وکئ[۵] خيراند ېش

❀ ❀ ❀

په خپل ژوند چي خپل يارنه کړي فراموش
خپل يار بوله تابه کاندي زرين پوش
وعاشق ته دمعشوق صفت شکروي
په ظاهره وي آرام باطن په جوش
په خپل عشق دطاعت بار پر معشوق سپک شي
پروانه که ددنيا په خريد فروش
عشق هغه دئ چي پرشرع موافق وي
مخاف له شريعته شيطاني حق فراموش
نه ده چاميندلی عشق په کسب جانه
دالباس دهغه چاده چي يې رب کاندي ورپوش
دديداردي طلبګار عاشقان واړه
همېشه وي سرګردان ګرزي مدهوش
(ملاامیره) که صادق يې په طلب کښي
شب وروز دجفازهرکړه ته نوش
همېشه بيان دعشق کړه (ملاامیره)[۲]
په بيان کښي دي ثواب ده نه شي خموش

❀ ❀ ❀

زمادزړه خيال تېرېده کاندي ترعرش
ارام نه که ددنياپرقاني فرش
ستادعشق له برکته مستغني شوم
دوه جهانه راته هيڅ شوه لکه قرش[۱]
راځخه هېردهرشي خوندشي په دهان کښي
نه پوهېږم چي داتلخ ده اوکه ترش[۲]
چي دعشق په اورمي سوی دل وجان ده
جنګ آسان شو د اورس[۳] هم دحبش
ستادعشق په جاموهسي مست خماريم
دناکس اوس منت باريم هم بارکش

رقيبان راته ولاړستاپه کوخه کښي
پرورځم مانوش کړی دی ستابرش
دوې چشماني مي څلورشوې ستاپه لوري
منتظردرته ولاړيم په جنبش
توکل پرخپل خالق کړه (ملاامیره)
خپل خالق بياله تاکاندي سوال پرسش

❀ ❀ ❀

(ص)

دخپل يارطلب کوه تل په اخلاص
ځان غوټه کړه په درياب لکه غواص
عاقبت به درپيداکړي ترسرتېره
ته به شي په دغه درکلان خواص
که دي سرله تنه ښېل په غواصي شي
په عقبا به پيداکړي دسرقصاص
په طلب کښي دوصال که ځوک فناشي
رب به ورکړي درجه دخاص الخاص
په تقوا و په اذکار زړه نرم کېږي
په مثال لکه چي نرم ده رصاص[۴]
راشه پرېږده دادنياطلب ديارکړه
ته مسلم يې نه وليدبن عاص
ددنيامحبت حجاب ده (ملاامیره)
راشه ترکه دادنياکړه په اخلاص

❀ ❀ ❀

(ض)

د معشوق دربار له ځم لرمه عرض
که نقاب له مخه واخلي سرعوض
زه عاشق يم منتظرستاوديدن ته
ستاپه ديدستاپه رضالرم غرض
که عطاراته ديدن کړې زماصنمه
زه خوشحال يم که وړياوي که په قرض
بې له تامي هيڅ مقصودپه زړه کښي نشته
پرعاشق باندي طلب دمعشوق فرض
عاشقان په هجران سوي دي دلبره
ارام نه کړي يوساعت پرزمين ارض
هغه ځوک چي توانګرپه قناعت شي
زړه يې خلاص شي ددنياله سخت مرض

---

[۵] وکئ - وکړئ
[۲] اصل : .... ملاامیره فقیره.
[۱] قرش : ديوي سکې نوم دئ .
[۲] اصل : .... داتلخ ده که شيرين ده که ترش.
[۳] شاعردلته (اورس - روس) له عامه محاورې سره سم راوړی دئ.

[۴] رصاص : قلعی (يورازفلز).

دانایانو لره لړاشاره بس ده[۵]
(ملا امیره) جاهلان دي په زړه قبض

❀ ❀ ❀

(ط)

وخپل یاروته ژړاده زمافقط
توکل پرتا، نه پربل چاده زمافقط
بنه مي یاربنه یې دیدارده بې مثاله
ستادیدارته ډېره تمناده زمافقط
محروم ستاله دیداره هغه څوک دي
چي کافروي دی دښمن ستاده زمافقط
تل دزړه دېګ په جوش دعشق په اور
ترچشمانو مي خوناب ګاه وبیګاه ده زمافقط
پخته کارعاشقان موج لکه دریاب کړي
څني ورک ځان جهان محبت پرتاده زمافقط
منصفان که انصاف وکړي په خپل ځان کښي
هیڅ منت به نه پرتاونه پرماده زمافقط
په عالم کښي منت بارشوې (ملا امیره)
دتهمت په پېټي ماته شوې ملاده زمافقط

❀ ❀ ❀

څوبه ګرزمه ژوندي پردابساط
طمع نه کړم چي پیدابه کړم نشاط
شیرین عمرپه غفلت راباندي تېرشو
نه مي وکړه ښه تقوا واحتیاط[۲]
دنیاځای دکوچ وبارهیڅ باورنشته
وداناته ده څرګندلکه رباط
زندګي کړه واړه صرف په عبادت کښي
تېربه شې دباپه شان پرپل صراط
هیڅ عاشق به له رقیبه وېره نه کړای
که له یارسره یې نه وای اختلاط[۱]
داسم ذات په تېره تېغ کړه زړه دونیمه
(ملا امیره) ډېربه څوکړې انبساط

❀ ❀ ❀

(ظ)

دعشق بارزماپه شاده سخت غلیظ
راته جوره تماشاده بخت غلیظ
عاشقانوته یې دام دزلفوابښي
عاشق بند شوترداېند نشست غلیظ
بدعمل راته رقیب شوزماوځان ته
نیک عمل ده زماوځان ته تخت غلیظ
دغه تخت مي دبادشاه پرتخت بالاده
وربې نه کړم زماتخت ته بخت غلیظ
راڅخه هېردیارمحبت کړه دوه جهانه
همېش سپوردعشق پرآس یم سخت غلیظ
نن تناب دوصال ټینګ نسه محکمه
داتناب ده ډېردیارمخت غلیظ
عروه الوثقی رب بللی خپل قرآن ده
ته عامل شه (ملا امیره) دقرآن نوشت غلیظ[۲]

❀ ❀ ❀

(ع)

زه طامع یم ددیدارلرمه طمع
زه بلبل یم دګلزارلرمه طمع
سیاحان چي سیاحت پرزمین کاندي
زه سیاح یم دبهارلرمه طمع
جوش خروش دعاشقانوپه سینه کښي
زه عاشق دفیض انوارلرمه طمع
چي تشهیراختیاروي هغه خامان دي
زه پخته دګمنامیه، دقرارلرمه طمع
نابالغ فقیران ډېردي ، پیري کاندي
زه بالغ دښه رفتارلرمه طمع
په طریقت کښي نابالغه ډېرکسان دي
زه بالغ دطریقت یم دستارلرمه طمع
کمینه بنده دخدای (ملا امیره) فقیره
دتاخون په وینوسورلکه انارلرمه طمع

❀ ❀ ❀

(غ)

دلاله په شان زماده دزړه داغ
ستادعشق له غمو، نه لرم فراغ
دبلبل په شان طلب کوم دګلو
که مي ولیدای دیاردحسن باغ
که صدف رنګه سینه شوه دچاصافه
په صدف کښي درروښان وي لکه چراغ

---

[۵] اصل ... لړاشاره بس وکافي ده.
[۲] اصل ... ښه تقوا وعبادت احتیاط.
[۱] اصل ... که له یارسره یې نه وای سروکاروا اختلاط

[۲] په اصل کې ورته کښلي دي: هرچه درقرآن نوشته شده است ، همه احکام محکم است

دحقیقت پر ګلستان بلبلان ګرزي
کله ښایي چي ورګډ به شي تورزاغ
(ملاامیر)غریب دردمنده ستاپه عشق کښي
په وصال سرېږ[3] معطر کړه جان دماغ



(ف)

خدای دي نه کاهیځ مسلم له عشقه صاف
چي له عشقه وي خالي ، ده بې انصاف
هرمومن ایمان راوړی په خپل عشق ده
دکافروچي عشق نه وحساب نه شوه له اشراف
دجاهلو رجوع کله شي وعشق ته
عاشقان دخپل زړګي کاندي طواف
له ازله قاسم کړی ښه قسمت ده
کافران به په عذاب مومن معاف
پرزاهد وبانذي سپک بارد طاعت ده
سبب داده پر محفوظ یې ده عشق چاف[4]
هغه چاته چي طاعت مرغوب محبوب شي
داهمه ده واړه عشق ، وکړه انصاف
دزاهد وکفاف قوت ولایموت دي
په زیادت یې حکم کېږي داسراف
سرګردان اهل دنیادي په طلب کښي
موړبه نه شي مګرخاک شوشکم ناف
خدای دي صبرقناعت زماروزي کړي
(ملاامیره) له خپل نفسه کړه خلاف



که صادق یې له ګناه کړه ځان حنیف
په تقواوعبادت کړه نفس ضعیف
دنیکانو محبت دځان عادت کړه
خدای دي نه کاندي ګمراه دچاحریف
دجاهلو له صحبته بعید ګرزه
په صحبت به دنیکانو شې لطیف
عشق بازي له میانه واخله که دانایې
په خپل ځان کړه جامه دعشق لفیف
په ویل دمحققانو فهم وکړه
هرګفتن یې ترمرجان و در ظریف

---

[3] سرېږ = سره یې.
[4] ښایي چاپ وي ؟

هرکامل له خپله سوزه تصنیف کړی
ناقابل ده (ملاامیر) کوي تصنیف



(ق)

ماچي وخوړل دیاردلاس تریاق
راځخه ورک شو وخت دصبح وداشراق
ستاله حبه ماسیواشوه فراموشه
بیاپه یاددیارشیرین دهان بزاق[1]
سرګردان و پای دوان شوم په عالم کښي
دعشق آس مي ځابک ولید تربراق
چي وصال مي ددلبرپه کوځه وشو
داخلاص پرمیدان پاته شومه طاق
له هغه پس خوشحالي شوله راپېښه
بیامي ولیدځان جهان شومه آفاق[2]
په ظاهرصورت مشغول یم له عالمه
ذمیمه شوله بدل په نېک اخلاق
(ملاامیر) ده مدرس دعشق په علم
دهربیت ثواب دې[3] ډېرشي ترعتاق[4]



ستادوصل دګلشن زمااشتیاق
څه به وایم دهجران دلوی فراق
زه ترسروترمال وخپل جانان ته
خدای دي نه کاندي زماقول په نفاق
په ژړاسره زمابوټي کاني ژاړي
خلاف نه ده دمعشوق عاشق مشتاق
بدعمل زماحجاب دیارله مخ شو
ورکېده دي دحجاب په نیک اوراق
دتوحید په دریاب غرق شه حجاب نشته
ښه وصال به دي روزي کاندي رزاق
دقسمت برخي وهرچاته رسېږي
منتظرورته ولاړدي تول عشاق
دوه جهان چي له تاهېرشوه (ملاامیره)
څه په کاردئ خراسان ملک دعراق



---

[1] بزاق : دخولې ناړو ته وایي . کله کله دخولې په معنا هم کارېږي .
[2] په اصل کې ورته کښلي دي : برهوش آمدم
[3] دې = دي یې
[4] عتاق : دمینځواومریانوآزادول.

بې جذب الهي به څوک پیدا کړي دزړه چاک
هغه به مجذوب کېږي چي يې رب که سینه پاک
عامل دشریعت شه ته خضوع وانقیاد کړه
تمثیل دامرکاندئ زیاتي نه لرئ هیڅ واک
که فضل درب وشي تابه کي[5] شاه شاهان
رتبه دعشق به درشي تابه کي[6] خس وخاشاک
هغه (مي)بختورده چي دی تېرترنام وننګ شي
محکمه شریعت وي پخپل دین کنبي وي چالاک
دعشق مثال غمی ده دوه جهانه قیمت نه دئ
فرض (یې) پتېده دي چي له تانه شي بېباک
ګوره هرزارع چي تخم خرنه که په مځکه
حرام باندي خرمن دئ هم ثمروهم خوراک
حال دالیاوګذشته ووپه داشان و
په درون کنبې جوش خروش ودهیچانه وادراک
خامان هغه کسان دي چي ظاهرجوش وخروش وي
نه وي دی تېرشوی ترنهه سره افلاک
روح دده محبوس وي په ناسوت په ملکوت کنبي
ذیقه یې سینه وي غریب ګرزي ګرېوان چاک
خپل نفس ورته وایي ترتانشته (هیڅ) ذاکربل
که دی په داغلط شوتلخ یې کئ شیرین باغ ناک
بسکه (ملاامیره)څه ویل دي ترخوله خېژي
فقیران دزمانې دي مبتلاڅه ورته شاک



من وعن کتاب ورک دهغه چاشي
چي دعشق ددوني[7] برشي ترداا ووه سماک
درې ذکره په حدیث کنبې بیان شوي که خبرېي
یومي لساني دویم قلبي دریم روحي ثناک
لساني مي لقلقه ده قلبي ذکروسوسه ده
روحي مشاهده ده درسول په قول پاک
فرحت دروحي ډېردئ که پرورغی سالک
پر(ملاامیر) چي راغی همېشه ده فرحناک



[5] کي = کړي
[6] کي = کړي
[7] که = کا



هرمرید دي خپل شیخ بولي پیرکامل
تابه کاندي ومقصودته پیرواصل
سست یقین که مریدي دواصل وکه
دی به پاته معرا[1] شي بې حاصل
اول شرط دمریدی، مي خپل یقین ده
که شرط ترک شي مشروط پاته شي عاطل
پرناقص که کامل یقین څوک وکه
ستادپاره به ناقص پیرشي کامل
هرمریددي وخپل شیخ ته تسلیم کاندي
په دغه تسلیم به شي بالغ عاقل
جماعت وردوظیفه پرځان لازم کړه
تقواخوی کړه دګناه نه شي عامل
دسلوک بیان مي کړی په پښتودئ
(ملاامیره) فرق کوه دحق باطل



رانبکاره شوداشنای حسن جمیل
محسنات ددنیاشوه خواروذلیل
ښایستې ددوارو کونوسرکوزي که
چي یې ولیدزمادیارحسن اصیل
په کامل صفت موصوف زمادلبرده
څوک به نه وکي[2] سیالي کثیرقلیل
ترچشمانومي خوناب ستاله فراقه
نه پوهېږم چي قصیرشي که طویل
په طلب دخپل جانان یم سرګردانه
پرې بې نه ږدم که غرق شم په رودنیل
سرومال زمافدیه ترخپل جانان ده
(ملاامیره) صادق شه مه کړه تعطیل
ستاووصل ته حیران ده زمادل
شین توتي دګلستان ده زمادل
له فلکه سنګ ربزي راباندي اورې
سرګردانه پرزمین هم پراسمان ده زمادل[3]
خوب خنداراڅخه ورک دیارپه مینه
خودبه ژاړي په طلب دخپل جانان ده زمادل

[1] معرا : لوڅ لېږ.
[2] وکي = وکړي
[3] تر دي نیم بیتې وروسته دوهم نیم بیتي څلورځپي زیات دئ

پــرعــاشق دمعشوق كله دلسوزي شي
دلســوزي مــهرباني ته نگران ده زمادل
غــم دعشق راځخه هركــړه نورغمونه
ستاله غــمه سرگــردان هم نالان ده زما دل
دظاهــردښمن كه زرتوري پــه لاس وي
هيڅ باك نشته په عذاب له نفس شيطان ده زمادل
بندي كــړي دي دهــجرپــه زندان يم
متنفرلــه اختلاطه دانــسان ده زمادل
ځــان ملبوس دبې ننگيه پــه لباس كړه
(ملااميره) له جــهان ځخه ترسان ده زمادل



(م)

دســاقي له بركته ملك گلــزاروينم
پــرگلانــودبلبلوچــونهاروينم
زه بلبل ستادگلشن يــم بل گلشن ځه كوم
خــزان نشته ستاگلشن همېش بهاروينم
هــرگلشن لــره خزان شته له فلكه
په امــان زه ســتاگلشن له هراضراروينم
عــاشــقان مي بلبلان ديــاردباغ دي
ساكنان (مي) عــاشقان زاغــان فراروينم
نــوشته مي پــرمحفوظ دفتردعشق ده
تسلسل دعــاشــقانوواريه واروينم
مــومنانومــومني پــه عشق پيداكړه
پــه عقبايې لــويه گټه دديداروينم
له ديــدارځخه مــحروم ټول كافران دي
عــشق بې نشته دوی مــقهوره دقهاروينم
نبــه شيرين بيان دعــشق ده (ملااميره)
راشــه وخت كــوتاه دئ اوس تلواروينم



خــداي راكــړي پاكيزه دين داسلام
دغــه رحــم درحمان ده لــوی انعام
جــماعت مي طــريقه دپاك رسول ده
خبردارشــه لــمونځ ونه كړې بې امام
تاركان دجــماعت بــه شــرمنده وي
پــه عقبابــه مختورن وي هــم بدنام
تل درود واســتغفاروايــه په ژبه
شفاعت بــه دي روزي شي دنبي خيرالانام

تــوكل تــقوا همېش پرځان لازم كــړه
دښمن بندكــړه دخضوع پــه محكم دام
بيامنقاددخپل پادشــاه شــه كه دانايې
محكومي تــه همېشه كــړه دحكام
(ملاامير) غريب دوعاگــوی دهــرمومن ده
خصوصاً دخپل پادشــاه هــرصبح وشام

❀ ❀ ❀

ديارديدلــره ورځــم بې پــروبال يم
له ديدنه يې شــرمېږم بې جــمال يم
زه غــلام يــم بېكاره ديارپه كاركښې
كــم همته بدهــنره بدخــصال يم
بندگي دي قبلــوم پــردوه چشمانو
ياره ته مي كــړه قبول زه ډېرمــلال يم
رقيبانوسرگــردان كــړم په عالم كښې
ستادربارلــره درځــم بندپه جنجال يم
درقيب له هــمراهی مي ســل توبې دي
ناديده يارمين كــړی پــرشين خال يم
كيمياگــر(دي) دكيمياپــه طلب گرزي
ديار وصل زمــاكيمياپــه قيل وقال يم
عاشقان كيمياگــران طلب دياركــړي
كه غافــل شــوم له طلبه بدفعال يم
دتغيرتبديــل لارنشته زمــاويارته
پــه طلــب يې دوصلت ودوصال يم
حيرانېږمــه وځــان (ته) وجــهان ته
ولي ورك ځــان وجــهان شوبې كمال يم
زه منكــرله بندگي دنفس شيطان يــمه
(ملا اميرمحمد) بــنده د ذوالــجلال يم



په ظاهــرغريب مــلاباطن ملنگ يم
په اسم ذات ســره خوشبويه ترلونگ يم
لــوی اقليم دمــومن زړه ده بې پايانه
وربې[1] نه كــړم له غــمازسره په جنگ يم
كه لښــكرددښــمن ډېرده هيڅ باك نشته
ينځه غشي مي په لاس ناست پــرپلنگ يم
ينځه غشي مي ينځه فــرض لمونځونه
كه ماتېنگ كــړه زه ولاړديارپــرننگ يم

(۱) وربې - وربه يې.

دیارننگ مي جـــــماعت دپاک رسول ده
مومنان بې[2] تېنگــــــوو زه ناصح لنگ یم
پاک مسجدمي ده پالنگ موږباندي ناست یو
پرې بې نه ږدم که هـرڅوپه صورت څورنگ یم
که وصـــلت له یاره غــوارې لاردغــه ده
که مي تېنگه کـــره دالاربادشاه اورنگ یم
افضل کړی خدای زمــــوږدین ترکل ادیانو
که عامـل دشریعت شـــوم زه خوشرنگ یم
ستادعشق له زخــــمه سورلکه ســورگل یم
عاشقان دي واړه ســـره ، نه چي زه رنگ یم
دوصـــال طلب لازم پـــرمـــــاغریب ده
دهجران په اوردي سوی خــــوارپتنگ یم
هـــــمراهي دبې دینانـــــوپه کارنـــه ده
بـــــهترداچي له بې دینوڅخه پـــرڅنگ یم
که رویت مي پـــه نصیب ستاله جـــمال شي
څوړند ســـــربه همېشه لکـــه متنگ[3] یم
دسراج الملت والدین نـــــه دبدبـــــه ده
(ملاامیر) دده دوعـــــاگـــوی نه دپرنگ یم



(ن)

کباب کـــــړی دئ زمـــــازړه اوردهجران
دغــــــه اورهـــــجران دیارغوارم تاوان
په عــــوض کښي وصال غــــوارمه جانانه
که وصـــــال مــــــعاوضه شي نشته زیان
معشوقه له عـــــاشقانوحجاب نــــه شي
داادب ده دعــــــاشق معشوق تــــرمیان
که عاشق لـــــره ســــل روح دڅان پیداشي
همگي به کي[4] فـــــدیه تــــرخپل جانان
پــــه دنیاکښي یې بل حب ومقصودنه وي
کل مقصـــــودیې وي دلـــــبر، ژاړي حیران
هغه څوک چي پـــــه نظردمعشوق نیک شي
بیایې ســــــپورکاندي دعشق پرآس دوان
ددنــــــیانـــــام ننگ واړه ځني هېرشي
پروانه کــــړي ددنیاپه ســـــودوزیان
کل هــــمت یې وي مصروف دیارپه حب کښي
بل حب نه کـــــــړي صادقان دي عـــــاشقان
پــــــه بیان دعشق شیرین مي روح وجان شو
(ملاامیره) درپاشــــــه پـــــرسپین میدان



ستاله غـــــمه راتـــــه اوردئ کل زمین
بې مثال ده زمـــــادلبرمـــــخ یې رنگین

محبت زمـــــاوســـــیله ده ووصال ته
رقیبانـــــوراته کـــــړی دئ کمین
بل اسباب دعــــاشق نشته بې له عـــشقه
دعشق اوربـــــه وســـــوځي رقیب لعین
بې تکلیفه هیڅ قــــاصدمقصودنه مومي
سرگــــــردان دي قاصدان په زړه غمگین
اومي غـوښي چي په دېگ کښي جوش ونه که
وبې نه خــــوري که غني وي که مسکین
چي پخته دعشق پــــه اورکښي عاشق نه شي
حساب نــــه ده پـــــه رتبه دکاملین
دخامـــــانوخامکاري ســـــوزوگدازده
تل بـــــه ژاړي دی بـــــعیدوي له تمکین

په بیان د(ملاامیر) هـــــغه پـــــوهېږي
چي ســـالک وي پخته کارزړه یې وي سپین



پـــــه تناب دزلـــــفوبندیـــــم دجانان
نـــــه خلاصېږم که ښندمــــه دوه جـــهان
هیڅ مي وېره لـــــه رقیبه غـــــمازنه شي
پـــــرڅـــــان وینمه پیره دتـــــورزلفان
شش طـــــرفه فیوضات دجـــانان اوري
خـــــالي نه ده هیڅ آفـــاق زمین اسمان
عـــاشقان همېش په غم کښي خوشحالي که
وصال غــــوارې پروا ، نه کـړي په هجران
که نن گـــــوري تورو سپین دیارپه خط کي
تهٔ عامــــــل شه همېشه گـــــرزه ترسان
نـــــه حسب نــــه به نسب دچاپه کارشي
چي حـــاضرشي دمحشرپه لـــــوی میدان

---

(2) بې = به یې
(3) متنگ: کمندته وایي (ظفراللغات) اوکمند دلومي په معنا دلته له بیت سره سرلگوي
(4) کي = کړي

خوشـــــحالي دنیک عـــمل ده ونیکانو
بدعـــــمل بـــــه غمګیني شي دعصیان
که رضادجــــانان غـــــواړې رضاپرېږده
که جانان له تارضاشو څه په کارحوروغلمان[1]
درضــــادي طلبګارزه خـــــوارېنده یم
(ملاامیر) ده ګناهـــــکارغــــواړي غفران



چي خالق تخلیق وکئ[2] زمـــــادژوندون
بیاعاشق یې پرڅــــان کـــړم راغی بېلتون
په خپل عشق ســـــره طالب زه دوصال شوم
شب وروزیم سرګـــــــــردان په جګرخون
نه پوهېږم زمــــــاپه باب قلـــم څه کښلي
چي یوغـــــم وي نوشته که پــــــه زرګون
که مي ورکه خـــــوب خنداشوه ستاله حبه
پــــــه کارنـــــه دي ددنیاډېرنعمتون
نــــــورغـــــمونه راڅخه هېردیارغموکړه
یارنیولی دئ له مــــخ ســــل حجابون
محـــــرمات شبهناک شــــوه سل حجابه
له مذکــــوره تقـــــوا کانـــدي صالحون
په نصیب دعــــــاشقانـــــــوعجزونیازده
دیارحب دعـــــاشقانــــــوده ژوندون
تل مشغول دیارپـــــــه وصل صادقـــان دي
سمندرغــــــــوندي ساکن اورېي مسکون
تــــمام صورت مي ستادعشق په اورکباب شو
(ملاامیره) تالـــــــه اوردعـــــشق صابون



معشوقـــــان دعـــــاشقانـــــوقاتلان
بې تقصیره ځني یــــــوسي دل وجــــــان
په عالم کښې سرګــــــردان ګرزي ګریان وي
بیایې قــــــوت وي دزړه وینه دخپل ځــــان
ځني ورک صبروسکــــــون دیارپـــــه مینه
همېشه یې اوښــــــکي څي تـــردوه چشمان
بې غمي شي پـــــرحــــــرامه په دنیاکښي
دفــــــراق اوښکوترڅــــــان وګـــرېوان
دوه جــــــهانه ځني هېرشي بې دلـــــــبره
سرومـــــال کــــــړي صدقه ترخپل جانان

[1] دانیم بیتی ترنوروڅلورڅپې اوږددئ.
[2] وکئ - وکړئ.

پــــه کـــــــوڅه دیارولاړېي نام وننګ وي
مــــــرتبه یې وي بلنده تــــــرا ســـمان
پـــــه اول کښي محبت بیاګـــــمنامي ده
(ملاامیره) ګـــمنام شـــــه که یې پوهان



(و)

له هـــــجرانه همېش ژاړم پــــــه نارو
دیاردیدپرمـــــاشیرین ،تــــرقندمسرو
درقیب پــــه محبوسي بــــه هیڅ بندنه شم
زه محبوس یـــــم دخپل یارپــــه زولنو
چي یې تـــوري زلفي بیاپـــرمخ خپرې کړې
عـــــاشقان سینه ســـوزان په اندېښنو
رقیبان یې راتـــــه کښېنول پـــه څنګ کښي
اوس مي ولي پـــه تکـــړو[1] په سنګ رېزو
بـــــدبختي درقیب داوه لـــــه اوله
چي یې ذات دده پیداکـــــړلـــــه اورو
بیایې وکــــړتکبرپـــــه سجده کښي
پـــه کارنـــه شـــوعبادت دډېرکلو
رقیبان مي دښـــمنان دپاک ایـــمان دي
(ملاامیرمحمده) څـــغله پـــه ګامو



خال دي ایښی دئ پـــــه میان کښي دابرو
نن مجنون غوندي عـــــذاب کړمه لیلو
ودربارتـــه دي ملنګ پـــردوهه ناست یم
ولاړېه نه شــــم مګردیدراکـــړې خیالو
منتظردي ددیــــدن لکه بلبل یـــــم
څوبه ګـــــرزمه محرومــــــه له کتو
یاره جــــوره شکوفه پــــه زمستان کړه
اوکه نه وي جان دمـــــاغ مي کړه خوشبو
جـــدایي دیارترخـــه وصال شیرین ده
که یـــوځله وصــال کاندي نن پېرزو
عـــاشقان دي شهــبازان دیارپه مینه
سرګـــــردان دي پرزمین پرلـــــویوغرو
ربه روی ســــتاددوستانــــــومي دروړې
عــــاشقان کـــړه منورپـــه انوارو
ستادعــــفو مقام پټ له هـــــره چاده
(ملاامیره)عـــــفوغـــــواړه په زارو[2]

[1] کټ مټ ولیکل سو.



زما په زړه یاردعشق اورولګاوو[۳]
بیایې روح راځخه یووړغم یې نورولګاوو
خوشحالي دزندګۍ راپوري غم شوه
غم یې دروندده هجران زورپرماپورولګاوو
دنفس باغ مي ستادعشق په اورایره شو
یک بیني یکجهتي بیاپرمازروولګاوو
مجوف زړګی مي ډک په سل فکرو و
دتوحیدپه نورشوډک عجب یې شورولګاوو
رقیبان حیران ولاړزما وحال ته
دتوحیدنورمي پیره په رقیب اورولګاوو
دمعشوق په طلب ستړي عاشقان ده
(ملاامیر) مي په طلب سرپخپل ګورولګاوو



راشئ مومنانودخپل رب ثناګویي کوو
محکمه پرخپل دین شوو بادشاه ته دوعاګویي کوو
راغلي اروسان دي دوی وموږوته حیران دي[۴]
غیرت ددین به وکړوموږبه هم پهلواني کوو
حیات دي زموږبادشاه وي کل اسباب برابروینم
قتل به کفارکړو موږپردوی شمشیربازي کوو
پرخلافت دچاریاردي محکم زموږبادشاه وي
مغلوب دي کافران شي چي پردوی موږغالبي کوو
بدبخته کافران دي ناامیده له قرآن دي
فتح به خدای راکړي دقرآن موږپیروي کوو
انګرېزکه اروسان دي زموږجنګ ځخه ترسان دي
مومنان ټول شیران دي اوس پردوی به چابکي کوو
ترسان مي اروسان دي دلاوره مومنان دي
غازیان منتظران دي موږودوی ته کارسازي کوو
کفارکه هرڅوډېردي ددین عقل یې هېردئ
بې جنګه بې نه پرېږدودخپل دین موږغاوري کوو
قاتلان که مقتولان شوکه پاته پرمیدان شو
سودمنده مومنان دي (ملاامیره) موعظي کوو



تریوسف ډېرښایسته زموږپیغمبرو
ستاره ورته عاجزشمس وقمرو
غلبه دنوریې تېره ترهرچاوه
په خوبانوکښي ځرګندلکه زیړلمرو
دوحدت له باغه درخته راښکاره شوه
نه یې مثل پرزمین لکه نښترو
دکمال په مېوه پره دغه درخته
مومنانومي نوش کړئ ښه ثمرو
شاکران ددې مېوې به سربلندوي
تورزاغان له دې مېوې ځخه کورکرو
مومنان دي خدای غافل په دین کښي نه کړي
غافلان له خپله دینه ګاوخرو
دطاعت بارچي باباآدم په شاکړ
مومنان بې[۱] قبلوي باردپدرو
مومني ده نیکنامي دعقباګټه
مومنانوټینګه کړه که مي ضررو
دنبي پردین ثابت شه (ملاامیره)
سپي رقیب ثابته نه شولوی خطرو



(هـ)

ته آئینه دشرع نسه[۲] وخپل مخ ته[۳]
ستاعیبونه به ښکاره شي ته نیکبخته که بدبخته
ښه طاعت وبندګي دپاک الله کړه
له ریا ځخه ځان ساته .نفس بدبخته

---

[۲] په مقطع کي لږ څه تصرف سوی دئ په اصل کي داسي وه:
ستادعفومقام پټ له هره چاده زمادلبره
ملاامیره عفوغواړه په جړاوپه زارو
[۳] شاعر (ولګاوو) دخپلي لهجې سره سم کښلی دئ اوسنی لیکدود یې (ولګاوه) دئ.
[۴] دامیرحبیب الله خان په وخت کي افغانستان ته دروسانودراتګ خبره له تاریخي مدارکوسره سمه نه خېژي. دشاعر مرادبه یاپه سیمه کي دبلشویکي نفوذ دخپرېدو خطروي اودی به یې دروس دتجاوزپه نامه تعبیروي اویابه نوپردرقدباندي دروسانوپوځي تېري ته اشاره وي. دغه واقعه دغازي امان الله خان د پاچهۍ په اووم کال پېښه سوې ده (۲۷ قوس ۱۳۰۴ ش) اوپه دې ډول نوتردغه کاله پوري دشاعرژوندهم یقیني کېدلای سي.

[۱] بې = به یې.
[۲] نسه = نیسه.
[۳] داغزل په اصل کي د (ت) په ردیف کي ما د (هـ) ردیف ته رانقل ک

سره اورونه دي په لاس ددښمنانو
ستاطاعت وسرومال سوځي يک لخته
ستاپه ښهرکښي ښه کوته په دولت[4] ده که
بېغم نه شي دښمن ستاده په زړه سخته
که ولاړ پرخپل کوته وې ترسهاره
اوس بادشاه يې گوياناست يې پرخپل تخته
دتقوا تېغ په لاس ونيسه محکمه
درايله به کي[5] دښمن ستاتخت وبخته
سرگردانه له خپل نفسه ډېرعالم ده
(ملاميره) جهادي شه مې پربږده گرم ويخ ته



ددنياكه جستجوى پرداجهان كه[6]
كه خداى هېروي آخرت لره تاوان كه
پرجهان باندي ژړاديارلـه حبه
داژړامحبت دخداى دوستان كه
چي دعشق په تېغ يې غوڅ دزړگي سرشي
دفراق په اوښكوترخان وگرېوان كه
دصادق عاشق ژړاده پخپل ځان كښي
كه مخلوق ته شي ظاهردځان نقصان كه
دين دنياسره ضدين(دي) هيڅ شک نشته
په يوه ځاى اوراوبه كله مكان كه
دادنياكه پخپل فكرگلستان كړي
عاقبت به يې خراب دمرگ خزان كه
منزه دئ عشق دنفس له خوى خصلته
دامشكل ده چي ديده څوک بې چشمان كه
جاهلانو په دنيادين بدل كړي
ددنياهېرېده نه كه دين نسيان كه
كه دانايي پرخپل سرنيسه لاسونه
وجاهل ته نصيحت ډېرعالمان كه
ناصحان كه نصيحت ددين بيان كړي
(ملامير) به يې قبول پردل وجان كه



محبت دخداى دوستان بې خداى نه كه
په يوه زړه كښي به دوه محبت ځاى نه كه

په ظاهروي له عالم باطن له حقه
مشاهده بې له خدايه بل راى نه كه
چي توانگردقناعت په خزانه شي
هيڅ گذربه دغنيانوپه سراى نه كه
احتياجي بې خپله ربه دبل نه كه
روح وجان به بې له خدايه فداى نه كه
عاشقان دي طالبان ديار دوصل
كه واصل شي ومعشوق ته واى واى نه كه
په كوڅه كښي دمعشوق حيران ولاړوي
خوښ خرم وي په حيرت كښي هم تلاى نه كه
حال وقال دي موافق شه (ملاميره)
سالكان دي خداى خودبين خودنماى نه كه



جام دمى پياپى نوش كړه ما په ذوقونه
زړه مي سورى لكه نى په نغمواوازونه
يارزمابې وفا په جفادئ عالمه
نقصان كل زماخپل دگناه دريابونه
يارمي گل زه بلبل په ژړاپسې مرمه
دبلبل سينه تل ترختلي خارونه
دلبري دلجويي رهبري دي غوارمه
كه ماخلاص په اخلاص كړې دغم له بارونه
ماغريب كړه بعيدله شيطانه شديد
بدلوي سودايي په دنياجنتونه
مامريدكړه قريب دگلشن عندليب
ستاحبيب ستامجيب پرښندم سرمالونه
ښه جلال ښه جمال شين دي خال ده صنمه
په ظهوردي خراب دكفارو ملكونه
ستانظرشوخنجرپه مجروح مي ځگر
سپين دي غابښ وانوارپه روښان اسمانونه
ستاصديق ستارفيق ترهمه وشفيق
يارغاردسرداردهجرت په مزلونه
پتولوخوبان افضلين مي جانان[1]
بهتري مهتري په آيات حديثونه
ستابلق ترفرق وتېرشوى مطلق
نازبردار، رازكردارترجمله حجابونه

---

[4] دولت دلته ددنياپه معنا راغلى دئ
[5] کي = کړي
[6] که = کا

[1] دانيم بيتى په لږتصرف رانقل سوى دئ. په اصل كي داسي و :-
پتولوخوبان پرماگران افضلين مي جانان

دا بیان شوعیان د (امیر) په زبان
خوش لسان درفشان د جانان صفتونه



د عشق اورمي پرزړګي وکړه پوښتنه
زما پرحال په چابکي وکړه پوښتنه
شپږ داغونه عشق راکړي پرسینه دي
دا رخمونه د مرګي وکړه پوښتنه
ورنځورته که دوا د دیدن ورکړې
زما دواده پرهېزي وکړه پوښتنه
بیکاره غلام دیاریم ورته ژاړم
نن د غلام پربېکاري وکړه پوښتنه
هیڅ حاجت زما په کار و خدمت نشته
زما ژړا یارخوښوي وکړه پوښتنه
د رقیب د لاسه د بریه زړه غمجن یم
نن زما پرغمګیني وکړه پوښتنه
عشق جهاز شوګډ یې کړم په محبت کښې
ته مهربان شه پرغرقي وکړه پوښتنه
(ملا امیر) په سپینه زیره تل ژړا کړي
راشه زما پرغریبي وکړه پوښتنه



الماسي خنجر په لاس زما د دلبر ده
عاشقان په قتلوي دا یې هنر ده
چې په برخه یې خواري د سوزګداز شي
خود به ژاړي چې زخمي یې د زړه سر ده
هغه څوک چې وي ببغم د یار له فکره
سړی نه ده په مثال د ګاو خر ده
د محبت په اور یې سوی په کلونو
چې وصال رابا ندي راغی نن اختر ده
غلامي مي په اخلاص د کامل وکړه
اوس ماذون شوم د کامل هسي نظر ده
و خادم ته د مخدوم فیض رسېږي
هیڅ شک نشته د رسول د خولې خبر ده
عاشقان (یې) و دیدن ته هوسېږي
څني پاته نام وننګ و سیم وزر ده
صادقان د یار په مینه هغه څوک دي
چې په لاس (یې) همېشه د عشق دفتر ده

عاملان د شریعت مي فایضین دي
پاک الله څني راضي هم پیغمبر ده
عاشقان ترسرو مال و یار ته تېر دي
چې لیدلی یې جانان په خپل بصر ده
د یار میني تور کودی کړم په جهان کښې
خاکساري مي جوړه کړې پر خپل سر ده
ګمنامي لویه رتبه ده (ملا امیره)[1]
اختلاط د زماني د پرشور و شر ده



که وصال دا شنای غواړې روغ د غه ده
بیا څه نه شي د مرګي سخته ناره ده
نن دي وارده چې راکب پر خپل مرکب یې
له مرکبه که شیوه شوې توره شپه ده
په تیاره کښې څوک رسېږي و مقصود ته ؟
لوی مثال د ئ نیکي واخله لاربښکاره ده
کمبختان مي غافلان د یار له ذکره
لغزیده وي و خپل نفس ته مسخره ده
پرهمت د زاهدانو آفرین شه
نفس شیطان یې په عذاب ښه تماشه ده
پیروي د پاک قرآن مو په نصیب کړې
چې همېش زمونږ په خوله ورد و ظیفه ده
په نصیب مو شفاعت د پاک رسول کړې
پاک سبحان بې کي[2] خوشحال کړې وعده ده
له دې خپلي بدبختۍ څخه په عذاب یم
ګیله نشته پرهر چامي توره شپه ده
هر عاشق شیرین ګفتن شیرین زبانه
(ملا امیر) مي د رپاشي د کې[3] سینه ده



هغه څوک چې صادقان وي ستا په مینه
محبت بې[4] همېشه پر خپل یار وینه
اول حال د سالک دا د ئ اې د رویشه
چې په حب کي د خپل شیخ به فناه شینه
حقیقت د حب یې هلته ظاهرېږي
چې د پاک رسول په شرعه عمل وینه

---

[1] اصل: ګمنامي لویه رتبه ده ملا امیره فقیره.
[2] بې کي = به یې کړي
[3] د کې = د که یې

دویم حال دصادق داده په محبت کښې
چي دپاک نبي په حب کښي فناوینه
دریم حال فنافی الله بولي طالبه
بې له یاره ماسوا کل ترک وهینه
هغه عشق نه دئ بل ځه دئ دروغ وایي
چي خالي به له دې دروحبو څوک وینه
هرچي لاردشریعت یې وي پرې ایښې
رهبردده شیطان اورتې[5] ځکوینه
که باوردي په آیات و حدیث کېږي
ملحدي په طریقت کښې ډېره وینه
هغه څوک چي مستقیم پرشریعت شوه
په سپین مخ به آخرت لره ورځینه
خدایه عشق مي برابرپرشریعت کړې
چي مقام دموحدی مي روزي شینه
(ملاامیر) غریب صادق کړې ستاپه مینه
امان راکړې په توحید کښي له لعینه

❁ ❁ ❁

ستادهجران په اوروسوی ارامي غواړمه[6]
زړه مي زخمي داستاله لاسه دوایي غواړمه
دوامي وصل دجانان ګنج نوري غواړمه
زه خوارمسکین یم بې تسکین زه دلجویي غواړمه
ستادمحبت په دریاب غرق صدف دري غواړمه
زه غواص تېر(یم) ترخپل سر اجرت قوي غواړمه
له دواړو کونویم بېغم روشندلي غواړمه
له پخته ګانومي حساب کړې ګمنامي غواړمه
سیروسلوک راباندي تېرشومقبولي غواړمه
نفس وشیطان مي دښمنان ستامهرباني غواړمه
زمامشرب دنقشبند پیرمجددي غواړمه
تاچندبه سوزیمه نورمحمدي غواړمه
درعشق توسوختیم دروصلت رهنمایي غواړمه
عمرم عبث ګذشت درطاعت عمرثاني غواړمه
پیرمي اولاددعمریارپیرقریشي غواړمه
(ملاامیر)خوارېې دامنګیرزې[7] غلامي غواړمه

❁ ❁ ❁

په خوبانوکښي کلانه راشه راشه
زمادزړه محبه ګرانه راشه راشه
پیروي دي قبلوم پردووچشمانو
ته یې نورزمادچشمانه راشه راشه
زمادپیرنوربه رهبرشي ستا ترنوره
ستانوربه شي رهبره ترسبحانه راشه راشه[8]
(دا)ستانورده وسیله زماووصال ته
ته همېش پرخپل رب ګرانه راشه
محبت دیارافضل تردوه جهانه
ته یې زمادزړه ارمانه راشه راشه
په کامل صفت موصوف ترکل عالم یې
باطن نورظاهرانسانه راشه راشه
ستاامت همېشه فخرپه تاکاندي
ته سرداریې دنبیانه راشه راشه
ډېردي قدرهم حرمت پرخپل خالق ده
کامل میره دخوبانه راشه راشه
کمینه امتي ستایم پاک رسوله
زه (امیرمحمد) ستادغلامانه راشه راشه

❁ ❁ ❁

(ي)

عشق سرسري نه ده چي له سره دي بدرشي
محبت عارضي نه ده چي له زړه ځخه بدرشي
بیان دعشق کومه وسالک ته یې ښیمه
مشتق له عشقیه دئ چي پیچان[1] پربل شجرشي
عشقیه مي هغه شی ده چي غالب شي پرګیاه
ذات دګیاه ورک شي عشقیه مي پراظهرشي
مثال دمومن داده که انصاف لرې منصفه
که عشق باندي غالب شي ترګیاه (یې) حال بترشي
عشق ده په دوه قسمه ته یې زده کړه اې سالکه
یومي رحماني بل شیطاني که دي باورشي
شیطاني هغه ته وایي چي نقصان دشریعت وي
ناري تجلېویني په غلط مي ګاووخرشي
رحماني هغه ته وایي چي پرشرع مستقیم وي
شوارق به دانوارفیوضات باندي مطرشي

---

[5] اورتې = اورته یې
[6] دې غزل ته پرسرکښلي دي: مناجات فقیر ملا امیرمحمد
[7] زې = زه یې
[8]
[1] عشق پیچان یوراز ګیاه ده. چي پر نورو ګلانو راتاوېږي.

تمیزددې دووګران دئ دخطرځای یې دغه ده
سالم به ترتېرېږي هغه څوک چي بختورشي
زه (ملاامیر) فقیریم په بیتوکړم بیانونه
محتاج زه دوعایم که پرمادخدای نظرشي
❁ ❁ ❁
بدبخته زمانه شوه له طاعته غافلان دي
ودین ته یې شاکړې په دنیاپسي روان دي
بیدارشئ مومنانولوی سفرلرئ په مخه
نکیرمنکربه درشي سوال جواب یې په ایمان دي
کامل که دي ایمان وهیڅ دي وېره خطرنشته
راووزه ونیکۍ ته بدعمل دي دځان زیان دي
فهم وکه (اې) مومنه عاقبت دادنیاپاته
محصل دهرچامرګ دئ ځني پاته یتیمان دي
سپین زړه دي تورېږي ګناهونه دي دېرېږي
صیقل (یې) اسم ذات ده شریعت که پرراوړاندي
پنځه روځي ژوندون دئ عاقبت به روانېږو
ژاړه (ملاامیره) نفس شیطان دي دښمنان دي
❁ ❁ ❁
یوه درخته یې نهال کړه په قدرت کښي[٢]
څلورښاخ (یې) ورپیداکړه په زینت کښي
هر(یو) ښاخ له ګوناګون مېوې ځخه پرده
زاغان ځني محروم بلبلان ګډ په وصلت کښي
بلبلان چي همېشه پرګل مین ملامت نه دي
معطربې دل وجان په حقیقت کښي
چي بلبل غوندي صادق په مینه نه شي
دامشکل ده چي به ګډ شي په جنت کښي
ساکنان دهغي درختي هغه څوک دي
چي ترسروترمال تېرشي په محبت کښي
مثال ددرختي ذات دپاک حبیب ده
چایاران یې څلورښاخه په قربت کښي
بلبلان مي عاشقان دخدای دوستان دي
رب ورکړې خوشحالي په آخرت کښي
زاغان مي کافران منکرالحق دي
محرومي شوله ورپېښه په خلقت کښي
په اول کښي مي ابیات مغلق ویلي
په آخرېي معنی ګوره په وضحت[٣] کښي

ربه سرومال قربان زماترنبي کړې
(ملاامیر)غریب غلام تل په خدمت کښي
عاشقان دیارجفاپروفابولي
(ملاامیر) فقیرمغموم ده په هجرت کښي
❁ ❁ ❁
د خپل اشنای دیدن له تلمه په تلوار،،
زه خبرنه وم چي په مخه رقیبان راځي
دیاردغم ګردوغبارزماپرځان راځي
دیارله عشقه مي خوناب نن ترچشمان راځي
(را) میسربه وصال نه شي بې ژړاعالمه
دفراق اوښکي مي بهېږي پرګرېوان راځي
دادنیاکه همګي ګل وګلزارشي
عاقبت به شي فنادمرګ خزان راځي
څه دغم ژوندون یې زماپه قسمت راکړ
بې له یاره دعشق دودمي تردهان راځي
زماپه اوښکو هیڅ اثرپرجانان نه شي
زماپرحال نن په ژړازمین اسمان راځي
سرګردان وپای‌دوان پردادنیایمه
ترک به نه کړم ستاطلب که هرڅوزیان راځي
دجنت ترګلو زیاتې تماشه ده
چي مستغرق شم دیارفیض لکه باران راځي
که وفانه کړې نن دژوندرمق باقي ده
اوکه نه وي (ملاامیر) غریب ګریان راځي
❁ ❁ ❁
ستاجفاده همېشه ماژړوي
رقیبان په نصیحت ماخندوي
زه حیران یم چي ژړاکړم که خنداکړم
نه پوهېږم چي یارزما څه خوښوي
دجرس له حاله حال زمامعلوم شو
ترخندازماژړایارقبلوي
دادنیادژړاځای چي بېغم نه شي
ستاژړالره اجرت یاردرکوي
داجرت حساب مي خپله زندګي ده
عاقبت دصورت حجاب پاره کوي
دمحشرپه روځ به نیک وبدښکاره شي
دانایان مي نیک په بدنه بدلوي
آئینه دزړه صفاکړه له هرزنګه
(ملاامیره) خدای رحمان ده رحم کوي
پاته په (۱۰۹) مخ کي

(٢) داغزل په اصل کي د (ښ) په ردیف کي وه .
(٣) وضحت = وضاحت ، څرګندتیا




اروابناد استاد بېنوا

# بې شخصيته ځلمي

چې په پټه د مرتجعينو ملګری دئ، او په ښکاره د منورينو د ډلي مشر توب غواړي.

چې پخپله هم کار نه کوي او بل هم کار ته نه پرېږدي، چې غله ته وايي غلا کوه او د کور خاوند ته وايي بيداره اوسه.

چې پر پيسه والا تنقيد کوي مګر پخپله په پيسه نه مړېږي.

چې نور ملګري د خطر ځای ته رهنمايي کوي، خو پخپله د خير پر غونډۍ ورته ناست وي، چې نورو ته د ملي کارونو توصيه کوي خو ده ته چې د ملي وظيفې موقع ورکړه سي نو ځان ځني کاږي.

چې هم تسپې اړوي او هم د تسپو والا غيبت کوي.

مخامخ د مرتجعينو سره پر يوه دسترخوان ډوډۍ خوري خو پشلا ښکنځل ورته کوي.

د رپوټچي سخت دښمن ښکارېږي، مګر پخپله د ده ګذاره د همدې لاري ځخه وي، دا بې شخصيته ځلمي وپېژنئ او د ده په ظاهري له درده ډکو خبرو مه غولېږئ.

# Kandahar

Bi- Monthly Magazine of Kandahar information & Culture Department

## د خیام سرونه د پښتو په تال کې

په سینو کې چې یې ځای و د علمونو هنرونو
لکه شمعې بلېدل به د هنر پر محفلونو
له تیارې شپې د وتلو هیڅا لاره پیدا نه کړه
افسانه یې کړله تېره او بیده سول په خوبونو

که زاړه پر دې دنیا دي او هغوی چې لا ځوانان دي
د مطلب دپاره ټوله لکه ژرندې سرګردان دي
د دنیا ښادۍ هیڅا ته تل تر تله نه پاتېږي
ولاړل، ځو به، نور به راسي او هغوی لا هم روان دي

سحرګاه چې سپېدې چوې بانګ د چرګ اورېدل کېږي
ته پوهېږې چې دا ولې ساندې وايي او خوروښېږي
وايي بیا هغه دې ښکارې په هنداره د سهار کې
چې هنوز یې بې خبره شپې د عمر دې تېرېږي

د عبدالباري جهاني ترجمه